کالني ددولت ټول اجراآت دورځي دپېښو له لنډيزسره په مصور ډول له علمي، تاريخي اقتصادي اوادبي مطالبو سره خپروي .

داطلاعاتو اوکلتور دوزارت د مطبوعاتي خدمتو دبراختيا اودراز، راز نشراتي مطالبو دتهيه کولو په منظور دفيچري اداري په نامه يوه نوي اداره د٥٤کال دليندي په مياشت‌کي جوړه کړه، دااداره دمطبوعاتي خدمتوپه برخه کي مسلکي اصلاحي نظريي وړاندي کوي ، مقالي، تبصري، ترجمي اوداړتياوړ فيچرونه ورځپاڼو خصوصا دولاياتو نشراتي مؤسسوته تهيه کوي . اوهم دکورنيوله پاره يوه مجله ترلاس لاندي ده چي ژربه‌په‌خپرونوپيل وکړي.

**دافغانستان راديو :**

څرګنده ده چي دجمهوريت لوړي هيلي يوازي اويوازي په ټولوملي او اجتماعي چارو کي دټولو خلکو دګډون په وسيله تر سره کيږي، له همدي کبله راډيوافغانستان دارشاد تبليغ، اطلاع اوسرګرمي ديوي لويي وسيلي په توګه زموږ دټولني دورځنيو اړتياوو په نظر کي نيولو اوداجتماعي واقعيتونو په درک کولو سره دخلکو دفکري ودي دزميني برابرولو او دجمهوريت له اهدافو څخه ددوي دخبرولو له پاره دبيلو،بيلوپروګراموله لاري خپلي وظيفي ترسره کړي دي . «دجمهوريت په پلوشوکي» پروګرام چي هره هفته خپريږي د جمهوري انقلاب کلي هدفونه توضيح او تفسير کوي . دهمدي منظور له پاره په تيرکال کي راډيو افغانستان هغه مضمونونه چي ددولت اهداف خلکوته اودخلکو وظيفي ددولت په مقابل کي څرګندوي اوهم ددوي هيلي دهيواد دآبادي په لاره‌کي روښانه کوي دجمهوري په پلوشو کي پرپروګرام سربيره يي په هفته‌کي يوځل دخبرونو په تفسيرکي هم ځاي ورکړ او هم په نوموړي پروګرام‌کي داورول شووم‌ضمونونو دريمه مجموعه له چاپه څخه راووته . دراډيو داطلاعاتو څانګي دخبرونو دخپرولو، دداخلي اوخارجي مهمو خبرونو دتفسير، راپورتاژونه اودهفتي دمهمو پيښوپه برخه کي يو شمير ګټوربدلونونه راوستي دي .

**دهنر اوادبياتو اداره**

د «موسيقي ونکته ها. انديشه وزندګي ، بازار هنر اوراديويي تياتر» پروګرامونه هغه نوي پروګرامونه دي چي په تيرکال کي دهنر اوادبياتو داداري لاري نوي خپاره شول اوهم ددي اداري په نورو پروګراموکي بدلونونه راغلي دي، همداراز د «حرف خوش، آهنګ خوش ، خبرخوش» پروګرام په «دانه هاي قيمتي ازفرهنګ عاميانه» باندي اړول شوي دي اوهم دهنر اوادبياتو اداري په تيرکال کي دخپلو دايمي پروګراموپه څنګ کي ٢٦ نور فوق‌العاده پروګرامونه په خاصو ملي اومذهبي ورځوکي نشر کړي دي .

**دروزني اداره :**

په تيرکال کي دي اداري په خپلو عادي پروګراموسر بيره، دهيواد دښځو دتشويق په اجتماعي چاروکي ددوي دبرخي اخيستلو، دجمهوري انقلاب داهدافوپه رڼاکي دښځي اوسړي ترمنځ دنسبي مساوات دراوستلو اود

ښځې دنړیوال کال په چوکاټ کې د «نوی ژوند» او «دښځې په ژوندکې نوی رڼا» پــــه پروګراموکې پراخ نشرات او تبلیغات کړي ی دي . اوهم دخوانانو پروګرام ددی له پاره چې ځوانان دهیواد دننی اوسبانی ټولنی د اجتماعي څرخونو په چورولولو کې زیـــــات مسؤولیت، ونهه اوقوت لری، له نیم ساعت نه یوه ساعت ته وغزول شو. همــــداراز د سازنو اورازونو پروګرام چې پخوانیم‌ساعته پروګرام ؤ دراډیو دانکشافی پلان له مخـی په یونیم ساعته پروګرام واړول شو، ددی اداری په نورو پروګرامو خصوصا ذهنـــــی مسابقو کې هم دپام وړبدلونونه راغلی دي .

**دموسیقی اداره :**

دی اداری دتیرکال په اوږدوکی یوزر نوی سندری اویوسل نوی نغمی ثبت کړی او د راډیوآرشیف ته سپارلی دی، اوهم‌یی دیوسل اوپنځوس کنسرتوپه شاوخوا کی د راډیـــــو افغانستان له ستدیوګانونه دباندی په بیلو، بیلو مناسبتونو اجرا کړی دی .

**دپروګرامونو اداره :**

د «میرزاقلمی های این هفته میــــرزا قلم» پروګرام چې ددی اداری له خواتهیه کیږی دکیفیت له پلوه یی په زړه پوری بدلون‌کړی اوداوریدونکو شمیریی زیات شوی دی، اوهم د «درلابلای نشرات رادیو » پروګـــــرام چې دپروګرامو داداری له خوا وړاندی کیــــــږی دراډیو د۷٤٥ بیلو. بیلوپروګراموپه زړه‌پوری مطالب دهغو کسانو له پاره خپروی چـــــی لومړی ځل یی په اوریدلو نه دی بریالـــــی شوی .

**دپښتونستان اداره :**

دی اداری په تیرکال کی خپلو نشراتو ته دوام ورکړی دی .

**داعلاناتو اداره :**

رادیو افغانستان داعلاناتو د اداری له‌خوا تیرکال لس ملیونه افغانی ګټلی چې دتیرکال په نسبت ددی اداری په ګټه‌کی یو ملیـــــون افغانی زیاتوالی راغلی دی .

**خارجي پروګرامونه :**

دخارجی نشراتو پروګرامونه دمحلی وخت له ۲٫۳۰ بجو څخه دمحلی وخت دماښام‌تراوو بجو پوری د۱۹ او ۱۹مترپه څپوپه‌عربی، اردو انګلیسی ، آلمانی اوروسی ژبو نشرات کوی، دی اداری دتیرکال په اوږدوکی هڅه وکـړه چې داوریدونکودراجلبولو له پاره ګټوراوپه زړه پوری مطالب نشر کړی اوهم له هیوادنه دباندی افغانانو ته یوساعته پروګرام ددی اداری له خوادپخواپه شان نشر شوی دی .

**دراډیو افغانستان تخنیکی خدمتونه :**

تیرکال دتخنیکی چارو دپراختیا په برخه‌کی لاندی کارونه شوی دی :

۱ـ دهیواد ددریو ولایاتو له پاره ددریو منځنیوڅپورانیول .

۲ـ دجینواپه کنفرانس کی داوولسونویـــو فریکونسیو ریزرفول .

۳ـ دکابل ښاردتلویزیون پروژه .

۱ـ رادیو افغانستان درادیو دڅپودکمزوری له کبله دراپیداشوو مشکلاتو دله منځه‌وړلو

له پاره په لومړي قدم کې دمنځنیو څپودري لیږدوونکي دستګاوي چې هره یوه یــې لس کیلوواټه طاقت لري دبلخ، هرات او کندهار دولایاتو له پاره رانیولي چې اوس ـ اوس له هغوڅخه درادیو افغانستان د مــوجوده نشراتو دپاوړتیاله پاره استفاده کیږي .

۲ـ دجینوا په کنفرانس کې ۱۷ نـــوي فریکونسي د «فریکونسي دبین المللي ثبت» په دفترکې له ضروري شــر ایطـــو سره دافغانستان په نامه ثبت شول چې داکـــار دبروډکاستینګ په برخه کې ډیرګټور دی .

۳ـ دکابل ښاردتلویزیون پروژه ـ دانکشافي پلان له مخې دتلویزیون پروژه تیرکال پـــه جدي توګه ترڅیړنې لاندې ونیوله شـــوه، د۵٤کال په پیل کې دجاپان دتخنیکي ســروې یوه ډله په افغانستان کې دتلویزیون دپروژې داساسي پلانګذارۍ له پاره هیواد ته راغله اوخپلې ضروري مطالعې اوموادیې د رادیـــو افغانستان دانجنیرانو په مرسته ترسره کړل، نوموړې هیات خپل هیوادته له تللونه‌وروسته یولومړنی راپوریې ترتیب کړچې په‌هغې کې په لومړي مرحله‌کې دکابل په ښار کـــې دتلویزیون ددستګاه دجوړولو اوپه‌کار اچولو په باب په مفصل ډول مطالب وړاندې شوي، له دې جملې څخه دپرسونل دروزنې، دستډیو اودتلویزیون ددستګاه دودانونې، ددوی دسره نښلونې اوله ستډیونه ترلیږونکي دستګـاه پورې دسړک جوړول هم یادشوي دي . چې دنوموړي سړک دجوړولو کارد۵٤ کال دکب په میاشت کې پیل شو . رادیو افغـانستان دتلویزیون دپروژې دبیلو، بیلو اړخـونـــو دپرمخ بیولو له پاره مقدماتي ترتیبات‌ونیول.

**دباختر آژانس ریاست :**

ددې مؤسسې وظیفه دداخلي او خارجـي خبروترلاسه کول اودهیواد دانکشافـــاتو د عکسونو تهیه کول دي چې په ډیر لږ وخت کې یې دهیواد نشراتي مؤسسوته سپاري .

**داخلي خبرونه :**

دامدیریت چې دولایاتو داطلاعاتو، دمرکز داطلاعاتو، دعکاسۍ اوریفرنس له څانګوڅخه جوړ دی د۱۳۵٤کال له چنګاښ نه یې د۱۳۵۵ کال ترچنګاښ پورې دهیوادداقتصادي،اجتماعي سیاسي، عرفاني، صحي او نورو انکشافـــي فعالیتوپه باب مطالب راغونډکړي او دخبر، مرکې، راپور اوتفسیرپه توګه یې درادیـــو افغانستان، ورځپاڼو، جریدو اومجلوله لارې خلکوته رسولي دي. چې وړاندې شوي‌مطالب اووزرو موضوعاتو په شااوخواکې دي .

همدارازدعکاسۍ څانګې دخبرونو اوراپورتاژونه دمصور کولوله پاره په همدې موده کـــې تراولسو زرو قطعو زیات اخبـــاري عکسونه، منظري اوپه زرهـ پـوري عـــکسونه د هیواد مطبوعاتو ته تهیه کړي اوخپاره کړي دي . په دې سربیره دعکاسۍ څانګې له نورو دولتي خصوصي اوانفرادي مؤسسو سره مرسته‌کړې اوددوی داړتیاوړ عکسونه یې تهیه‌کړي دي، همداراز په بیلو،بیلو ساحو کې د هـــیواد دپرمختګونو عکسونه یې په خارج دافغـــاني سیاسي نمایندګیو دپاره تهیه کـــړي او د

خارجه چارو دوزارت له لارې يې وراستولې دی .

ددې فعالیتونو په څنګ کې دتیرکال لــه چنګابن څخه دسږکال دغويي تر پايه پورې سربيره پردې چې ددې څانګې له خوا په بيلو، بيلو برخوکې دهيواد دپرمختياؤ په بــا ب دهيواد په اوولاياتو کې ددوهم جمهــــورې جشن په وياړ نندارتونونه جوړ شوی د۴۰ جلدوپه شا اوخواکې دعکسو البمونه ددولتي ميلمنو اوهغو کسانو له پاره چې افغانستان ته يې دوستانه سفرونه کړي تهيه اوسپارل شوي دي .

همداراز د «اطلاعات اوکلتور ستاسې پــه خدمت کې» دويټرينونو له پاره دورځې دخبرونو عکسونه دخلکو دخبريدنې اوتماشې له پــاره ورځ په ورځ تهيه شوي چې ددې شمير هم دسلګو نو قطعوته رسيږي .

**خارجي خبرونه :**

ددې څانګې وظيفه په بين المللي پيښنو او انکشافاتو پورې دمربوطو خبرونو اخيستــل اونشرول دي چې داخبرونه دټيلې ټايــــــب دماشينونو له لارې دنړۍ له باورې آژانسو څخه اخيستل کيږي اوله ژباړولووروسته نشراتي مؤسسو ته سپارل کيږي .

دې څانګې دخبرونو اختصاصي سرويسونه هم چې داقتصادي، جنايي، علمي، سپورتي، ذوقي اوهنري پيښنو په باب دی تهيه اونشر کړې دی .

دې مديريت دتيرکال په اوږدو کې دروان کال دغويي ترپايه پورې په مجموعي توګه

ترپنځه ديرش زروزيات خبرونه خوښ کړي، اډيټ کړي او ترجمه کړي دي، چې داخبرونه دمخابرې دمديريت له لارې اودتخنيکي مديريت په مرسته دنشرله پاره دهيواد مطبوعاتو ته وررسول شوي دي .

**دتصحيح مديريت :**

دې مديريت خپله وظيفه دخبرواو تبصرو دسمې مخابرې په برخه کې ترسره کړې ده.

**درادیو ګانو مدیریت :**

دامديريت هره ورځ د پنځلسو نشـــرې خبرونو په شااوخواکې دنړۍ له معتبــــرو راډيوګانو څخه ثبتوي اودنشرله پاره يــې چمتو کوي . دجمهوري رژيم له منځ ته راتللو وروسته دخارجي خبر رسولـو دآژانسونو د نمايندګانو دراجستر له پاره په باختر آژانس کې يوه اداره جوړه شوه اولايحه له ۵٤کال نه ترتطبيق لاندې ونيوله شوه، لکه چې له۵٤ کال نه دروان کال دثورترپای پورې دخارجي آژانسو شپږ تنو نمايندګانو نومونه ثبــت کړې دي، همداراز ددې څانګې وظيفه له لاندې نړيوالوآژانسونو سره دباختر آژانس داړيکو ټينګول دي :

دانګلستان درويټر ، دفرانسې دفرانسپرس دايټاليې دانسای، دشوروی اتحاد دتـــاس، ديوګوسلاويا دتانيوګ ، داتحادی آلمــا ن دجمهوريت دی. پی. آ، دهندوستان دسماچار دچکوسلواکيې دچې تې کا ، داولسې چيــــن دجمهوريت دسينهوا دخبررسولو آژانسونه .

داهم ښايي ووايو چې دتيرکال په اوږدو کې دباخترآژانس ځينې قرار دادونه دنړۍ لــــه

آژانسو سره نوی شوی اوپه نظرکی دی چی لهځینی نوروخارجی آژانسو لکه د تورکیـی داناتولیا اودکوریا دديموکراتيك جمهوریت له آژانسو سره تړونونه وشی اوخبرونه سـره تبادله کړی، همداراز دیوی موافقی له مخی دداخلی خبرویوه ، یوه کاپی دایران دراديو تلویزیون دملی اداری نمایندگی ته سپارلـه کیږی .

**دولتی مطبعی :**

دتیرکال په اوږدوکی دولتی مطبعی دالاندی خدمتونه ترسره کړی دی :

۱ـ دورځپاڼو ، جریدو، مجلو، موقوتواوغیر موقوتو خپرونو، دنشراتو درياست له خـوا دراليږل شوو مطالبو دچاپ په برخه کی یی تل مرسته کړی اوپه دی سربیره یی دالاندی خدمتونه هم ترسره کړی دی :

۲ـ دنولس ډوله درسی کتابو دچـاپ د فرمایشی منل چی تیراژیی له یوملیون ټوکو څخه اوړی اوزیاته برخه یی چاپ شـوی اودپوهنی وزارت ته سپارل شوی دی .

۳ـ دهیواددعلم اوپوهی لویانو دبین‌المللی سیمینارو له پاره دبیهقی کتاب خپرولودمؤسسی د۳۲ ټوکو آثارو چاپول .

٤ـ ددفترونو، تذکرو، کلیزو اوددرسی کتابو چاپ ٥٤٥٤١٦١ ټوکه .

٥ـ رازـ راز مطبوعی پاڼی اونور، ټـول ٦٧٤٥٤٥٣٧ـ پاڼی .

٦ـ دحروفی چاپ له پاره کلیشی (په بیلو، بیلو سایزونو) ۳۰۸۷۸ـ دانی .

۷ـ دآفسیټ دپلیټ له پـاره فلـم ٤١٨٥ـ فلمه .

۸ـ درسمی مؤسسو اونورو د ضـرورت وړحروفی اوکلیشه یی مهرونه ۲٤٠٩ـ طغرا.

دولتی مطبعه اوس ١٤٧ بیل، بیل آفسیټی دحروفی چاپ ، دورځپاڼودچاپ، دلینوټایـپ، مانوټایپ صحافی‌اوکاکسوټایپ‌ماشینونه‌اوورکشاپ لری . دانکشافی بودجی په تخصیص اودایران ددولت په مرسته سربیره دمطبعی داړتیاوړ یوشمیر نور ماشینونه هم تهیه کیږی چـی آفرونه یی رسیدلی اوددی ماشینوپه نصبولو سره دهغو ماشینوچی استهلاك شوی اویا د استهلاك په حال‌کی دی دیوی بر خی سنامانو تلافی کیږی . همداراز یو دکاستر ماشین دلندن دمونوټایپ له کمپنی څخه تهیه شوی اوپه کار لویدلی دی چی دمرکز اوولایاتو د حروفو په تهیه کولوکی استفاده تری کیږی، همداراز په بیلو، بیلو بنټو باندی دعنوانونو له پاره دپښتو اودری توروتهیه کولو پـه برخه‌کی چی دورځپاڼو اومجلو دصحافت لپاره ډیرارځښت لری اقدامات شوی دی. دلینوټایپ ددستگاه فعالیت په تیرکال کی تنظیم شـوی دی .

**دمطبعی دورکشاپ خانگه :**

دماشینوپه فعالولو ، په لینوټایپ پـوری دمربوطو پرزوپه جوړولو اودنورو تخنیکـی نیمگړتیا ؤ په له منځه وړلوکی یی فعالیت کړی دی. دپرسونل په برخه‌کی هڅه شوی چی دځوانانو له قوت څخه کار واخیستل شی، په‌همدی منظور ددوولسم ټولگی یوشمیرفارغان دفنی مامورینو په توگه استخدام شول .

په پخوانی برآورد دنوی نظروشو خو داحتمالی لګښتونو سل په سلوکی سنجش له منځه ولاړشی .

**سمعی اوبصری آمریت :**

په یوه کال‌کی دسمعی اوبصری آمریت دهیواد دښارونو اوکلیو په پنځه ویشتوبرخو کی ۱۴۸ سمعی اوبصری پروګرامونه اجرا کړی دی . داپرو ګرامونه داخباری، مستندو تربیوی اوپه خارج کی ددولت دښاغلی‌رئیس دسفرونو . دهیواد د مهمو انکشافاتو او یوشمیر نورو فلمونو له ښودلو، ملی سرود شعرونو، ترانو، سندرو، شعارونو، وجیزو او دلار ښودونو دمربوطو مطالبوله اوریدنو ، دعکسونو جمهوری بیرغو د افغانستان خلکوته دخطاب دوینا د جمهوری شعارو درلودونکو رسالو، ورځپاڼو، مجلو او نورو خپرونو له ویشلو څخه عبارت دی اومستند اواخباری فلمونه ۲۵۱۰۱۰ کسانو ته ښودل شوی دی .

دخلکو داذهانو په روڼولو، له عصری ژوند سره دټولنی داشنا کولو اودجمهوری دولت له اهدافو سره سم ملی اواجتماعی خدمتونه دخلکو درابللو (چی زموږ ټولنه په اوسنیو شرایطو کی دی ډول ډول خدمتونه ډیره‌اړه‌ده) په لاره‌کی دسمعی اوبصری خدمتو دخاص اهمیت په درلودلو سره دهیواد په اووکلن انکشافی پلان‌کی دسمعی اوبصری خدمتو د انکشاف اوتنظیم له پاره ځانګړی برخه وزکړه شوی ده . دهمدی ضرورت له مخی دسمعی اوبصری آمریت دیوه جامع اوعملی پروګرام په تدوینولودسمعی اوبصری وسایطونه په استفادی سره دعام المنفعه خدمتونو دپراخولو اوپه دی برخه‌کی دمشابه خدمتونو درامنځ ته کولو په برخه کی بریالی شو اودا پروګرام به په راتلونکو کلونوکی تطبیق شی . په‌دی پلان‌کی دلویو ښارونو اودولایاتو په مرکزونو کی په سمعی اوبصری وسایطودسنبالوکلتوری مرکزونو دتدویر اوتجهیز اود سیارو یونټونو چی دفلمونو دښودنی ګرځندتلویزیون په نویو وسایطو مجهزوی اودغړاو خبرونو د ویشنی ځانګی ولری له‌لاری داډول خدمتونه په نظر کی نیول شوی دی .

**افغان اعلانات :**

دافغان اعلاناتو اداری په‌تیرکال کی‌دلوحوی راډیویی، دورځپاڼو اوسینماګانو داعلانوله‌لاری د۱۳۵۴ کال دکب ترپایه پوری (۲۶۱۰۶۵۰۸) افغانی ګټلی دی چی دتیرکال په تناسب ددی مؤسسی په عایداتو کی (۱۳۰۱۱۰۳۷)افغانی زیاتوالی راغلی دی .

**کلتوری خدمتونه :**

دهیواد دکلتور له ساحه سره اړه لری، کلتوری خدمتونه دملی فرهنګ دراژوندی کولو، دفرهنګی اړیکودپراخولو، د تاریخی ګوټونو، دروڼولو اوهغو ټولو فعالیتونو څخه‌چی دهیواد دکلتور له ساحی سره اړه لری ، عبارت دی .

دفرهنګی روابطو مدیریت د فرهنګی مسایلو دارتباط دمرجع په توګه دا لاندی دندی ترسره کړی دی، له‌لاندی ممالکو سره دفرهنګی، علمی اوتخنیکی مرستو دپروګرامو

تسوید اوترتیب :

۱ــ دافغانستان اومصردجمهوریتونو ترمنځ فرهنګی اوکلتوری تړون ۱۳۵٤ .

۲ــ دافغانستان او رومانیا تر منځ علمــی تړون ۱۳۵٤ .

۳ــ دافغانستان اویوګوسلاویا تر منــځ دفرهنګی همکاری تړون ۱۳۵٤ .

٤ــ دافغانستان اوپولیند ترمنځ دعلمی او تخنیکی همکاری تړون ۱۳۵٤ .

۵ــ دافغانستان اوترکیی ترمنځ د۷٦ــ۷۷ کلوله پاره دعلمی، فر هنګی او کــــلتوری پروګرام تړون ۱۳۵٤ .

٦ــ دافغانستان اوهند ترمنځ د۷۵ــ۷٦کلو له پاره کلتوری تړون ۱۳۵٤ .

۷ــ دافغانستان اومغلستان دجمهوریتــو نو ترمنځ دهمکاری تړون ۱۳۵٤ .

۸ــ دافغانستان اوبلغاریا ترمنځ دکلتــوری تړون بیانوی کول .

۹ــ دافغانستان اورومانیاترمنځ دهمکار ی تړون .

دهیأتو اوهنرمندانو تګ اوراتګ چـــی دکلتوری تړونوله مخی شـــو ی : یوتـــن چکوسلواکیا ته تللی، دوه تنه له هنده اویوه ډله هنرمندان له شوروی اتحاد څخه راغلی دی .

ددوستی دټولنی هیأتونه چی دشـــورو ی اتحاد ددوستی دټولنی په بلنه هغی هیوادته تللی دی :

۱ــ یودری کسیز هیأت دشوروی اتحـــاد ددوستی دټولنی په بلنه هغی هیواد ته تللی دی .

۲ــ دشوروی اتحاد ددوستی دټولنی‌رئیس کابل ته راغلی دی .

۳ــ دمصر دعربی جمهوریت ددوستـــی د ټولنی مرستیال کابل ته راغلی دی .

هغه هیأتونه چی سیمینارونو ، غونډو او نندارتونونه په رسمی توګه بلل شوی دی .

۱ــ سیمینارونوته : برلیــن ته یوتـــن ، بلغاریاته یوتن، هندوستان ته شپږتنه، ایران ته یوتن، ټول نه تنه .

۲ــ کنفرانسونو: ریاض ته دوه تنـــه ، مکسیکوته یوتن، جدی ته یوتن، پولند ته یوتن، هندته یوتن، ټول ٦ تنه .

۳ــ غونډوته : آسترالیاته یوتن، جاپان ته یوتن، ټول ۲ تنه .

٤ــ دعوتونه : امریکا ته دوه تنه، شوروی اتحادته دری تنه، یوګوسلاویاته شپږ تنـــه هنرمندان، ایران ته یوولس تنه هنرمندان، پاریس ته یوتن، ټول ۲۳ تنه .

۵ــ دهند نندارتون ته : دوه تنه .

دنشراتو ریاست ته دهغو آلمانی، امریکایی هالیندی، هندی،جاپانی، برتانوی، آسترالیایی یوګوسلاویایی: ورځپاڼو لیکونو، ژورنالیستانو پوهانو، خبریالونو، عکاسانو اوفلم‌اخیستونکو وریپیژندل چی افغانستان ته راغلی دی .

دچکوسلواکیا، کوریا، چین اولسی‌جمهوریت جاپان اوبلغاریا دملی ورځو په مناسبت‌ددوی دسفارتونو دفلمودننداټونو دجوړولو ترتیبول اوپه کابل ننداری کی ددوستی د ټـــولنی

دغونیو جوړول .

دایتالیا، امریکا، شوروی اتحاد، هنـــد، فرانسي، برتانیې یوشمیر لرغون پیژندونکو ته چې دلرغون پیژندنې عمو مي مدیریت تــــه دتړون له مخې کال په‌کال افغانستان ته وخي لازمې اسانتیاوې برابرې شوې دي .

**آریانا دائرة المعارف :**

دکلتوري پالیسي له مخې دې اداري موقع ومونده چې دپښتو دائرة المعارف په خپرونه کې چټکتیا راولي اودلیکوالو مرسته وغواړي، دآریانا دایرة المعارف مفردات دتیرکال پـــه چنګابن کې د (خ) ترردیف پورې چــــا پ شوی اود ٥٤ کال ترپایه پورې ٢٤ او ٢٥ جزء له پنځم ټوك سره چاپ شول اوده٥کال له‌پیل نه تراوسه پورې ٢٦ او٢٧ جزء ونه هم خپاره شوي اوپاتې برخه به یې دروان‌کال دچنګابن ترپایه پورې چې ټول مفردان یــې تهیه اوبشپړشوي. خپره شي .

**تاریخ ټولنه :**

تاریخ ټولنې دهیواددتاریخ دبیلو- بیلـــو کوټونو په برخه‌کې په خپلوخیړنو او پلټنـــو سربیره، دآریانا دری میاشتنۍ مجله (په‌پښتو اودری ژبو) اودافغانستان دری میاشتنۍ‌مجله (په انګلیسي اوفرانسوي ژبو) هم خپری‌کړی دي اوهځه‌یې کړې چې ددواړو مجلو علمـــي سویه لوړه کړي . دکال په اوږدوکې یـــې لاندېنې تاریخي آثار هم خپاره کړي دي : (تیریادونه (دهیواددتاریخي ځایونو اوکسانو په باب دښاغلي رفیع دشعرونو مجموعـــــه)، رساله های خط مجنون‌رفیقي هروي، درضامایل په تصحیح، ګازرګاه دپیرهرات مدفن، خواجه عبدالله انصاري او دافغانستان نور صوفیان (انګلیسي) اوهم یې دالاندې آثار یا دچا پ له پاره چمتوکړي اویاتر تالیف لاندې دي : له روسي ژبې څخه دافغانستان دتاریخ ددوهم ټوك دځوفصلونو ژباړه، دکورګاني تیمـــور د لښکر کښیورساله، صنایع افغانستان له‌روسي څخه ترجمه، فهرست کتابهای چاپی‌افغانستان رساله چشتیه اودافغانستان دکوشانیانو پــــه باب څیړنې . دتاریخ ټو لنې اختصاصــــــي کتابتون هم دکال په اوږدوکې تقویه شوی ، علمي اومسلکي کتابونه اومجلې یې له داخل او خارج څخه ترلاسه‌کړي اوهم یې دحکـــیم ابونصرفارابي ، دقیقي بلخي اوخواجه عبدالله انصاري هروي دلمانځنې په چارو کې برخه اخیستې ده .

**دلرغون پیژندنې اوتاریخي آبداتو دساتنې اداره :**

ددې اداري خدمتونه په دریو برخو کـــې پرمخ بیول شوي دي، هغه چاري چه ګاریـــې ددې اداري دګارکوونکو په وسیله تر سره شوي دتاریخي آبداتو ترمیم اوکیندنې دي . دلرغونو آبداتو دترمیم په برخه کې دهـــرات دآبداتوترمیم چې دآسیاله لویو هنري اوادبي مرکزو څخه دي، اودغوریانواوتیموریانوددوری دودانیودجوړښت ډول زموږ ویاړمن آثار دي، دیوې برخې ترمیم هم شامل دي، دګازرګاه شریف دترمیم کارته دوام ورکړی شوی اود لویدیځ رواق ترمیم یې دموی مبارك او نمکدان لورته غزول شوی دی .

دګازرګاه دباموِنو اودهرات دجا مع جـومات دختيځ رواق دمقدماتي ترميم کاردهغه دعوايدو په پيسو پيل شوی دی، همداراز دی اداری دکندهار دمبارکي خرقي دبام په مقدماتي ترميم پيل کړی اودبست رواق دترميم له پاره هم تجويزشوی شودارواق په خپله اصلي بڼـه وساتل شي .

دوهمه برخه دګټوپروژوپه باب ده چــي په‌هغې‌کي دباميانو د ٥٥ متره بودا او هغه ته دورخيرمه مغارو ترميم شامل دی، د٥٥متره بوداترميم دهند ددولت په مرسته اودافغاني کارکوونکو په همکاری ترسره کيږی . پــه لومړی مرحله کي دواوری اوباران داوبو د انشعابي ودانول درواق په پاسني برخه کي ترکارلاندی ونيول شول چي کاريي تقريبا ٩٠ په سلوکي بشپړشوی دی اوپه دوهمه مرحله کي دبودادپښودترميم اوکلکونو او دځينـــي مغارو دپاکولو په برخه کي اقدام وشو .

دخواجه پارسا اودچکريو دځلي کار هـم دګټوی پروژی له‌کارو څخه دی، دخواجه پارسا دآبدی دترميم‌کار چي دزاړه بلخ دتمدن لــه شهکارونو څخه شميرل کړی په بريالیتو ب پرمخ ځي، دچکريو دځلي دترميم‌کار چــي دکابل دسيمي په جنوبي بالاحصار کي ولاړدی دبرتانيي دلرغون پيژندني هيـــات ته‌سپارل شوی چي کاريي دوام لري دامينار په بودايي دوره پوری اړه لري اودشيوکيو دآبداتو له ډلي څخه دی .

هغه کيندني چي دافغا ني لرغون پيژندونکو په‌وسيله پرمخ بيولی کړی دهـــغوی داونبی غونډی په لرغوني ساحه پوری اړه لـــری ، اونبي غونډی دهيواديوازيني لرغوني ساحه‌ده چي ټول غير منقول آثاريي په خپله ساحه‌کي دننداري له پاره چمتو شوی اوپه‌دی آثـارو کي داسي لابراتواري موادکارول شوی چــي دجوی پيښنو په مقابل کي پياوړتيا مومی او له‌آني خطر څخه‌نجات‌پيداکوی. دکيندلـــو په ورروستي دوری کي (٤٢٠٠) متره مکعبه خاوره چي دکيندنو دلوميړيو اووکلونو له خـــاوری سره معادله ده کيندل شوی اوډير غوره آثار خصوصا يوه منقوشه مناره تری راولو څــه شوه چي دهيواد دختيځ يوازيني منقوشـــه مناره بلله کيږی، دافغان اوشوروی کيندنـو خصوصا ددولت آباديه برخه ددلوژين په تپه کي دوام وکړ، دحفرياتو په دی دوره کـــي ځيني عمده آثار لکه ديوالي نقشونه ترميم اوکابل موزيم ته وسپارل شول .

هغه کيندني چي دخارجي هياتو په وسيله کيږی اودلرغون پيژندني نمايندګان يي خارنه کوی له لاندی کيندنو څخـــه عبارت دی : د (آی خانم)کيندني دفرانسي دلرغون پيژندني دهيأت په وسيله، دکندهار دزاړه ښارکيندني دبرتانيي دلرغون پيژندني دهيأت په وسيله، دغزني دسرداردغونډی‌کيندني دايټاليي دلرغون پيژندني دهيأت په وسيله، دنيمروز دولايت دتاراوسار اودغلغلي دښار کيندني دامريکـا دسمنت سونيين دلرغون پيژندني دهيـــا ت په وسيله .

**دموزيمونو عمومي مديريت :**

دی اداری په‌کابل اوولاياتو کي د خپلــو

موزیمونو له لاری دهیواد دتاریخی آثارو دپیژندنی اوښودنی په برخه کی اود خینــــی آثارو دترمیم له لاری خپل خدمتونه ترسره کړی دی . ددی په څنګ کی دکابل موزیم دالحاقیه ودانۍ کارپیل شوی، غروته یی اداری دفتر، دترمیم خانګه، دعکاسۍ خانګه اودآی خانم دآثارو له پاره دننداری کوټی جوړی شویدی، په څلم کی دجهان نما مانۍ دترمیم کار دشمالی سیموله پاره دیوه عمومی موزیم دجوړونــــی په غرض دوام کړی اوپه دی ډول به یی عمومی ترمیم ډیروخت وغواړی . دغزنی دموزیم دنوی ودانۍ ډېره دغزنی په نوی ښارکی دروان کال دچنګابښ په دریمه نیټه داطلاعاتو او کلتــور دوزیرپوهاند دکتور نوین په وسیله کیښودله شوه .

دتاریخی آثارو دزیاتی معرفی په غرضــــی یوشمیر معتبر تاریخی آثارددی وزارت پـــه ننداړتون کی دجمهوریت ددوهم بختور جشن په ورڅوکی دننداری له پاره کیښودل شول . ددی له پاره چی له هیوادنه دارښتناکو تاریخی آثارو دوتلومخه ونیوله شی په دی برخه کی خاص تدبیرونه ونیول شول څوتړولی مربوطی دایری په دی کار کی پوره برخه واخلـــــی . همداراز یی شپږډوله پست کارډونه چـــاپ کړی اودکابل موزیم لارښودیی بیا خپورکړی دی .

**دپښتودپرمختیا اوپیاوړتیا آمریت :**

دغه آمریت په خپله برخه کی د پښتــــو دانکشاف له پاره دامکاناتو په حدود کی کار کړی دی اوپه دی ترڅ کی یی دپټی خزانی دکتاب قلمی نسخه په آفسیتی توګه چاپ اوخپره کړه. دخواجه عبدالله انصاری د زرمی کــــالیزی دسیمینار په نمانځه کی یی د(خواجه عبدالله انصاری اودده مناجاتونه) په نامه یو کتـــاب خپور کړ. (دسنهچ نه ترتلویزیون پوری) پــــه نامه یوکتاب دچاپولو دپاره ترمطالعی لاندی دی، داکتاب چی دډرامودمختلفو ډولونو په باب بحث کوی په پښتو ژبه کی دنوی ادب او هنر درودتیا اوپالنی له هدف سره زیاته مرسته کوی.

دمعیاری پښتو دودتیا ددی آمریت دغتـــو هدفونو څخه دی ددغه مقصد دپاره یی پــــه بیلو، بیلو تاریخی دوروکی دپښتو دنثر د بدلون اوتطور بیلی، بیلی مرحلی تر مطالعی لاندی نیولی دی .

دغه اداری دمنظم فعالیت له پاره داطلاعاتو اوکلتور وزارت تصمیم ونیو چی یوه مجلــه د(جمهوری پلوشه) په نامه په سلو مخوکی چاپ کړی اولومړۍ ګڼه یی دجمهوریت ددریمی کالیزی په مناسبت خپره شی .

په عین حال کی داآمریت دخینو مطالبو د تهیه کولو اود پښتو ژبی په باب دمسلکـــی مشورودورکولوپه ساحه کی دوزارت دخینـــی مربوطو ادارو سره همکاری کړی ده .

**دادب اوفولکلور آمریت :**

دادب اوفولکلور آمریت په تیرکال کـــــی خپله وظیفه دهیواد دفولکلور دبیلو، بیلوبرخو درونیولواود مطالبو دراټولولو اوخپرولو پـــه وسیله ترسره کړی ده اودترانه های کهسار دکتاب خپرولو په وسیله یی دوه زره دوبیتی

اونوراولسی شعرونه خوندی کــړی دی، د فولکلوری افسانو مجموعه یی (په دری) او د فولکلوری کیسو اوافسانو مجمو عــه یــی (په انگلیسی) دچاپ له پاره چمتو کړی دی، همداراز دکاشی جوړولو اودپوزی او بدلوپه لاسی صنعت څیړنه شوی ده، همداراز دمتلونو اونورو فولکلوری موادو راټولو کار دوام لری، په‌دی سربیره دفولکلور مجلی فو لکــلوری ترجمی او مضمونونه خپاره کړی او د لاسی صنایعو اودهغه دسامان، رسمونو او دودونو په باب یی مطالب راغونه کړی اویوه برخــه خپاره کړی دی .

**دافغانفلم مؤسسه :**

**دپرودکشن مدیریت :**

دی مؤسسی دپرودکشن دمدیریت له‌لاری د۱۳۵٤کال له سراود ۱۳۵۵ کال ترپیل‌پوری نولس اخباری فلمونو ددولت د بناغلی رئیس او صدراعظم دداخل، هند، بنگله دیش، عراق ایران دسفرونو ددووکومنتریو دوه فلمونه د پغمان اوبشر دمیشته کیدلوپه نامه، دوه هنری فلمونه د (مجسمه ها میخندد) او (د انجمن رهنمای خانواده) په نومونو اویو تبلیغا تی فلم دملاریا سره دمجادلی په برخه تولیــد کړی اودننداری له پاره یی وړاندی کړیدی.

دفلم دراوړلو مدیریت دتړ ونوله مخــی امریکایی، اروپایی، ایرانی، دختیځی اروپا او هند فلمونه راوړی، ویشلی اودهیواد پــه سینماگانو کی دننداری له پار ه وړانــدی کړی دی .

دهندی فلمونو دراوړلو تړون دافغانستان دجمهوری دولت اودهنددجمهوری دولت ترمنځ لاسلیك شو اودهندی نویو فلمونو راوړل پیل شول دتړون په لومړی کال‌کی به څلویښت نوی هندی فلمونه راوړل شی، دامریکایــی اواروپایی فلمونو دراوړلو تړون هم شو ی اوله نوموړو فلمو څخه یی یوشمیر راوړل شوی چی دتړون ترپایه پوری به اتیا فلمونه راوړل شی .

له ختیځی اروپا څخه هم دفلمونو دراوړلو تړون شوی اوددی فلموراوړل چی دری ترجمه هم لری ، دوام لری، دیوه بل تړون له‌مخی د (روز های دشوار) نومی افغانی فلم څلور کاپی دشوروی اتحاددفلم دسوف‌اکسپورت په کمپنی خرځی شوی چی له بشپړیدو وروسته وراستولی کیږی .

راوړل شوی فلمونه چی دننداری له پــاره وړاندی شوی په لاندی ډول دی :

۱ـ امریکایی اواروپایی فلمونه، په پاړسی دوبله (٤۳) پروگرامه .

۲ـ هندی فلمونه اته پروگرامه .

۳ـ دختیځی اروپا فلمونه له‌دری کامنتری سره (۱۵) پروگرامه .

٤ـ ایرانی فلمونه (۲۳) پروگرامه .

**دفلم دسانسوراومراقبت مدیریت :**

څلویښت اروپایی اوامریکایی فلمونه ، ۲۲ ډوله ایرانی فلمونه، ٤٦ ډوله روســی فلمونه،اووه‌ډوله‌هندی‌فلمونه، دوه‌ډوله‌انگلیسی فلمونه اواتلس ډوله دمختلفو تجارتی اعلانو فلمونه یی دفلم دسانسور محترم هیــأ ت ته ورښودلی دی، ٤٦ دانی ترافیکی سلایدونه

او۸۲دانی لەناروغیوسره دمجادلی سلایدونەیی دتبلیغ اودعامه ذهنیت دروښانولوله پــاره دهیواد سینماګانو ته استولی دی اوهم پــه سینماګانوکی داسانتیاؤ دبرابر ولو په غرض شفاهی او کتبی مشوری ورکړی شوی دی .

دافغان فلم دزیاتی پیاوړتیا په منظوردفلم جوړولو دوسایلو دمدرن کولو، درنګه لابراتوار دتهیه کولو، دفلم ددوبلاژ دپه نظرکی نیولو سره دتخنیکی مدیریت له خوا دافغان فلــم اووه‌کلن انکشافی پلان ترتیب شوی دی .

دافغان فلم تخنیکی مدیریت دهراړخیــزو تماسودرلودلو له مخی داړتیاوړ وسایـــلو د تولیدکوونکو کمپنیو خصوصیات او آفــرونــه همدااوس هم ترلاسه کړی دی .

هیوادته دسینما دوسایلو دراوړلو د غیر اقتصادی اوتخنیکی ګډوډیودمخنیوی له پــاره دافغان فلم تخنیکی مدیریت دسینما دوسایلو دباوروړکمپنیو دپیداکولو له پاره د مستقیمو تماسونو له لاری اقدام کړی اوددولتی اوغیر دولتی مؤسسو داستفادی له پاره دی مدیریت دیوشمیر باوری کمپنیو ببی اویتی لەمسلکی ملاحظی نه وروسته بیلو، بیلو مؤسسو او دستګاؤ ته سپارلی دی .

په ٥٤ کال‌کی دافغان فلم تخنیکی مدیریت دهیواد دسینماګانو دوسایلو دسمون اوښارنی په باب دتدویر اومراقبت دلایحی له مخــی پیشنهاد وکړچی له هغی وروسته دافغــان فلم تخنیکی هیاتونه دهیواد په مرکزاوولایاتو کی په کار بوخت شول او د افغــــانستان دسینماګانو دتخنیکی سمون اولاربښودنی پــه برخه‌کی مرسته وکړه، ددی په څنګ کی‌یی له نورودولتی مؤسسوسره ددوی دسینماګانو دوسایلو په سمون اوترمیم کی هم لاس‌کړی دی . اوهم یی د(مجسمه هامیخندد) دنومی‌فلم په جوړولوکی چی په آریانافلم پــوری اړه لری پراخ تخنیکی خدمتونه ترسره کړیدی .

**دعامو کتابخانو آمریت :**

(٤٨٣٢) توکه کتابونه‌د(٤٣ـ١٩٠٩١)افغانیو په بیه دولایاتو اوداحصائیی مدیریت په‌هغه اوزیار له نشراتی منابعوڅخه په وړیا توګه ترلاسه شوی دی اود ٥٤ کال له چنګاښ نه د١٣٥٥کال دغویی ترپای پوری ټولی‌ورځپاڼی جریدی، مجلی اودهیواد نور نشرات دمرکز اوولایاتو عامه کتابونوته استول شوی دی .

دښاروالیو اوولایاتو هغه مرستی چی دعامو کتابتونو دپیاوړتیاله پاره یی کړی دی :

الف ـ دننګر هار ولایـــــت ښاروالـــی ٤٥٢٢٠ـافغانۍ .

بـ دچاریکار و ښاروالی ٢٠٠٠٠ـافغانۍ.

جـ دروزګان ښاروالی ١٤٩٦١ـافغانۍ .

دـ دکوهدامن میربچه‌کوټ په ٥٥کال کی ١٠٠٠٠ـافغانۍ .

اوهم دجوزجان دولایت یــوه پــوهنپـال (٤٩٨١) افغانۍ دهغی ځای‌دکتابتون دپیاوړتیا له پاره مرسته کړی ده . دجوزجان ، هلمند، بلخ، فاریاب، فراه، هرات، بادغیس او بغلان دولایاتو عامه کتابتونونه په مدرنو وسایلــو مجهزشوی اوګټور اودلوستو وړکتابونه دخلکو داستفادی له پاره یکی ایښودل شوی دی ، دیاتی ولایتی کتابتونوله پاره یوزیات شمیر

الماری، میزونه، څوکۍ اونورلوازم چمتـــو شوی دی. (۱۵۰) ټوکه چاپـی کتابونـــه په (٦٨٨٤٨) افغانۍ دمرکز اوولایاتو دعامـــــو کتابتونوله پاره پیرودل شوی دی .

(٤٢) پایی الماری په (۱۷۳۰۰۰) افغانۍ، ۱۳۰ پایی څوکۍ په (٦۱۱٦۰) افغـــانۍ ، ۲۵ پایی دمطالعی فلزی میزونه په(۲۱۸۳۰) افغانۍ، اولس پایی دکتلاك دکارت فلزیجعبی په (۳۰۰۰) افغانۍ رانیول شوی دی .

(۲۰۲) ټوکه خطی کتابونه په (٢٤٤١٦٠) افغانۍ او (٥٢٤) قطعی سندونه دملیآرشیف له پاره په (٥٦١٥٠) افغانۍ اخیستل شو ی دی .

دخطی کتابو اوملی آرشیف ته دسندونو د راغونډونی دارخ موندنی کمیټی چی یوشمیر پوهان اوکتاب پیژندونکی برخه پکی لـــری هره اوونۍ غونډه کړی چیکتابونه اودآرشیف اسناددهمدی کمیټی لهارزیابۍاو بییاپیښودنی نه وروسته اخیستل کیږی . همدارازداطلاعات اوکلتور دوزارت دلارښودنی له مخی دملـــی آرشیف لایحههمدیو شمیرپوهانو پـه وسیله جوړه شوی اوهیله ده چی ډیرژر خپل قانونی مراحل ترسره کړی .

دریفرنس ، مطالعی، افغانستان پیژندنی ، دځوانانو دکتابتون اودتوزیع دمدیریت او هم دولایاتو دځینی عامهکتابتونونو کتابونهداوسنیو فنیاوعصریاصولولهمخیکارتاوکتلاک شویدی اوهم (٥٦٧٠) ټوکه کتابونه دمرکزی ځانګواو (۱۰۰۰) ټوکه کتابونه دولایاتو دعامهکتابتونو له پاره دکتلاک اوتصنیف دمدیریت لـه خوا کارت اوکتلاك شوی دی. همداراز دافغانستان په باب هغه مضمونونه چی په اصـــلاح او جمهوریت کی له شروځخه تر۱۳۵۳کال پوری خپاره شوی په ځانګړی توګه تهیه شـــوی دی

یوشمیر خارجی اوداخلی پوهانو د خطـی کتابتون له کتابوځخه استفاده کړی اوهمداراز دخطی کتابتون مدیریت دمولانا بلخی، امیر خسرواوخواجه عبدالله انصاری دسیمینارو د ګډون کوونکو پوهانو دارتیاوړ مواد ورتهتهیه کړی دی اوپهدی سیمینارو کی یی فعاله برخه اخیستی ده .

په روان کالکی دتوزیع دځانګی څخـــــه ۱٤زروتنومشترکینو ددووهفتو دپاره کتابونهپه امانت ورول وړی اود ۱۳۵۵کال په دوولوموړیو میاشتوکی یوازی (۹۰۰۱) تنه مشترکین پری ورزیات شوی چی ټول(۲۳۰۰۱) تنه مشترکین لری . دمرکزدعام کتابتون دریفرنس، مطالعی، مجلو اوافغانستان پیژندنی دځانګو مراجعین (۹۸٥٦٤) تنوته رسیدلی اود ۱۳۵۵کال پـه دوولوموړیو میاشتوکی دپوهنی دریفورمونو له مخی (٤۱۰۰۰) کسانو دیادوشوو ځانګو لـه کتابوڅخه استفاده کړی ده .

دځوانانو دکلب له سینمایی ښودنو څخه ((٦٥۰۰۰) تنه ماشومانو استفاده کړی ده او په ٥٤کال کی دځوانانو د کلب هنری ډلـی دموروزځی، دښځو دبینالمللی کال اونـــورو مراسمو په مناسبت دځوانانو په کلپ کـــی کنسرتونه اجرا کړی اوهم یی په ذهنیمسابقو کی په کابل ننداری کی برخه اخیستی ده .

ددې له پاره چې کتابتونو نه وکړای شي خلکوته زيات خدمتونه ترسره کړي په دې کال کې دکتابتون تشکيل پراخ کړي شواوهم دکاپيسا اوکونړ په لويواولسواليو کې د دوو کتابتونو دپرانستل کېدلو ترتيبات ونيول‌شول.

**دمطبوعاتي جايزو آمريت :**

د۱۳۵٤ کال دجايزو دوړونکو دټاکلو لـه پاره دمطبوعاتي جوايزو يوه عالي کميټه‌جوړه شوه، دکانديدشويو هنري اوکتبي آثارو پـه باب دپوهو کسانو دنظريو له راټولولووروسته دکلتوري اومطبوعاتو جايزو عالي کمسيو ن دوروستني تصميم په غرض غونډه وکړه، دې عالي کميسيون چې داطلاعاتو او کلتور دوزير پوهاند ډکتورنوين تر رياست لاندې غونډه وکړه دنظرياتو دارزښت موندنې اوپه هغوباندې دبحث له کولونه وروسته يې د۱۳۵٤ کـــال دجايزو مستحقين داجتماعي اوبشري علومو په برخه‌کې (دامير‌عليشيرنوايي) دجايزې له پاره اودښکلو هنرونو په برخه کې درحمان بـابـا اوبهزاد دجايزو له پاره وټاکل .

دهيواد دجمهوريت ددوهم بختورجشن پـه رانژدې کېدوسره (د٥٤ کال د چنگاښ ٢٤) دجايزو دوړونکونومونه اعلان شول اووړونکو ته‌جايزې په دوودبشري اواجتماعي علومو اود ښکلوهنرونو په برخوکې دعدليه وزير دکتور عبدالمجيد په وسيله په داسې حال کې چې داطلاعاتو اوکلتور وزير پوهاند دکتور نوين حاضرؤ، ورووېشلې شوې .

دجوايزو آمريت لومړی ځل دلاسي‌صنايعو په‌برخه کې چې اکثريې دهيواد دهنرمند و ښځمنودگوتو محصول دی مخصوصي جا يزې دښځود بين‌المللي کال په وياړ دهيوادښځو ته ورکړې .

ددې له پاره چې په آينده‌کې دهيواددااصيل کلتور دښکارندوی په توګه دښکلو هنـــری آثارو يوه خزانه په لاس‌کې وی، له دې‌ټولو آثارونه چې په ۱۳٥٤ کال‌کې يې جايـــزې وړې دی يوه گالرۍ چې د هيواد دهنرمندانو دخلاقواستعدادونو ځرګندويه وی، جوړيـــږي ددې په څنګ‌کې دمربوطو دايروپه مرستـه دهغو آثارو دچاپ له پاره اقدام وشوچـــی جايزې يې گټلې دي اود ۱۳۵۵کال دجايزو فهرست دجايزو دعلاقمندانو دخبرتيا له پاره دمرکزاوولاياتو په ورځپاڼوکې خپور شو .

ځرنګه چې دماشومانو دروزنې اوزده‌کړې په باب دماشومانو دخلاقو استعدادونو دپالنې په برخه‌کې، دماشومانودذهني اوروحي روزنې په ساحه کې اساسي څيړنه نه‌ده شوې‌دهيواد دليکوالوله پاره د۱۳۵۵کال په جايزو کـــې په دې برخه‌کې اختصاصي جايزې په نظرکې ونيولې شوې .

دجوايزوآمريت په ۱۳۵۵کال (۳۰) ټوکـه آثار(ليکنه اوژباړنه) د:کيسه ليکنې، ژورناليزم ادبي څيړنو، فولکلور، تاريخي موضوعاتـــو، ښوونې اوروزنې، دماشومانو دسا پوهنې او نورو‌په باب دهيواد له ليکوالو او ژباړونکو څخه ترلاسه کړي اوداکتابونه يې دارزښ‌موندنې په غرض مربوطو کميسونو ته سپارلي دي .

همدارنګ دجوايزو آمريت تيرکال دوه‌هنرې ننداړتونونه داير کړي دي.

**افغان ننداري :**

دی مؤسسې دتیرکال په اوږدوکې ځلــور نمایشنامې دستیج مخې ته راوستلې اوپه‌دې سربیره یې دخارجې هنرمندانو د کنسر ت په اجراکولو، شام هنر اودیوشمیر فلمونوپه ښودلوکې له خارجې اوداخلي مؤسسو سـره مرسته کړې ده، په دې توګه ددې موسسې خدمتونو دهنرې استعدادونوپه روزنه او د هنر له پاره دښې زمینې برابرولو په برخه کې دوام کړی دی

**دموسیقی آمریت :**

دې اداری د (کاروان سرود) او (یك شاخه وچندګل) پروګرامونه په ښه او منظمه توګه اوریدونکـــوته رسولی دی . همدا راز یـــی د(شام هنر) ښودنه جوړه کړه، دموسیقــــی آمریت هڅه‌کړې چې نوی ځیری معرفی کړی اوهم یې دافغانی اصیلی موسیقی دمعرفـی له پاره دموسیقی دهنرې تبادلو او تماسونو له لارې ددې زمینه برابره کړې چې دنړۍ دموسیقی دمرکزونو له غوښتنوسره سم نوی محلی فولکلوری پارچې دافغانی موسیقی پــه باب دښپړومطالبو اودآهنګونو له نوټیشـــن سره یوځای دعلاقې وړمراجعوته واستوی او دلته کولای شوچې دپاریس دیونسکو، دتوکیو دیونسکو، دمصر دمتحد عر بی جمهوریـــت دپوهنتون، دبمبئی دپوهنتون، دامریکادمتحده ایالاتو دعلمی مرکزونو یادونه وکړو .

**دښکلو صنایعو آمریت :**

دیوی هنری مؤسسې په توګه یې خپلــو خدمتو ته دوام ورکړی اوله دې جملې څخــــه دتیرکال په جمهوری جشن کې داطلاعاتو او کلتور دوزارت دننداړتون په ترتیب کـــــی دنمایشونو ځانګې ددیکوریشن په برخه کې دډیزاین ځانګې په برخه کې اوفرم جوړونې ځانګې دترکاڼۍ په برخه‌کې کار کـړی دی .
ددې آمریت دنمایشونو ، فرم جــــوړونې، دنقاشې کورس دهیواد دتاریخي ځیرو لکه‌ـــ
مولاناجلال الدین بلخی ، امیرخسرو بلخی دهلوی، ابونصر فارابی ، دقیقی بلـخـی او خواجه عبدالله انصاری دډرناوی په مراسمو کې برخه اخیستې اودنوموړو تاریخي کسانو اته نیم متره، دری نیم متره اودوه نیم متره ځیرې یې انځورکړې، چوکاټ‌کړی او دراډیو افغانستان محمود طرزی، کابل ننداری اونورو سالونو کې یې نصب کړی دی .

همداراز دې مؤسسې دښځو دبین المللــی کال دسمبول اودهغه چوکاټ، دافغان ننداری دآمریت ږیکلامونه، دعامه کتابتونو دآمریت داړتیاوړ پورتریتونه، دافغانفلم دسلایدونـو دجوړولو له پاره دراز، راز حشرو رسمونه، ددقیقی بلخی اوخواجه‌عبدالله انصاری دغونډو دګډون کوونکو لایحې اودنقاشۍ تابلوګانــی هم تهیه کړی دی .

ددې آمریت دنقاشۍ کورس سره له‌دې چې یوتربیوی کورس دی خود خپل تربیوی فعالیت په څنګ کې یې دهمدې یوه کال په اوږدوکې تریوسل اوځلوینښت زیاتې دروغنی رنګ تابلوګانې تولید کړی دی .

دښکلو صنایعو دآمریت دتجسمی هنرونو کورس ترسل زیاتې مجسمې په بیلو سایزو

اورنگوجوړوی کړی دی .

دخاورینولو نبوډیزاین اورنګول ، دټیپیک ډیزاین په بڼه، دخینی مجلواو کتابو ډیزاین دپوسترونو، ګرافونو اودخطاطی دچارو پرمخ بیول دډیزاین دڅانګی له فعالیتونو څخه‌دی.

دفرم جوړولوڅانګی اوولس ساده اوډیزاین کاری شوی فرمونه په بیلو، بیلوسایزوجوړ کړی اوترسل زیات چوکاټونه اودری دانی درسامی موډلونه هم ددی څانګی له کاروڅخه دی .

**اداری ریاست :**

دبیلو، بیلوڅانګولەلاری دی اداری هڅه‌کړی ده چی ددی وزارت‌اطلاعاتی‌اوکلتوری خدمتونه په خپل ـ خپل وخت ترسره شی او زیـــار ایستل شوی چی په کارونوکی له چټکتیااوپه لګښتونوکی له صرفه جویی څخه‌کار واخیستل شی . په‌همدی وخت کی چی دااداره پـــه مامورینو پوری دمربوطو چارو پرمخ بیـو ل په غاړه لری وظیفه لری چی دمربوطو دایرو عادی اوانکشافی بودجه تنظیم اوپه هغی‌پوری مربوط اجراآت آسانه کړی . دمرکز دنشراتی مؤسسوداداری کار وداسانتیا دپاره. څانګړی اداری اداره په‌کار بوخته ده، همـــداراز د مطبوعاتو کلوپ دسیمینارو دغونډو ترتیـــب د. ودونو دمحفلونودجوړیدو غوښتنی‌اودوزارت هغه کارونه چی له اداری پلوه له کلوپ سره اړه لری، توسره کړی دی .

**یادونه :**

داطلاعاتو اوکلتور وزارت دهیواد دستـرو شخصیتونو دیادونی په لړکښی تیر کــــال دابونصر فارابی، دقیقی بلخی اوخواجه عبدالله انصاری دمړینی دکالیزی په ویاړ سیمینارونه جوړ کړل . اوهم په نظرکښی دی چه‌داطلاعاتو اوکلتور وزارت دپښتو دپرمختیا او پیاوړتیا آمریت له خوابه په نژدی راتلونکی وخـــت کښی «په وروستیو دووپړیو کښی دپښتـــو دچاپ شویو آثار سیمینار» تر سرلیك لاندی یوسیمینار جوړ شی .

همدارنګه دپښتو څیړنو نړیواله غونــډی دپوهنی وزارت له خوا وشوی .

ګرانلوستونکی به‌دهریوه سیمبنار په باب‌مربوط مطالب دافغا نستان کالنی پــه‌صفحـو کښی مطالعه کړی .

# مجلس بزرگداشت فارابی

دولت جمهوری افغانستان ، که رشد فرهنگی فرزندان این سرزمین را، هماهنگ بارشد اقتصادی، همواره در نظر دارد، درروز های ۳۰میزان‌واول عقرب ۱۳۵٤هزاروصدمین سال تولد دانشمند بزرگ خراسان ابونصر محمدفارابی را باتشکیل یك مجلس علمی براساس پالیسی کلتوری خویش تجلیل نمود ودرین مجلس علمی، عده‌ای ازفضلای کشور و دانشمندان ممالك دوست، سهم گرفتند .

مجلس یادبود حکیم ابونصر فارابی قبل از ظهرروز ۳۰ میزان درتالار بزرگ رادیو افغانستان باقرائت چندآیت‌ازقرآن عظیم‌الشان آغاز یافت وپس ازآنکه سرودملی نواخته‌شد، پیام بناغلی محمدداؤد رئیس دولت وصدراعظم توسط پوهاند دکتور نوین وزیر اطلاعات و کلتور قرائت گردید .

درپیام مؤسس جمهوریت، به این نکته اشاره شده بودکه نظرات وآراء ابونصرفارابی دراخلاق وسیاست که حسن اخلاق را حاصل دانش وسر آغاز سعادت انسانی میدانست وهمکاری وتعاون ارادی افراد جامعه را برای تنظیم حیات وحفظ جامعه ضروری می شمرد، هنوزهم بعداز گذشت بیش ازهزار سال مایهٔ تحسین صاحب نظران است واورا درصف اول بنیاد گذاران تمدن بشری قرار مدهد .

رئیس محترم دولت، درپیام خویش تجلیل یادبود شخصیت گرانمایه فارابی را که به قول مورخ معاصرش ابن الندیم از فاریاب خراسان بوده وبه گفتهٔ امام غزالی در میان فلاسفه اسلام هیچکس به پایه اووابن سینا نرسیده است ازطرف وزارت اطلاعات وکلتور درحقیقت تجلیل وقدردانی ازعلم و معرفت، دانسته ویادآوری فرمودند که این خود یکی ازاهداف پالیسی کلتوری دولت جمهوری افغانستان واز جمله مؤثرترین عوامل رشد فرهنگی است .

پیام بناغلی رئیس دولت وصدراعظم بااین سخنان حکیمانه پایان یافت :

«امیدوارم تحقیقات ومباحثات علمی این مجلس دربارهٔ زندگی وآثار وافکار معلم‌ثانی سهم بزرگ اورادر نشر فرهنگ و معارف بشری بیش ازپیش روشن کند وحق آن دانشمند بزرگ بخوبی ادا شود .

توفیق دانشمندانی راکه دراین کارپرارزش علمی اشتراك دارند آرزو می نمایم» .

بعداز آنکه پیام بناغلی رئیس دولت و صدراعظم قرائت گردید، پوهاند دکتورنوین وزیراطلاعات وکلتور، بیانیهٔ خودرا ایرادنمود ودرطی آن از سرگذشت زندگانی فارابی وسهم بزرگ وی در گسترش علم وفضیلت سخن گفت ویادآوری کردکه تجلیل وقدردانی ونیز تحقیق وجستجو دراحوال وآثار دانشمندی چون ابونصر فارابی که سهم بزرگ ومهمی دراستحکام بنیاد فلسفه وعلوم عقلی درتمدن

اسلامی دارد، گذشت ازاینکه درحکم ادای حقی استکه دانشمندانی مانند اوبه گردن همه علاقه مندان علم وفرهنگ دارند، ازین جهت هم درخورتوجه وسودمند است که نسل جوان رابه ارزش علم واهمیت عالم درجامعه متوجه میسازد تاهمانطور یکه به آیندهٔ تابناك خود، وطن وجامعه خویش علاقه دارد،گذشتهٔ پرافتخار رانیز فراموش نکند .

پوهاند دکتور غلام صدیق محبی رئیس پوهنتون کابل نیز بیانیه ای ایراد نمود ومراتب امتنان پوهنتون کابل رااز اینکه شخصیت متبحر ومتفکری چون فارابی درین مجلس علمی تجلیل میشود ابراز نمود و مطالبی دربارهٔ عظمت مقام علمی ابونصرفارابی بیان کرد .

سپس دکتورمحمد اکرم عثمان پرو گرام مجلس علمی راقرائت کرد واعضای سیمینار رامعرفی نمود .

درمحفل افتتاحیه بعداز قرائت یك رباعی فارابی توسط محترمه فریده انوری کنسرتی توسط هنرمندان رادیو افغانستان اجرا گردید ونشریه ای شامل زندگی نامه فارابی ، به حاضران توزیع شد ومحفل افتتاحیه درحوالی ظهر خاتمه یافت .

**دراولین جلسه علمی :**

نخستین جلسه بزرگداشت هزارو صدمین سال تولد ابونصر محمد فارابی در ساعت دوونیم بعداز ظهر روز ۳۰ میزان در سالون کنفرانسهای رادیو افغانستان دایر گردید . درین جلسه که ریاست آنراپوهاندعبدالحی حبیبی برعهده داشت، ابتدا دکتورمحمدیعقوب واحدی، تحت عنوان «زندگی وآثار فارابی» سخن گفت وگوشه هایی ازحیات علمی این دانشمند بزرگ اسلام راتشریح نمود. سپس دکتور سید مخدوم رهین تحت عنوان «وضع حکمت درروزگار فارابی وخصایص روزگاروی» حالت عمومی فلسفه وطرفداران ومخالفان آنرا درعصری که ابونصر میزیست ، توضیح نمود وازمکاتب خاص فلسفی که درآن روز گار مورد توجه بود نام برد. آنگاه نوبت سخن به علی اصغر بشیر رسیده واوتحت عنوان «نظرفارابی دربارهٔ نجوم واحکام نجوم» نخست از تالیفات فارابی که مربوط به علوم فلکی است نام برد وسپس ازیك عده علمای نجوم که معتقد به احکام نجومی بوده اند وآثاری درین مورد ازایشان باقی مانده است یادکرد وآنگاه نظرفارابی رامبنی برتخطئهاحکام نجوم توضیح داد .

البته موضوعات سخنرانی های این جلسه چنانکه معمول است ازطرف بعضی اعضاء مجلس مورد بحث واقع میشد وپس از ارائه توضیحات کافی نوبت به سخنران دیگر میرسید

این جلسه تا ساعت پنج ونیم بعداز ظهر دوام داشت .

شام آن روز شاملان مجلس علمی دردعوتی که ازطرف پوهاند محبی رئیس پوهنتون کابل درکلوپ پوهنتون تشکیل شده بود شرکت نمودند .

**در دومین جلسه علمی :**

دومین جلسه یادبود ابونصرفارابی، ساعت ۹ صبح روزاول عقرب درتالار رادیوافغانستان به ریاست پوهاند غلام حسن مجددی تشکیل گردید ونخستین سخنران جلسه نیز پوهاند غلام حسن بود. وی تحت عنوان از سطــو وفارابی، منطق وفلسفه این دودانشمند بزرگ غرب وشرق راکه درعرف حکمابه معلم اول وثانی لقب یافته اند تشریح کرد و وجــوه اشتراك وافتراق منطق وفلسفه آنان رانسبت به یکدیگر توضیح داد .

سخنران دوم، دکتور حسین خدیوجــــم دانشمند ایرانی بودکه موضوع گفتارش ، نظر فارابی برعلم کلام بود .

دکتور خدیوجم، تقسیم بندی علوم راکــه برای اولین باردر اسلام توسط فارابی صورت گرفته است، مورد بحث قرار داد وآنگاه نظر این دانشمند رادربارهٔ مباحث کلامی توضیح کرد .

بعدازوی نوبت به پوهنوال عبدالمنان مددی رسید واوگفتار خودرا که موضوعش تصوف ازنگاه فارابی بود، ایراد نمود .

برموضوعات این جلسه نیز بحث عمومی صورت گرفت وجلسه در حدود ساعت ۱۲ظهر پایان یافت وشاملان مجلس علمی در دعوتی که ازطرف پوهاند دکتور نوین وزیراطلاعات وکلتور در کلوپ مطبوعات به افتخار شا ن ترتیب شده بود اشتراك نمودند .

**درسومین جلسه علمی :**

سومین جلسه علمی تجلیل حکیم فارابی درساعت سه بعدازظهرروز اول عقرب درتالار محمود طرزی واقع درکلوپ مطبوعات به‌ریاست بناغلی محمد عثمان صدقی دایر گردید .

درین جلسه پوهاند غلام صفدر استـــاد فلسفه پوهنتون کابل در باره مابعد الطبیعه ازنگاه فارابی، سخن گفت ونو آوریهای فارابی رادرفلسفه توضیح نمودکه بسیار مورد توجه واقع شد .

باختم گفتار پوهاند غلام صفدر، بحــث عمومی شروع شد ونکات وجزئیات فلسفــــه فارابی باتوضیحات استاد غلام صفدر روشن گردید سپس قطعنامه مجلس علمی که توسط يك‌کمیته منتخب ترتیب شده بود قرائت شد وبر مواد آن بحث صورت گرفت وبالاخــره به اتفاق آراء تصویب شد وباتصــویب آ ن مجلس علمی به دعای سعادت کشور ومردم افغانستان در پرتو رژیم جمهوری خاتمـــه یافت .

# سیمینار هزارمین سال وفات دقیقی بلخی

«کشور باستانی ماسهم قابل توجهی در تهدابگذاری بنای تمدن وفرهنگ جهان دارد که تاریخ دنیاگواه آن ومدنیت درخشان امروز مرهون آن است » .

« دربلخ باستانی اصل نیکخواهی یعنی مواظبت براندیشه نیك، عمل نیك وگفتارنیك برای اولین باربحیث یك اصل مهم اخلاقی اعلام گردید ومورد تایید مکاتب فکری جهان آن روز واقع شدکه هنوزهم ارزش خودراکاملا حفظ کرده است» .

«آیین دلبستگی به وطن، دفاع از شرافت وحیثیت ملی، حمایت ازراستی ودرستی و مبارزه باکج اندیشی، یادگار و میراث آن جوانمردان وپهلوانان وقهرمانان ملی ماستکه داستان دلیریها وفداکاریهای آنان درطی قرن های متوالی ازنسلی به نسلی به میراث میرسید واحساسات آزادگی ووطن پرستی را برمی انگیخت وسر انجام نیزبه شکل داستان های حماسی، یکی ازعناصر تاریخ پرافتخار کشور ومردم ماراتشکیل داده» .

«دقیقی بلخی که باوجود طبع روان شاعرانه آتش عشق وطن ودلبستگی به فرهنگ ملی وافتخارات دیرینهٔ کشوردرکانون قلبش شعله‌ور بود، بمنظور زنده نگهداشتن تاریخ وفرهنگ سرزمین خودبه نظم داستانهای ملی وحماسه های وطنی همت گماشت ودرین کارپیشآهنگ همه شاعرانی شدکه درین راه گام نهادند» .

مطالب فوق ، قسمتی ازپیام مؤسس جمهوریت مارا بمناسبت افتتاح هزارمین سالگرد وفات دقیقی بلخی ، تشکیل میدهد وبهترین وبرازنده ترین گفتاریست که اهمیت تشکیل مجالس علمی مانند مجلس بزرگداشت دقیقی بلخی رامی توان بادقت درمندرجات آن بخوبی درك کرد .

دقیقی فرزند گرانمایه بلخ بانظم حماسه های ملی ووطنی این سرزمین، حق بزرگی به گردن همه دلباختگان فرهنگ ملی دارد و ازین سبب لازم بود که مجلسی باشتراك دانشمندان افغانستان وممالك دوست دروطنش تشکیل شود ودرمورد زندگانی وآثاروافکارش تحقیقات ومباحثاتی صورت بگیرد تااندکی از حق فراوان خدمت اوبه فرهنگ ملی، اداگردد.

وزارت اطلاعات وکلتور با تشکیل مجلس علمی بزرگداشت دقیقی ودعوت ازصاحبنظران داخلی وخارجی برای اشتراك در این مجلس علمی، گام شایسته ای درراه تحقق بخشیدن اهداف پالیسی کلتوری دولت جمهوری افغانستان برداشت ومجلس علمی تجلیل از دقیقی بروزاول جدی ۱۳۵٤ آغاز یافت .

**محفل افتتاحیه :**

ساعت ۱۰ (قبل ازظهر) روزاول جدی محفل افتتاحیه سیمینار بزرگداشت دقیقی باحضور عدهٔ کثیری ازعلاقه مندان فرهنگ ملی درتالار بزرگ رادیو افغانستان دایر شد .

ابتدا چندآیت ازقرآن عظیم الشان تلاوت گردید وپس ازآنکه سرودملی نواخته شـد، پیام بناغلی رئیس دولت وصدراعظم کـــه قسمتی ازآن درصدر این مقاله نقـل شـد، توسط پوهاند دکتور عبدالرحیم نوین وزیر اطلاعات وکلتور قرائت شد .

بناغلی رئیس دولت وصدراعظم، در طـی پیام خویش به این نکته‌که اجتماع دانشمندان افغانی وکشور های دوست، گذشته از اینکه سهم شایان توجه دقیقی رادر خدمت بتاریخ وفرهنگ ملی روشن میسازدبه توسعه همکاری های علمی‌که دنیای امروز برای حـل مشکلات فراوان خود بدان نیاز منداست نیز کمـــك میکند، اشاره فرموده، باقدردانی از مهمانان دقیقی شناس که ازکشور های دوست بوطن دقیقی آمده اند توفیق همه شاملان مجلس را خواستار شدند .

بعداز قرائت پیام مؤسس جمهوریـــت ، پوهاند دکتور نوین بیانیهٔ خودرا ایراد نمود ودرضمن آن یادآوری کردکه دولت جمهوری افغانستان در پهلوی تلاش وکوشش منظـم ومداوم برای آگاهی مردم بخصوص نســل جوان ازدانش روز واستفاده مثبت آنان از علوم پیشرفته وجدید، موضوع حفظ میراثهای فرهنگی کشور وشناخت آنهارا نیز در خـور توجه میداند زیرادر غیرآن هیچ ملتی نمیتواند بدون اینکه زمان حال راحلقه اتصال گذشته وآینده قراردهد موجودیت خودرا حفظ کند .

پوهاند نوین ازدانشمندان کشور هـــا ی دوست که دعوت وزارت اطلاعات وکلتور را برای اشتراك درمجلس یادبود دقیقی پذیرفته وحضور یافته اند ابراز امتنان نمود وتوفیق همه شاملان مجلس علمی را خواستار گردید.

سپس شیرنوال محمد صدیق روهی رئیس پښتو ټولنه وپوهاند میرحسین شاه رئیس پوهنځی ادبیات وعلوم بشری پوهنتون کابل دراطراف زندگانی وآثار دقیقی بیانیه ها یی ایراد نمودند .

همچنان بناغلی عبدالوهاب محمود طـرزی به نمایندگی ازدانشمندان افغانی وپروفیسور ژیلبرلازار به وکالت دانشمندان مهمان، سخن گفتند واقدام دولت جمهوری رادر تشکیل این مجلس علمی ستودند .

سپس پوهنیار فوزیه نور حسینی، اعضای مجلس علمی رامعرفی نمود وموضوع گفتارهر یك رااعلام کرد .

درین محفل برخی ازاشعار دقیقی توســـط بناغلی عبدالله شادان ودکتور محمد اکـــرم عثمان ومیرمن فریده انوری فاروق، قرائت‌شد وضمنا کنسرتی توسط هنر مندان رادیـــــو افغانستان اجرا گردید .

همچنان ابیاتی از گشتاسپنامه دقیقی بلخی توسط دوتن ازعلاقه مندان به آهنگ حماسی قرائت شد ومحفل افتتاحیه درساعت ۱۲ و۳۰ دقیقه خاتمه یافت .

**جلسه اول علمی :**

اولین جلسه علمی سیمینار دقیقی بلخـــی درساعت ۲ بعدازظهر روز اول جدی در تالار محمود طرزی کلوپ مطبوعات بریاست بناغلی محمد عثمان صدقی ومعاونی پوهانـد سید ـ

**گذارش سیمینار ها بقیه در صفحه ۶۳۱**

# وزارت مخابرات

خدمات مخابراتی بحیث خدمات زیر بنادر انکشاف اقتصادی واجتماعی یك کشور نقش مهم وارزندهٔ دارد. دولت جمهوری جوان کشور اهمیت مخابرات رابشتر از هروقت دیگر درك کرده ازیکطرف پروگرام های وسیعی رادر چوکات پروژه های انکشافی طوری پیشبینی نموده که انکشاف مخابرات متوازن ومتناسب به انکشاف دیگر ساحات اقتصادی واجتماعی مدنظر گرفته شده و از طرف دیگر خدمات وتسهیلات بهترمخابراتی رابرای اکثریت مردم عرضه مینماید .

درمحتوی تذکرات فوق تفصیلات مختصری ازاجراآت وزارت مخابرات در ساحات تلی کمونیکشن وپست که در جریان سال ۱۳۵٤ صورت گرفته وپروگرام های‌که در سال ۱۳۵۵ تحت اجرا قرارداده خواهد شد ذیلا بعرض رسانیده میشود :

**الف ـ درساحه تلی کمونیکشن :**

۱ـ درا کثر ولایات کشور عزیز فعلا سوچبورد های لوکل بطری برای برقراری ارتباط تیلفونی نصب وفعالیت داردکه این سیستم شکل ابتدایی ارتباط راتأمین‌مینماید سیستم بطری محلی موجودیت بطری را در پهلوی تیلفون هرمشترك ایجاب مینماید البته تهیه ونگهداشت بطری بصورت صحیح برای مشترك خالی ازمشکلات نمیباشدبرای رفع این معضله وزارت مخابرات بتهیه سوچبورد های بطری مرکزی اقدام ورزید به این معنی‌که این نوع سوچبورد صرف یك منبع تغذیه‌داشته وآنهم درپهلوی سوچبورد نصب میباشد ومشترك مجبور نیستند هریك ازخود بطری تهیه بدارند .

عجالتا دوپایه آن بظرفیت مجموعی ۲۰۰ لین درچهار یکار مرکز پروان نصب شده وهم شبکه شهری آن توسط کیبل بصورت اساسی وفنی تمدید شده‌است . درنظراست درسال ۱۳۵۵ سوچبورد های بطری مرکزی درفاریاب، جوزجان، بلخ، سمنگان، پلخمری گردیز وجلال آباد توسط پرسونل فنی‌وزارت نیزنصب وبکار انداخته شود. البته برای آینده تجهیز بعضی ولایات بادستگاه های تیلفون اتومات مدنظر گرفته شده که در صورت میسرشدن امکانات مالی در تطبیق آن اقدام بعمل خواهد آمد .

۲ـ ازآنجاکه ارتباط مخابراتی به سیستم تیلکس یکی ازضروریات عصر میباشد وزارت مخابرات درصددآن شد تاوسایل آنرا غرض استفاده عامه فراهم نماید در یـن تخنیك مشترك باداشتن یك پایه ماشین تیلی پرنتر که بادستگاه مرکزی تیلکس وصل میباشد میتواند که بدون ضیاع وقت مطلب خود را بطرف مقابل چه درداخل وچه درخارج مملکت

مخابره نماید به همین منظور وزارت‌مخابرات درجهت خریداری یك دستگاه تلکس کـــه طور نمه اتومات کار مینماید اقدام که بعد ازنصب وبسته‌کاری درسال ۱۳۵٤ شروع به فعالیت نموده است د ستگاه مذکـور دارای ظرفیت ابتدایی ۸۰ لین بوده وتاچهار صد لین توسعه داده شده میتواند درحال حاضر یکتعداد لین های آن برای مشترکین توزیع گردیده وازطریق شرکت فرانکفورت با تمام ممالك جهان همه روزه ازساعت ۱۱ صبـح الی ۹ شب مخابره جریان دارد . مســـوده مقررات تیلکس نیز ترتیب که بعداز طـــی مراحل ونشر درجریده رسمی نافذ گردیده است .

۳ــ چون تمدید لین ونصب تیلفون برای تمام منازل ازنگاه توان مالی دولت یك امر ناممکن میباشد بناء برای رفع احتیاج مـردم تصمیم گرفته شد تایك تعداد غرفه هـــای تیلفون سکه اندازدرنواحی مختلف شهرکابل نصب شود فعلا درنقاط مختلف شهر بتعداد (۳۷) پایه آن نصب وازطرف روز وشـــب فعال ومردم ازآن استفاده مینمایند . درنظر است درسال ۵۵ یکتعداد تیلفون هـــا ی سکه انداز که جدیدا خریداری گردیده د ر دیگر نقاط شهر کابل وشفاخانه ها نصـب وطرف استفاده قرارداده شود .

٤ــ درحال حاضر ارتباط مخابره تیلفونی بین کابل ویکتعداد ولایات کشورعزیز توسط دستگاه های چینل برقرار میباشد اما تعداد چینل های موجوده به هیچصورت جواب گوی نیازمندی های مراجعین انفرادی ودوایر دولتی نبوده برای رفع این مشکل یکتعداد دستگاه های جدید چینل خریداری ونصب آن فعـــلا درپروان، بلوله ، پلخمری ، سمنگـــان و مزار شریف جریان داشته ودر آینده قریب به‌معرض استفاده قرارداده خـواهـــد شد . همچنان درسال ۱۳۵۵ کارنصب وبسته کاری دستگاه های مشابه درغزنی ، مقر، زابـــل، قندهار، گرشك، دل آرام، فرارود، ادرسکن وهرات شروغ خواهد شدکه با بکار افتیدن این دستگاه هاتاحد مشکلات ازناحیه کمبود چینل هامرفوع خواهد شد .

۵ــ درگذشته ارتباط تیلفونی بین کابل، ولایت پکتیا توسط یکجوره لیـــن عـــادی برقرار بودکه این لین نمی توانست مشکلات مخابروی ولایت مذکور رارفع نماید بـرای حل این معضله درکابل، گردیز، و خوست دستگاه های‌چینل نصب وفعلامخابره تیلفونی توسط دستگاه های مذکور جریان دارد به‌این معنی‌که سه چینل تیلفونی بین کابل وگردیز وسه چینل تیلفونی بین‌گردیز وخوست برای استفاده عامه موجود میباشد .

٦ــ درسال ٥٤ بفاصله ۱۸۰ کیلو متـــر لین اساسی تیلفون درولایات و۹ ونیم کیلو مترکیبل درشهرکابل تمدیدشده اســـت . همچنان یکتعداد لین های تیلفـــو ن برای مراجعین توزیع گردیده ولین های چینـــل درحدود ۱۲٤۰ کیلومتر ترمیم شده است .

۷ــ درنظر است درسال ۱۳۵۵ لین های تیلفون بعضی ولایات مطابق معیا ر هـــای

۵٤ نه صد طفل ازصبح الی ظهر درآنجاتحت تربیه قرارداشته که عدهٔ کثیرآن نظر بـــه مساعدت سن به بنوونځی هامعرفی شدند .

درچوکات مدیریت کودکستانها کلینیك حمایهٔ طفل ومادر جهت مراقبت صحی مادران حامله وشیرده واطفال خورد سال ونوزادان فعالیت میکند . وبتعداد شش تن دکتوران شوروی دراین کلینیك مصروف فعا لیـــت میباشند. قابله هاونرسهای افغان نیـــز بـا آنها همکاری دارند .

**فعالیت کلینیك :**

۱ـ توزیع مواد غذایی برای تعداد ۱۷۰٤ طفل و۱۵۵۹ مادر حامله .

**مقدار مواد غذایی :**

۱ـ روغن مایع ۲۸۵۸ کیلو .

۲ـ شیرپودری ٤۲۲۵ کیلو .

۳ـ گندم ۱۲۲۳۱ کیلو .

**مراقبت های صحی وتداوی :**

شعبهٔ دندان تداوی ٤۵۷ نفر .

شعبهٔ اطفال تداوی ٤۵۱۱ طفل .

معاینات عمومی تداوی ٤۱۲۵ طفل .

واکسین دی تی پی تداوی ۳۱۳ طفل .

واکسین تداوی ۱۳۳ طفل .

**شعبهٔ ولادی ونسائی :**

| | |
|---|---|
| معاینات نسائی | ۵۲۳۷ نفر . |
| معاینات ولادی | ۱٦٤۰ نفر. |

**شعبهٔ اکسریز :**

| | |
|---|---|
| مراجعین عمومی | ۹۱۹ نفر. |
| رادیوسکوپی | ٦٤۱ نفر. |
| رادیوگرافی | ٤٤۸ نفر. |

**فعالیتهای مدیریت عمومی صناعتی :**

این مدیریت روی هدف تقویه وانکشاف صنعت سوزن دوزی های محلـــی و ملـــی افغانستان بابکار انداختن یکتعداد دختـــران وزنان سوزندوز مرکز وولایات افغانستـــان خدمت نموده وازاین طریق دراقتصادخانواده هاکمك میکند . مدیریت عمومی صناعتـــی ازبدوتاسیس دراصلاح سوزندوزی ها پدید آوردن دیزاین هاونمونه های جدید وهمآهنگ ساختن رنگ ها، احیا نمودن هزاران نوع سوزن دوزی های اصل باستانی کشورخدمت کرده مرحله بمرحله درارتقای ثقافت ملـی کوشیده است .

باترتیب نمایشگاهای داخلی وخارجی در ساحهٔ بین المللی بامعرفی صنایع سوزندوزی سهم گرفته است وبرای عرضه صنایع‌افغانی وبازاریابی خارجی این صنعت تثبیت مینماید درپهلوی صنایع سوزندوزی به اصـــلاح و انکشاف صنعت قالین بافی باتوجه به طرح های عنعنوی این صنعت درولایات شمـــال افغانستان میکوشد ودر تربیهٔ ذوق دختران وزنان قالین باف ومؤلد ساختن شان دررشته های متذکر اهتمام مینماید .

درچوکات این مدیریت شعبهٔ خیاطی هـا وتهیه یونیفورم ها وملبوسات فرمایشی نیز یك قسمت فعال آن می باشد که درطـــی شش‌ماه اخیرسال ۵٤ (۵۱۸۰) ثوب‌ملبوسات وزارت خانه هاراتهیه ودوخته است وشعبـهٔ اطفال نیز درچوکات این مدیریت در تهیـهٔ البسه طفلانه فعالیت میکند، مدیریت عمومی

صناعتی اخیرا تولیدات سوزن دوزی هـای خودرا جهت معرفی وفروش مصنوعات زنان کشور به امپوریم ملی صادر نموده واز این طریق یکتعداد کثیر زنان ودختران هنرمند راتشویق وتقویت مینماید .

مدیریت عمومی صناعتی دمیرمنو ټولنـه دردومین سالگرد تاسیس نظـا م خجسته جمهوری افغانستان درنمایشگاه ملی بتاریخ ۲٦ سرطان غرفهٔ یکه بشمول صنـا یــع سوزندوزی مختلف زنان هنر مند کابـــل وولایات افغانستان ترتیب نموده بود کـه برعلاوه سوزندوزی ها قالینها ، قالینچه ها وپوستین های زیبارادر این نمایشگاه بـه معرض نمایش وفروش گذاشت که مـــورد تمجید تماشاکنندگان قرار گرفت .

**فعالیتهای نمایندگی های دمیرمنو ټولنـه درولایات :**

ریاست دمیرمنو ټولنه به منظور رشـــد وانکشاف سویهٔ ذهنی وفکری زنان ولایـات وسهم گیری بیشتر آنان در امـــور تربیوی اجتماعی وصنعتی ومجادله باخرافات ورسـوم بیجا وتقویت صنایع ملی در ۱۲ ولایــــت افغانستان نمایندگی های خودرا دایر نموده این کانون های اجتماعی وفرهنگی مشکـلات وپروبلمهای زنانافغانستان راازنگاه امکانات منطقه مطالعه وبرای حل معضله ها باریاست دمیرمنو ټولنه درتماس میباشد ونمایندگـی های دمیرمنو ټولنه فعلا درولایات ذیلفعالیت دارند :

درکندهار، هرات، بلخ، کندز ، بغـــلان، جوزجان، فاریاب، غزنی، پروان، ننگرهار ، پکتیا وهلمند .

درکلیه نمایندگی ها فعالیت های تربیوی سوادآموزی، تنویری، صنعتی وحرفه ها در شش ماه سال مانند همیشه ادامه داشتــه واساسات کار شانرا با ریفورم جـــدیـــد دمیرمنو ټولنه تطابق دادند . نمایندگان این ولایات تصامیم مفیدی بانتیجـــه گیـری از سیمینار نهضت در افغانستان اتخاذ نمودند که برای جامعه زنان افغان مایهٔ امیـدواری است .

ریاست دمیرمنو ټولنه برای نظم وترتیب امور اداری ومسلکی نمایندگی ها وتوحیـد وانسجام فعالیت های عمومی آنهایك سلسله اقدامات نموده وبرای انکشاف طبقهٔ زنـان ولایات روی هدف پیروی ازپروگرامهای مفید دولت جمهوری برای رشد زنانکشورباوالیان محترم و لا یـا ت در تـمـا س شـــده وهمچنان درولایاتیکه هنوز کانون موجـــود نیست زمینهٔ اقدامات نمایندگی هارا مساعد

گردانیده است . وبرای دریافت زمین ومحل نمایندگی ها اقدامات مفیدی انجام داده‌است.

صنایع محلی‌که درنمایندگـــــی هــــا ی دمیرمنوتولنه بدست زنان ماهر افغان تولید میشود مانند سوزندوزی مخصوص کندهار، سوزندوزی های بلخ وظریف دوزی هـــای ولایت جوزجان همه این صنایع تحت نظر مدیریت عمومی نمایندگی های دمیرمنوتولنه ازنگاه دیزاین ورنگ آمیزی واصالت صنعت منطقه مرحله به مرحله انکشاف خودراپیموده ودرشش ماه سال ٥٤ بااین اهتمام جـــد ی صورت گرفته است .

درقسمت صنایع قالین بافی وپوستینچـه دوزی که هنرمخصوص کشور عزیز ماســت برای‌حفظ اصالت دیزاین های قدیمی وسلیقهٔ مخصوص این صنعت کاران جدی میشود .

# دافغانستان جغرافيي ته يوه لنډه کتنه

دافغانستان جمهوريت چې دآسيايي هيوادو په لړکي شميرل کيږي، تقريباً دآسيا په منځنۍ برخه کې پروت دی دپلن والي له امله دآسيا نهمه درجه او په اروپا کې له شوروي اتحاد څخه پرته لومړۍ درجه هيواد ګڼل کيداي شي.

دتوپوګرافي او طبيعي بڼې له مخې په دريو جلا برخو ويشل کيږي: لومړۍ برخه غرونه يې چې په منځنيو او شمال ختيزو برخو کې پراته دي، دويم هغه پرتې اوهواري سيمې چې دهيواد شمالي سيمې او سويل لويديزولايات يې نيولي دي دريم هغه جګې سطحې چې شمال ختيز او منځنۍ سيمې پټوي. ددغه ډول طبيعي جوړښت له مخې افغانستان ديوه غرني هيواد په څير شميرلای شو. لوړ غرونه ځپانده دريابونه سمسورې درې او ښکلي طبيعي منظرې دافغانستان ډيرغوره فزيکي ځانګوالي دي چې په نړۍ کې خورا زيات شهرت لري.

له لرغونو زمانو راهيسې زمونږ دهيواد دسمسورې سيمې اودرې دکرنې لپاره ټاکل شوې دي.

اريايانو دلومړي ځل لپاره دپخواني افغانستان (آريانا) مځکې دکرلو لپاره چمتو کړې. که مونږ دهيواد تاريخ ته يو ځغلند نظر واچوونو به داپه ډاګه راته ښکاره شي چې افغانستان دتاريخ په بيلو بيلودوروکې ډير ځلانده او له وياړ څخه ډک تاريخ درلود دغه دافتخاروړ پيښې ليك (تاريخ) دنړۍ دسترو هيوادو سره پرتله کيداي شي.

دلاس ته راغليو آثارو او اسنادو په نسبت دهيواد دځليدونکي تمدن بيلې بيلې صحنې په ځرګند ډول ليدل کيږي.

افغانستان يو لرغوني هيواد دی چې دپنځو زروکالو راهيسې يې دنړۍ پرمخ شته والی موندلی دی.

په پخوانيو وختو کې داهيواد دآريانا په نامه نامتو و. دآريانا پلن والي په هغه زمانه (پخوانۍ پيړۍ يا قرون اولی) کې داسې ښودل شوی دی. دختيز و لورې ته له ګلګت څخه دهند تر سمندر پورې چې دسند ټوله حوزه يې نيولې له لويديز لورې ته دکسپين له بحيرې څخه پيل او دبلوچستان لويديزې برخې يې دهند تر سمندر پورې اشغال کړې وې، شمالي خواته يې سير دريا دوروستي قطبي سر حد په څير ټاکل کيږي، په داسې حال کې چې سويل ته يې دهند سمندر پروت وو. په بله وينا آريانا دجغرافيايي طوالبلد د۵۵درجو ۳۰ دقيقو او ۷۵درجو او ۵۰دقيقو اودشمالي عرض البلد د۲۵ درجو او ۴۰درجو او ۵۵ دقيقو ترمنځ پروت وو.

داوستاله ځرګندونو (بحثونو) څخه معلوميږي چې داوستايي سيمې دسيردريا، سند، دهند سمندر اودلوط دبيديا ترمنځ پرتې وې نو هوږي مځکه دلرغوني آريانا مساحت جوړ کړی وو په بله وينا اوسنادلوی افغانستان ټولې هغه سيمې

چی‌دآریانا حدود یی بشپړول، یادی کړی او هغه‌یی اوستایی ګڼلی دی

زموږدهیواد لرغونی پلن والی داوږدی‌زمانی لپاره په‌پوره عظمت اولوړ تمدن پاتی شو ی خودزمانی په‌تیریدو سره‌بهر نیویرغل‌کوونکو ورو ورو دپخوانی تمدن زانګواو دښاروںومور (بلخ)چی مرغلین اوداوچتو بیرغو ښار ګڼل کیده وران او خپل شهرت یی‌له لاسه‌ور کړ. داسکندر دفتو حاتو په دوران کی‌دآریانالرغونی هیواد یوازی دباختری دولت په‌نوم‌راو ښت اویادشو.

داسلام‌دفتوحاتو وروسته (له ۷ــ۸میلادی‌پیړی پوری )زموږ هیواد دخرا سان په‌نوم نامتو وګرزید دانوم دساسا نیانوپه دوره‌کی پر افغانستان ایښودل شوی‌دی. په‌لومړی‌سرکی خراسان‌یوه وړه سیمه‌نیولی‌وه ورووروودلرغونی آریانا ټول‌ملکونه اوسیمی په‌کښی‌شامل‌شوی اودآریانا ځای‌یی ونیو.

په ژوره توګه نشو کولای‌چی دخراسان‌پلن والی‌وټاکوداځکه چی‌خراسان کله‌ډیره‌لو یــه ساحه اوکله بیایوه‌کو چنی سیمه‌اشغال‌کوله سره‌ددی‌هم‌دخراسان دهیواد دځمکی‌حدودپه‌دی ډول څرګندوی :

خراسان‌په‌خاصه‌توګــه تخارستان (بدخشا ن اوقطغن )بلخ(مزارشریف ترمیمنه )مرغـا ب هرات ــمرو، طوس اونیشاپور)سیمی نیو لی ختیز اوسویل کی‌داصلی بدن څخه‌جلا شوی په‌داسی ترڅ‌کی‌چی عام‌خراسان دلرغــو نی افغانستان ټوله خاوره له‌توران(بلوچستان ) څخه‌ترخوارزم‌اودلوط اوکرمان څخه تر سند پوری نیولی وه.

کله‌چه داسلام دین‌په افغانستان کــی‌خپور شونوپه‌دغه‌وخت کی‌ستری امپرا طـــو ری لکه‌طاهریان، صفاریان،ساسا نیان، غزنو یان سلجو قیان،غوریان، خوارزمشاهیان، تیموریان صفویان ،بابریان اوابدالیان یوپه‌بــل پسی منځ‌ته راغلی.

هریوی امپردطوری پــه‌خپل‌وار سره‌دهیواد په‌آبادی اوسرلوړی کی‌مرسته کړی‌ده.

کله چی‌ابدالی احمد خان‌په ۱۷٤۷میلا دی کال کی‌دافغانستان په‌پاچا هی وټاکل شو، نونوموړی شاه‌دلرغونی آریانا اوخراسان‌مځکی بیالاس‌ته راوړی اوددغه ستر پاچا په‌زما نه کی دافغانستان نوم‌زموږپه هیواد بـــا ندی کیښودل‌شو. لوی‌احمدشاه دآریاناله ویاړڅخه ډك هیواد ژوندی‌کړاودآسیاپه‌ملکونو کی‌یی‌په پخوانی عظمت اوسټروالی سره وساته‌د احمد شاه‌بابا‌په‌وخت کی‌افغا نستان‌له شما ل څخه دامو په دریاب‌لویدیزوته تر اصفهان، سویل ته تربلو چستان اودهند سمندر اوختیزته‌ترډهلی پوری پلن شوی وو.

داحمد شاه‌بابا ترمرګ وروسته‌لوی‌افغانستان دکورنیو لانجواوشخړوله‌امله ورو وروټنی‌ټنی ته‌راورسید اودخپل قلمرو لاندی زیاتی‌سیمی یی‌دبهرنیو سترو قدرتودلاس وهنی‌په‌اسا س له‌لاسه ورکړی. انګریزانو اوتزاری‌روسیا نو ترټولودمخه زموږ دهیوادپه ورانیدوکی‌فعا له برخه درلوده.

دنولسمی پیړی‌په پیل‌کیدو سره تـــزا ری روسیانو اوانګریزانو دخپلومستعمرو ښتنی‌له

شمال‌او جنوب (سویل) څخه‌زمونږ هیواد ته راوغزولی اوپه دی‌ډول ددواړو ستروقدرتونو دسیا لیوپه‌ګرکی زمونږ هیواد چه‌دیر غوره سوق‌الجیشی موقعیت‌یی‌درلود نارامه‌اودورانی په‌لور ولاړ. تریوی نیمی‌پیړی پوری‌افغانستان دننی‌بی اتفاقی اوبهرنیر سیالوډلودمبارزوشاهد ووا‌وهغه تلفات چی زمونږوطنوالوپه دغه‌دوران کی‌زغملی دحساب څخه وتلی کــه څــه‌هم دافغانستا ن اولس تریوی اندازی‌ددغوورانیو مخنیوی وکړخوسره‌ددی هم‌زمونږ دهیوادڅینی غوره برخی څه‌په‌شمالی سیموکی اوڅه‌پــــه ختیز اوسویل کی‌داصلی بدن‌څخه جلا شوی اوپه‌نتیجه‌کی دافغانستا ن‌دڅلوررو‌خوا څخــه په‌وچه پوری ونښت.

دهیواد دسوق الجیشی اهمیت پربنسټ‌او دننی‌نړی دشخړواولانجوپه‌لمن‌کی، افغانستان داستعمار ګرانو دشړلو وروسته دبی‌طر فی اوناپیلتوب سیاست غوره اوپه‌نظامی‌ډلو کی دنه‌ګډیدو لاراختیار‌کړه. ددغه ابتکاری‌سیاست په پیروی سره‌افغا نستان دنړی‌دسولی او امنیت‌په ټینګیدوکی خوراکلکه برخه‌اخستی‌ده.

### دافغانستان طبیعی بڼه

افغانستان دشکل‌او توپوګرافی له‌مخی‌یوغریی هیو اددی‌چه تقریباً په‌سلو کی‌یی ۷۰ برخــی غرونو پټی‌کړی دی‌دافغا نستان‌غرونه‌د شکل اوپیدا ینښت په‌اساس دهمالیا اودلوید یزی آسیا دغرونو سره پوره ورته‌والی‌لری‌دڅمکی په دویم عهدکی ټوله منځنی‌آسیا دیوه‌سمندر پــــــه‌اوبو پټه‌وه داسمندر دتیتیس پــــــه نامه نامتو اوداطلس اوآرام سمندرو نه‌یی‌یو له بل‌سره یوځای کول په‌داسی حال‌کی چی ددغه سمندرشمالی‌او سویل‌خواته وچــی هــم دهغه داوبو له‌امله سره‌جلاشوی‌وی.دجیولوجی ددوروپه تیریدو اودتیتیس دشمالی اوسو یل برخی دوچو داړخیز فشارونو اودمځکی‌دننیو فعالیتو په‌نتیجه کی‌دتیتیس اوپه لوموړنی‌حالت څخه ورو وروړی،څو چی‌دزیاتو رسوبا تــو په سبب‌له منځه‌ولاړی اوپه ځای‌یی دمنځنی آسیا غرونه تشکیل شول.

په‌دی ډول‌دمنځنی آسیاغرو نه دپروتوالــــی (سمت افتاده)اوجوړ ښت له‌مخی له‌یوبل‌سره ورته دی.

دآسیا تقریبا ټول‌غرونه له‌ختیز څخه‌دلویزپه لورپاشرقاً اوغرباً واقع‌شوی‌دی دآسیا دغرونو بل‌ورته والی دادی چی‌دختیزخواته‌هسک‌اوجګ دی‌په‌داسی حال‌کی‌چی دلویدیز ولوری تــــه ورو وروټیټ‌شوی اوپه پای‌کی په‌پر توسیمو اوجبه‌زارو باندی تبدیلیږی.

دافغانستان غرونه، په تیره بیا منځنی‌غرو نه له‌ختیز څخه‌دلویدیز لورته خواره شوی اود هریرود په‌حوزه کی‌پای ته‌رسیږی‌له دی‌امله دشمالی صفحاتواو دهندوکش اودبابا غرو د سویلی اوبوترمنځ سرحد جوړی‌اوبیو لــــه بل څخه‌جلا کوی.

**دواخان اوپامیرجګه سطحه :**

دآسیا په‌منځنی برخه‌کی یوجګه سطحه چی دنړی‌دبام‌په‌نامه یاد یږی پرته ده‌دڅمکی‌پوهنی پوهان دغه جګه سطحه دآسیادغرونو منځنی

غوټه (گره) گڼي په بله وينا داسطحه دهما ليا قراقروم، هندوكش اوكونلون دغرونود يوځاى كيدو نقطه شميرل كيداى شي.داجګه سطحه په دووبرخو ويشل كيږي: ختيزه برخه يـي له ٦٠٠٠ څخه تر ٧٠٠٠ متروپورى لوړوالى لري له هيواد څخه بهرپرته ده.لويديزه برخه يي چي دكنگلو له امله تخريب شوى اونسبتاً ټيټه ده، دكوچنى پاميرپه نوم په افغانستان كي ځا ى لري.

واخان ديوه كم سوري اواوږده وادى په څير شوروى اتحاد ،افغانستان اوپښتونستا ن سره جلاكړى اوزركول جهيل اوپاميرداوبو پـــه سويل كي پروت دى دواخان وادى له شرق څخه دغرب په لور غزيدلى اوختيزه خوايى دچين تر سكيانگ پورى رسيږي.

دواخان په جگه سطحه كي دجارى اوبـــو او كنگلو (يخچالو) تخريبا تاواحتكالونه دو مــره زيات دى چي دهغو په نتيجه كي ژورى در ى منځ ته راغلي دي. څرنگه چي دواخان جگه سطحه په لوير وبرخوكي په وا ورو پټه اوله بلى خـوا هوايي سړه ده نو ځكه جگي سيمي داستو گنـي لپاره چمتو نه دي يوازي په ټيټو برخو په تيره بيادد روپه پرتو لمنوكي دواخي په نامه خلك په مال پوولو او كر نه لگيادي.

دپامير جگه سطحه له ځنگلو څخه خالي ده يوازي په هوارو برخركي يي واښه بوټي اوواښه شنه كيږي چي د پونده وولپاره ښې ورشوگانې جوړوي .په دغه ځايو كي پسونه اوغـــژ گاو دواخي خلكي غوره فعاليت دى. دپاميراوسيدو نكي قرغزيان دى،چي دوى هم دپسونو اوغژگاو په روزنه اخته دي .

**دهندوكش غرونه :**

دهندوكش غرونه د لوړوځوكو سره دوا خـان په سويل كي له ختيزڅخه دسويل لويديـــز لورى ته پرا ته دي.

دختيز لورى ته داغرونه دافغا نستان دسرحد څخه بهر دقراقرم له غروسره يوځاى كيږي. د بروغيل غاښي (كوتل) د ٣٨٠٤ متروپه جگوالي سره نو موړي دوه سلسلي (قراقرم او هندوكش) سره جلا كوى ،په داسي ترځ كي چي دهندوكش غرونه په لويديزه برخه كي دبند اميراو باميانو درى په واسطه له بابا غرو څخه جدا كيږي.

دهندوكش غرونه دتوپو گرافي له مخي پــه دووبرخو ويشل كيږي، شرقي برخه يي دختيځ هندو كش اولويديزه برخه يي دلويديز هندوكش په نامه نامتوده. دختيزاولويديز هندو كش ټول اوږدوالى ٦٠٠ كيلو مترو تـــه رسيږ ى ختيز هندو كش ديولي ددرى څخه چي پــه كـو چنى پامير كي واقع ده پيل اودخاواك تر غاښي (كوتل ) پورى اوږوالي مومي دهندوكش دغرو ختيزه لړۍ دافغانستان ډيره جگه برخه اوپه منځني توگه دسمندر له مخ څخه ٥٠٠٠ متره لوړ والي لري دختيز هندوكش جگه ځوكه د تـــرا جمير په نوم نامتو او د ٧٧٤٠ مترو مسكوالي ته رسيږي

په عمومي توگه دختيز هندوكش ټولي برخي جگي اود كال په اوږدوكي په واورو باندى پټي دي. سره ددي چي دهندوكش دا برخه دتنگ او راتنگ لپاره دكړاوڅخه خلاصه نه ده،سره ددى هم ځيني نامتوغاښي اوكنډوونه دتنگ اورا تنگ لپاره زمينه برابروي دختيز هندو كش د ير

غوره کنډوونه دادی: شتپال(۴۸۷۰ مترو په لوړوالی ،اولیان ۵۰۷۰متره، خاوزار ۴۸۰۰ متره، کچین ۵۹۰۰ متره‌اودنوکزن کنډو په ۵۰۵۰متره جګوالی.

لویدیزهندو کش‌دخاواك‌له غاښی څخه پیل اودآقرباطتر ګنډو (غاښی)پوری رسیږی بند امیر اودبامیانودره داغرونه دباباله‌لړی‌څخه‌جلا کوی. دلویدیزهندو کش‌منځنی جګوالی ترختیز هندوکش لږدی

دلویدیزهندوکش په‌شما لی‌اوسویلی(جنو بی) لمنوکی ځینی‌دریابونه چی‌دکال‌په اوږدو کی اوبه لری بهیږی دمثال په‌ډول سرخاب او اندراب په‌شمالی لمنو اودپنجشیر اوغو ربند دریابونه په‌سویلی لمنو کښی‌یادولای شو ۰

لویدیز هندو کش دتنګ اوراتنګ‌لپاره‌ډیرګران نه‌دی څکه‌ددغه لړی‌ډیر جګ غاښی دسمندر له‌منځ‌څخه له۴۴۰۰ مترونه هسکوالی‌نه لو ی. دلویدیز هندوکش نامتو دری‌اوکنډونه داد ی دره شکاری چه‌له بامیانو،بلولی اوسر خا ب دریابونه په‌هغی کی‌بهیږی دشبرغاښی د۳۲۰۰ متروپه لوړوالی چی‌تر۱۳۴۳ کال‌پـو ری دافغا نستان یوازنی لاروه‌چی‌سویلی‌اوشمالی هندوکش یی‌له یوله‌بل سره‌وصل‌کاوه. کله چی دسالنګ لارپرانستل شوه نوددره‌شکاری اوشبراهمیت لږشو اوپه ځای‌یی‌دسالنګ‌لویه لاردتنګ اوراتنګ‌لپاره غوره وګرزید له (دپلحمری‌اوکابل‌وآتڼ دشبرله‌لاری ۴۰۰ کیلو متره اودسالنګ له‌لیاری ۲۳۰ کیلومتره‌دی.). دسالنګ‌دره‌چی دهندوکش په‌سویلی لمن کی پرته ده‌دسالنګ دریاب په‌کښی بهیږی، په شمالی سالنګ کی‌دځنجا نودریاب‌چی داندراب ددریاب مرستیال دی،جریان لری. داق رباط غاښی‌چی‌دلویدیز هندوکش پای‌دی‌له پخـوا راهیسی دسویلی سیمو څخه‌شمالی‌صفحا تو ته کاروانونه په‌هغه باندی‌تیریدل‌خودشبردغاښی دسړك دجوړیدو له‌امله داکاروانی کنډو لـه اهمیت څخه ولوید،په بله‌ویناد(۱۳۱۱هجری) کال څخه‌وروسته دغـوربند دلاری اوسنی لـه جوړیدل داق‌رباط‌تجارتی لاروتړله‌اویا دا چی ډیر ملږه استفاده ور څخه کیږی.

دلویدیزهندوکش غوره‌غاښی دادی: خاوا ك د۳۶۰۰ متروپه‌لوړوالی،تل ۳۶۰۰متره،کوشان ۴۳۷۰ متره،چاردره ۴۲۳۶ متره، دندان شکن ۲۷۰۰متره،شبر ۳۲۰۰ متره‌او سالنګ ۳۴۰۰ متره. څرنګه چی مویاده کړه‌دهندوکش‌غرونه ډیر لوړوالی له‌امله په‌زیاترو برخوکی پـه واو رو پټه‌دی‌په دی‌ډول ددریم‌عهد دیخچالونو (کنګلونو) نښی ددغو غرو په‌زیاترو دروکـی لیدل کیږی کنګلونه هم‌دهندو کش پـــه بیلو برخو کی‌منځ‌ته‌راغلی چی‌دحاری‌او بوډیری نښی‌منابع یی‌جوړی کړی دی۰

دآمودریاب اویادسنداوبه‌زیاتره له‌نو موړ و کنګلو څخه لاس‌ته راځی۰دهندوکش‌دغرو په لمنو کی تر۳۵۰۰ مترلوړ والی خوراښکلی الپی‌ورشوګانی خوری‌شوی چی داوړی پــه موسم کی‌دپوونده وولپاره ډیرغوره‌څړځایونه برابروی .دهندوکش په‌ډیرو ټیټو برخوکی د اور بشو ،جـودر واو جوارو کر نه تـــر سره کیږی.

ددغه لړی‌په‌هغو لمنو کی‌په‌تیره بیا پـــه

سويلي‌خواكي دمونسوني اوربښتونو له امله خورا ښکلي ځنګلونه شنه شوي‌دي ددغـــو ځنګلوونې زياتره څيړې، صنوبر او لمنځي‌دي. دغه رازپه ټيټو لمنوكي دانارو اوتوت باغونه دهندوكش دسيمې سمسور تيالا پسې‌زياتوی

## دبابا غرونه

دباباد‌غرولړۍ دهندوكش په‌سويل‌لو يديز ه خواكښې دلويديزلورته اوږدوالي مومي‌داغرونه دهندو كش ښخه وروسته دجوړښت له مخې داهميت وړګڼل كيږي.دبابا سلسله‌دافغانستان په منځني برخه كې‌دنورو غروپه څيرختيزڅخه دلويديزپه‌لور پرته ده‌ددغو غرو ښاخو نــه دشمال‌لويديز اوسويل‌لويديز خواته خوا ره شوي اوزياتي څانګې لري.دزياتو ښا خـــو (څانګو) دشته‌والي له‌امله دباباپه غرونو كې تګ‌اوراتګ دمشكل سره مخامخ كيږي.له‌دې څخه پرته‌دكال‌په اوږدوكي له‌شپږو څخه تر اوومياشتو پوري په‌واورو پټ‌اودعبور ومرور لپاره خنډونه پيښبوي. منځني لوړ والي يې ۴۰۹۰ متره‌اولوړه‌څوكه يې‌دشاه‌فولادي په‌نامه ۵۹۴۰متره دسمندر له مخ څخه جګه‌ده. دبابا غرونه ۲۰۰كيلو متره‌اوږ دوالي لري اواكثره څايونه‌يې‌په‌دا يمي‌واورو باندي‌پټ‌دي چې په دې‌توګه ددريابونوداوبولپاره يې‌ښې ذخير ى جوړې‌كړې‌دي. دبندامير‌هريرود اوهلمنددر يا بونه‌ددغه لړۍ‌دشمالي‌اوسو يلـــي لمنو څخه سر چينه‌اخلي. دباباغرونه هم‌ډيركنډوو نــه لري‌چې دهندو كش‌دغاښو اوكنډوو څخه يې لوړوالي‌لږدي‌خو سره ددې‌هم‌دتګ اوراً تګ په‌وخت كې مشكلات منځ ته‌راوړي. داو نې غاښې ۳۳۰۰ متروپه‌هسكوالي دكابل‌درياب‌سر چينه شميرل كيږي‌دغه رازدحاجيګك كنډوچه دهلمند درياب ورڅخه پيل‌شوي دويم غوزه غاښي‌شميرلاي‌شو. دباباغرونه په‌عمومي‌تو ګه له‌ځنګلو څخه‌خالي‌او تقريباً ټولي‌لمني‌يې‌وچې دي.

## فيروزكوه :

دفيروزكوه لړۍ‌دباباد‌غروپه لويديزه خوا كې پرته اوپه‌دووشمالي اوسويلي‌ښاخوبا ند ى ويشل كيږي:شمالي لړۍ ياښاخ يې دسفيد كوه‌په‌نامه نامتواوله ختيز څخه‌دلويديز لورته اوږدوالي‌مومي. سويلي څانګه يې‌دسياه كوه په‌نامه ياده شوي‌اوداهم په‌شرقاً غرباًډول‌پرته ده.

دسفيد كوه‌لړۍ دومره‌هسكوالي نه‌لري اوپه منځني‌توګه تر ۳۰۰۰ متروپوري رسيدا ى شي. ددغه غروكنډوونه دتګ اوراتګ‌په‌لاركي خنډونه پيښبوي دغه رازنوموړي غـــا ښې (كنډوونه ياكوتلونه) دمرغاب اوهريـــر ود حوزې له‌يوبل سره يوځاى كړي‌دي.دزرمست اواردوان غاښي ددغه لړۍ.نامتو كنډوو نــه شميرل كيږي . دهريـــروداومرغـــاب زيـــاتـــره مرستيالان دسفيد كوه څخه سر چينه اخلي. دسفيدكوه اوږدوالي دحصار دغره څخه‌داردوان ترغاښې پوري ۲۵۰ كيلو متره‌دي.له‌نو موړي غاښې څخه‌سفيدكوه خپل‌نوم‌بدل كړي او د چشمه سبزترغاښي پوري دبرخوت كوه‌په‌نامه ياديږي‌له‌دغه ځاى څخه‌وروسته دسياه‌بو بك په‌نوم نامتودي. بالاخره سفيدكوه دهـــرات

ولایت پەشمال‌کی دپاراپامیزوس لەغرو سره نږدی پای‌ته رسیږی.

دسیاه‌کوه لړی‌دبابا دغروپه دوام‌پرتـــه ده دالړی‌شرقاً اوغرباً اوږدوالی نلری‌اودسـو یل لویدیز خواته کږیږی .دسیاه کوه‌لوړوا لـــی ترسفید کوه لږدی‌خوااوږدوالی یی ترهغه‌ډیر شمیرل‌شوی‌دی. سیاه‌کوه‌هم پـــه بیلو بیلو ځانگو ویشل شوی‌دی نوځکه ډیـری‌دری او معبرونه‌یی جوړکړی‌دی. دسیاه کوه‌پەدرو کی ډیر پووندەآبادی. ددغەلړی یوەغوره ځانگه دهغی پەلوید یزەخواکی دکوه دوشاخ پەنامه پرته‌اودپراخوحوزو اوداو‌بودویش له املـــه اهمیت لری.دفیروز کوەدلړی دشمالی لمنو دریابونەارال اوکسپین هوارو سیموته‌بهیږی.

پەداسی حال‌کی چی دسویلی لمنودریابونه یی‌دهأمون هلمند اواری سیمی تەجریان‌لری پورتنی غرونه پەعمومی‌توگه پراخه ځنگلونه او نباتات‌نلری یوازی وړی‌ونی اوبوټی ددغو غروپه زیاتر وځایوکی خـــواره شوی‌دی. د ځمکپوهنی پوهانو دفیروز کوەلړی‌ډیری‌ډیری لرغو نی بنودلی او په دریم عهد کـــــی شاملوی.

**تیربند ترکستان**

دفیروزکوه پەشمالی برخوکی یولړ غرونەپه ختیزلویدیز استقامت دتیربند ترکستان پـــه نامه پراته‌دی.

داغرونه دشمالی عرض‌البلد ۳۵د،او ۳۶درجو ترمنځ موقعیت غوره‌کوی. کەڅەهم دتیر بند ترکستان‌غرونه دافغا نستان‌پەشمالی‌برخوکښی مستقله‌لړی جوړوی خودجوړښت‌لەمخی‌داغرونه دهندو کش اویانورو منځنیو غروسره اړیکه لری .دتیربند ترکستان غرونه‌په منځی‌تو گه ۲۳۰۰متره لوړوالی لری اواوږدوالی یی ۸۰۰ کیلومترو تـــەرسیږی.دالـــړی ددرز آب، گرزیوان، قیصار اوبالامرغاب سیمی دفیر وز کوه‌او چغچران لەمنطقو څخه‌جلاکوی.

دتوپوگرافی لەمخی دتیربند ترکستان‌شما لی لمنی ترسویلی لمنوزړی دی‌پەدی ډول‌سویلی برخی‌یی دجاری‌اوبوداحتکالاتوله امله تخریب شوی‌اونسبتاً څوانی معلومیږی پەداسی ترځ کی‌چی ددغی لړی‌شمالی لمنی دهغوشکه لـه املەچی دمنځنی‌آسیا څخه دبادپەواسطەراوړی شوی دی دپستو اوټیټو غونډیو پـــه څیر تغییرشکل کړی اودغه بنه اړونه نومـــوړو لمنو ته زوړرنگ ورکوی. څرنگەچی دتیربند ترکستان شمالی لمنی‌دزرگونو کالو راهیسی دپر لپسی شگودلیږدیدوله امله‌ډکی شوی‌دی نوځکه درسوبی طبقاتو ضخامت‌او پنډوالـــی نەیوازی دتیربند ترکستان پەشما لی‌لمنوکی زیات‌دی بلکه دشمالی افغانستان زیاترەمځکی پەدغه رازرسوبی طبقی پټی دی.پەدی تو گه ددغو سیمو ډیری‌په شگوپټی او یـــوه زړه توپوگرافی څرگندوی. لەبلی‌خواڅرنگەچی‌دلته اورښت لږدی‌نوځکه دجاری اوبود کموالی له امله ژوری دری‌هم منځ‌تەراغلی نەدی.

**سپین غراو ختیز سیاه‌کوه :**

دکرمی اودکابل‌دریاب ترمنځ‌دوه نامتو لړ ی پرتی‌دی‌چی زیاته برخه یی‌په افغانستان او یو څه دهیواد څخه بهرلیدل کیږی.شما لی لړی دسیاه‌کوه‌او سویلی سلسلەدسپین‌غرپه

نامه نامتو ده.

سیاه کوه‌دصوات له‌دری شخه‌پیل شوی‌او دلویدیزپه لور دوام‌مومی.داغرونه دکنړاوکابل دریاب شخه تیرشوی اودلوگر سره نږدی‌پای ته‌رسیږی. سیاه‌کوه اوسپین غردپیدایښت له مخی ډیرزاړه‌اودهغو پاسنی‌قشر په‌رسوبی احجارو (آهکی) باندی پټ‌دی.

دسپین‌غر اوږدوالی ۱۵۰کیلومتره اولوړه شوکه یی‌دسیکارام په‌نامه ۴۷۶۰متره لوړوالی لری. دپیواړغابنی چی ۲۴۵۰ متره‌دسمندرله مخ‌شخه لوړ دی‌پره‌چناردکابل لـه‌وادی سره نښلوی.

هغه‌لری‌چی دخیبر دکنډو (۱۰۳۰ متره‌لوړ والی )اودپیواړدکنډوترمنځ پرته ده‌دشنو ارو دغره‌په‌نامه نامتواوپه‌ختیز لویدیزه تـوگه دافغا نستان‌اوپښتو نستان ترمنځ سرحـد جوړوی.

دغه‌راز سپین غردکرمی اوبه اودکابل‌درياب مرستیالان جوړکړی دی.دسپین غرپه شمالی لمنوکی گڼ ځنگلو نه‌شنه شوی‌دی،چی‌دهیواد په اقتصادکی خورامرسته کوی.

**دسلیمان غرونه:**

دسلیمان دغرولړی‌د۶۰۰ کیلومترو په اوږد والی سره دافغانستان اوپښتو نستان یـه سرحداتو کی‌له‌شمال ختیز شخه‌سویل‌لویدیز ته‌پراته دی داغرونه په‌دووبرخویعنی‌لویدیز سلیمان داغ اوختیز سلیمان‌داغ ویشل‌کیږی دتکتونیکی‌فعالیتوپه اساس دسلیمان په‌غرو کی ډیری چین‌خورده گی منځ‌ته‌راغلی اودهغو پرمنځ‌داهکی ډیرموجودیت ښکاره‌کوی چی په دویم‌اودریم عهدکی منځ‌ته راغلی‌دی.

دسلیمان غرونه دپښتو نستان‌دوزیرستان سیمه‌اوبلوچستان پټوی‌اومونسونــــی اوربښتو نوله‌امله په گڼو ځنگلو پټ‌دی.

**اقلیم:**

افغانستان دآسیا په‌زړه کــی پــروت او دعرض‌البلد (۲۹درجی ۳۰دقیقی ــ ۲۸درجی‌او ۳۱دقیقوترمنځ )دسمندر شخه لیری والی( له هری خوا شخه‌په‌وچه پوری تړلی اودچکا یی غرونه چی‌دهلمند په‌سویل کی‌پراته دی‌زیونږ نږدی واټن (۵۰۰کیلومتره)سمندر ته شمیرل کیږی)اودلوړفشار داقلیم شناسی‌پوهانــد دخمکی پرمخ فشارداسی ښودلی چی‌دعرض البلد له پنځو درجو شخه تر ۳۰درجوپوری دلوړ فشاریوه ساحه پیل کیږی یادونه په دغه ساحه کی‌دسویل لویدیز لورته‌انحراف مومی.دافغانستان یوه برخه دلوړ فشارتــر اغیزی‌لاندی (۵) په‌نظرکی نیولوسره‌دوچ‌اقلیم لرونکــی‌دی. دوچ اقلیم خصوصیت نسبتی لنده بل‌لړه‌اندازه تودا‌وړی‌سوړژمی اوداسی‌نور شمیرل کیږی‌په‌دغه اقلیم‌کی دکالنی‌اورښت مقدار تر ۲۵سانتی موتر وټیټ‌دی .

دطبعی جوړښت اوجغرافیایی‌موقعیت لـه مخی افغانستان په‌لاندی ډول‌ښکاره کولای شو.

**۱ـعرض‌البلد :**

دیوی سیمی دسوړ والی اوتودوخی درجه دعرض البلدله امله ټاکل کیږی . که چیـری دافغانستان اقلیمی ځرنگوالی دعرض‌البلد د دایروله مخی وپلټونو لیدل‌کیږی‌چی‌افغانستان

دشمالی نیمی کری د(۲۹)درجو (۳۰) دقیقو او (۳۸)درجواو (۳۱)دقیقو عرض البلد کی پروت او په دی توگه دپسرلی اومنی ، ۲۱ مارچ دوری اول ـ ۲۳ سپتمبر دتلی په لومړی وخت کی دلمر وړانگی داستوا پر کرښه عمودی لویږی. په دغه نیته کی دافغا نستان په سویلی سیمو کی دلمر دلویدلو درجه مستقیمه او په شمالی برخو کی مایله وی، په بله وینا دافغا نستا ن په شمالی حصو کی دلمر دتابش دزاویی میلان زیات دی .

دافغانستان په سویل کښی دلمر وړانگی لوید ل ٦۰درجی او ۳۰دقیقی په داسی حال کی چی دلمر دلویدلو درجه به په شمالی افغا نستان کی ۵۱ درجی او ۲۹دقیقی .

## ۲ـدوچی اواوبو ویش :

دپراخواو بوشته والی داخصوصیت لر ی چی دگـــاو نیو یر وچودژمی هواتوده او داوړی په موسم کی سړه کوی. ځنکه چی افغا نستان په وچه باندی محاطیو هیواد دی نو ځکه دسمندری آب وهوا اغیزی یکی لږی لیدل کیږی. سره ددی چی دهیواد سویلی سیمی د۵۰۰ کیلـــو مترو په اندازه له سمندرڅخه واټن لری بیاهم دسمندری هواله برکت څخه گټه اخستلای نه شی علت بی دسویلی سیمو اوبلو چستان غـــرونه دی چی دسمندر ی هوامخه نیسی.

## لوړ اوټیټ فشار :

دهری سیمی دهوا اواقلیم په بدلون کی دلوړ یاټیټ فشار شته والی اغیزمن دی داستوا له کرښی څخه دقطبینو په لور څولوړ او ټیـت فشارونه خواره شوی دی.

داستوا له کرښی تر پنځو درجو ټیټ فشار له پنځه درجو څخه تردیرشو درجو پوری لوړ فشار له دیر شودرجو څخه تر ٦۰ پوری بیاټیټ فشار اوله ٦۰ څخه تر ۹۰ درجو دشمالی اوجنو بـی عرض البلد لوړ فشار شمیرل کیږی پـــه دی ډول افغا نستان دلوړفشار په ساحه کی پروت دی. ځنگه چی لوړفشار وچه هواښکاره کوی نو ځکه دافغانستان اقلیم وچ اوصحر ایــی شمیرلای شو. سره ددی چی دبیلو بیلوفصلـــو موجودیت اولوړیاټیټ فشار ساحی په متناو ب ډول منځ ته راوړی بیاهم کومونږ افغانستان په عمومی توگه له یوی استوایی سیمی سره پرتله کړو نو وبه وینو چی افغا نستان دگاونډ یـــــو سیمو په گډون په لوړ فشارکی پروت والـی لری.

## لوړوالی :

دیوی سیمی دتودوخی درجه دلوړوا لی له امله تغییرکوی دتجربو په اساس ثابته شو ی ده چی لنده هرا په هر وسلو مترولوړوالی کـــی دساتنی گرادپه حساب ۶۵ر۰ درجی او په وچه هوادساتنی گراد یوه درجه تنزیل کوی. ځکه هرڅومره چی لوړوالی ډیرشی په هغه انـدازه دهوا کثافت لږاورقیق کیږی په نتیجه کی په تودوخه باندی تاثیراچوی، څوکه دهوا کثافت زیات وی نو دلمروړانگی ډیری جـــذب کیدای شی.

لاندنی جدول دافغانستان دبیلو بیلو سیمو دتودخی تو پیر دلوړوالی له پلوه څرگندوی:

| سیمه | سمندر څخه لوړ والی | دچنګابښ په میا شت کی لوړه تودو خــه | دچنګابښ په‌میا شت کی ټیټه تودو خــه |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱—شمالی‌سالنګ | ۳۳۵۰ متره | ۱۸/۴ درجی دسانتیگراد | ۱۰/۱ درجی سانتیگراد |
| ۲—غزنی | ۲۱۸۳ متره | ۳۳/۵ درجی دسانتیگراد | ۹/۵ درجی دسانتیگراد |
| ۳—کابل (هوایی ډگر) | ۱۸۰۰ متره | ۳۵/۱ درجی دسانتیگراد | ۸/۰ درجی دسانتیگراد |
| ۴—فیض‌آباد | ۱۲۰۰ متره | ۴۰/۱ درجی دسانتیگراد | ۱۲/۹ درجی دسانتیگراد |
| ۵—کندهار | ۱۰۰۴ متره | ۴۴/۱ « « « | ۱۹/۲ « « « |
| ۶—جلال‌آباد | ۵۵۲ متره | ۴۵/۵ « « « | ۲۱/۰ « « « |

که‌څه‌هم‌دمځکی دعمومی‌ویش‌له مخی‌دافغانستان اقلیم‌وچ‌دی‌خودځینو نورو عواملو اودلا یلــو په‌اسا س چی‌دمځه وویــــل‌شول اود سیمی دطبیعی‌عوارضو لوړوالی دغرودپروتوا لی‌جهت داحجار ونوعیت اونباتاتو څخه‌دی داقلیم‌بڼه بدلیږی دمثال‌په‌توګه جلال‌آباد ،کابل‌اوهرا ت دری‌واړه داستواله کرښی څخه مساوی واټن لری‌خودآب‌و هواله‌مخی له‌یوبــــل سره ستر توپیر لری ددغه توپیر علت‌دسمندر له‌مــخ څخه‌دلوړوالی ،دغرودپرو توالــــی سمت او دجوی حالاتودجریان‌په‌مقابل کی دهغو بیل‌بیل موقعیت‌بلل کیدای‌شی. په‌دی توګه دیــــو ی سیمی یاهیواد دهوایااقلیم په‌ټاکلو کی‌بیل‌بیل عوامل برخه‌لری چه‌په ګډه‌سره دیوی سیمی اقلیم ټاکی.

دلوړوالی‌په نظر کی‌نیولوسره افغانستان پــه څلورو بیلومنطقو ویشل کیږی.

۱ــهغه سیمی چی‌له ۹۰۰مترو څخه لــږ جګوالی‌لری دطبیعی چاپیریال له‌مخی ددښت یابیدیانوم‌ور باندی ایښودلای شو. څرنګه‌چی داسیمی پرتی‌او اواری‌دی نواقلیم یی‌صحرایی یانیمه صحرایی سیموته ورته دی.دصحر ایی سیمو څرنګوالی دادی‌چی اوربښت‌پکی‌ډیر لږ اوکله کله‌صورت نیسی.دغه رازدتودوخی‌درجی دشپی‌او ورځی یادکال‌په اوږدوکی ډیر توپیر څرګندوی. په‌نیمه صحرایی‌اقلیم کی‌دافغانستان شمالی صفحات (بغلان، کندز،مزار شر یف‌او شبرغان)ختیزا وسویلی لویدیزی سیمی نکــه جلال‌آباد لغمان فراه‌اولشکر ګاه‌برخه اخلی. ګرشك، ریګستان، دبکوابید یا،مارجــــه، د خاشرود بیدیااو سیستان په‌صحرا یی سیمو کی‌شاملیږی.

۲ــ هغه‌سیمی چی‌د۹۰۰او ۱۳۰۰ مترو تر منځ‌پرتی دی‌زیاتره دهندو کش‌شما لی لمنی دغورات دغرولمنی دکندهار سیمه اودهریرود ددری منځنی اوکښتی برخی نیسی .په دغه اقلیمی حوزه‌کی اوړی‌ډیر تود اوژمی‌دو مره سوړنه‌وی اوډیرلږلیدل کیږی چی‌دتودو خی درجه ترمنفی لسودرجو پوری کښته شی. داورښت اندازه تر۲۰۰ملی مترولږه اوزیاتره دباران‌په شکل‌مځکی ته‌رسیږی، دلته‌دواو رو اوریدل دومره ډیر نه‌وی.

۳ـ هغه‌سیمې چې د ۳۰۰۰او ۲٤۰۰ مترو ترمنځ موقعیت‌لري په‌نسبتي توگه آب‌وهوایې معتدله اوڅلور فصله په خرگندډول‌له یوبل څخه بیلیږي.اوړې دومره توداوشدید نه خو ژمي‌تریوې اندازې‌شدت‌غوره کوي.دو اور ې اوباران اوریدل‌دژمي اوپسرلي په‌موسم کـې عمومیت لري‌داوربښت اندازه‌د کال‌په اوږ دو کې‌د ٤۰۰ملي مترو څخه‌زيات اټکل شوی‌ده. په‌دغه اقلیمي ساحه‌کې‌کابل، غزني، کنهو از بدخشان یوه‌برخه‌دکنړ‌ددرې پاسنۍ .رخه او داسې نورې برخې شاملیږي.

٤ـ هغه‌سیمې چې‌له ۲٤۰۰مترو څخه‌لوړ ې دي‌عموماً‌غرني‌او هوایې‌سره ده‌دتودو خې درجه دکال په‌اوږدوکې غټ‌توپیر خرگندوي. په‌دغه اقلیمي سیمه کې‌هغه ځایونه چې‌درې زره‌متره لوړوالي لري‌ژمي یې‌له شپږو څخه‌تـــر اوو میاشتو پورې اوږدوالي مومي.په‌نوموړې‌سیمه کې دنورستان یوځه برخه دبدخشان اوهزاره جات ستره برخه ځای لري.هغه غرني‌ځایونه چې‌دسمندر له‌مخ‌څخه ٤۰۰۰ متره جگ دي داستوگنې لپاره‌چمتو نه‌دي‌اودکال په اوږدوکې په‌واورو پټ دي(دواخان‌اوپامیر دجگې سطحې څخه‌پر ته‌چې تر څلورو زرومترو پورې‌دقرغیز وگي ودروزنې لپاره په‌استوگنه لیدل‌کیږي.)

**لنده‌بل‌اواوربښت :**

دیوې سیمې لنده بل اواوربښت دهغه‌ځای دهواله فشار دځمکې جوړښت اودهواپه‌سړو یاتودو څپو پورې مخامخ اړیکه‌لري. په هغو ځایوکې چې‌فشار ټیټ‌وي‌اوربښت زيات‌صور ت نیسي دغه رازدغروپه لمنو اوجگوځایو کـې دتودوخې دناڅاپي ټیټیدوله امله لنده‌بل ژر داشباع‌اندازې ته‌رسیږي‌پــه نتیجه کـــې اوربښت کیږي په‌دې‌ډول‌په جگوبرخوکې هـم اوربښت ډیردی. په‌صحرایي سیموکې دسړو اوتودوڅپو دبرخو ردله‌امله یوځه رطـو بت راکښته کیدای شي.

هوایي څپې‌دکال په‌بیلو بیلو وختو کـې دهیواد آب وهوا اغیزمنه کوي اوپه نتیجه کې واوره یاباران اوریږي‌هغه هوایي څپې چـې افغا نستان ته‌په بیلو بیلوفصلوکې‌راننوزي په‌دې ډول دي:

دژمي په‌موسم‌کې دسایبریاستره څپه‌هیواد ته‌راننوتلي اوپه ډیر وځایوکښې داور ښت سبب‌گرزي. په‌اوړې کې دهند له‌سمندرڅخه توده اومرطوبه څپه‌دختیز اوسویل ختیزلورې څخه افغانستان ته‌رارسیږي‌په نوموړو سیمو کښې‌په تیره‌بیا دسلیمان، سپین‌غر اوپکتیاپه برحوکښې درانه اوربښتونه‌راوړي پـــای او دپسرلي په‌لومړیو وختوکې دلویدیزاوشمالي لویدیزې خوا څخه‌داتـــلانتیك دسمندر لنده څپه هیوادته راځي‌اود منځنې افغا نستان او هندوکش غرونه تراغیزې لاندې نیسي.

داوړې په‌فصل کې دفارس دخلیج هـــوا افغا نستان‌ته راننوزي اوپه ځینو برخو کې کم‌دوامه اوربښت منځ‌ته راوړي. لاندنی‌جدول دافغا نستان دځینو سیمو اوربښت دلوړوالی له‌مخې خرگندوي :

| دستیشن نوم | پـروت والی | دسمندر شخه‌لـوړوالـــی داور ښت وخت | اورښت پـه ملـی متر سره |
|---|---|---|---|
| ۱ـــشمالی‌سالنگ | غر نی‌بر خه | ۳۳۵۰ پسر لی‌او ژ می | ۱۲۳۶ |
| ۲ـــ کابل | منځنی‌بر خه | ۱۸۰۳ پسر لی‌او ژ می | ۳۶۲ |
| ۳ـــجبل‌السر اج | منځنی‌بر خه | ۱۶۲۸ پسر لی‌او ژ می | ۵۶۶ |
| ۴ـــخوست | سو یلی‌بر خه | ۱۱۸۵ پسر لی‌او اوړی | ۵۸۲ |
| ۵ـــهر ات | شمالی‌لو یدیز ه‌بر خه | ۹۶۴ پسر لی‌او ژ می | ۲۲۰ |
| ۶ـــمیمنه | شمال‌لو یدیز ه‌بر خه | ۸۵۸ پسر لی‌او ژ می | ۲۷۰ |
| ۷ـــلشکر گاه | سو یل‌لو یدیز | ۷۸۰ پسر لی‌او ژ می | ۷۶ |
| ۸ـــفر اه | سو یل‌لو یدیز | ۶۵۱ پسر لی‌او ژ می | ۷۹ |
| ۹ـــجلال‌آباد | ختیز ه‌بر خه | ۵۵۲ پسر لی‌او ژ می | ۲۴۲ |
| ۱۰ـــ کندز | شمالی‌بر خه | ۴۳۰ پسر لی‌او ژ می | ۳۲۱ |

**دریابونه :**

دجغرافیایی عرض‌البلد په‌نظر کی‌نیو لـو سره افغانستان دمنځنۍ آسیاپه‌وچه ـــ برخه کی‌پروت والی لری‌خودجگو غرولکه هندوکش ،بابا، فیروزکوه، تیربند ترکستان،سپین‌غر ، سیاه کوه‌اونورو په‌شته والی‌سره‌ددریابواوبه دکال‌په‌اوږدوکی داوچه سیمه لنده وی پـــه بله وینا دنوموړو غرو دایمی واوری‌دهیواد دسترودریابودسر چینی لپاره ډیره‌ښه منبـع گڼلای شو. دافغانستان دریابونه داوبـــــو اخستلو دسیمی له‌مخی په‌لانـــدی ډول‌ویشل کیږی.

دشمالی هندوکش‌سیمه چی‌دآمـــــو، اودهغه معاونین لکه واخان، کوکچه، کندوزاودا سی نورپه‌کی بهیږی داسیمه دپلن والی‌له مخی دهیوادپه سلوکی ۲ر۱٤ برخی نیسی.

دهندو کش‌سویلی سیمه چی‌دکا بل،کنړ البنگار، پنجشیر اولوگر دریابونه په‌کـــــی جریان لری‌اوپلن والی دټولوخاوری په‌نسبت په‌سلو کی ۲ر۸ دی.

دبابا دغروشمالی اومنځنۍ برخه دسفید کوه دشمالی‌اوجنوبی غاړی‌سیمه‌چی‌دتاشقرغان (خلم )بلخ‌آب(عشق‌آباد) داندخوی‌آب‌سفید (میرآباد)مرغاب اوهر یرود پکی بهیږی‌دا سیمه دټول هیواد په‌سلوکی ۱ر۲۳ برخی‌حوړو ی دبابا اوسیاه کوه‌سویلی سیمه چی‌دارغنداب (ترنک اوارغستان) خاشرود ،فراه رود،ادرس کن، گودزیره اودچگالی واړه‌دریا بونه‌په‌کی جریان‌لری. داسیمه دټول‌هیوادپه‌سلوکښی۱ر٤ برخی‌نیسی.

**دآمودریاب:**

دآمودریاب چـــی پخوا داکسو س پـــه

نامه یادیده په منځنیو پیړیو (قرو ن اوسطی) کی عربود جیحون په نامه وباله. دمنځنیو پیړیو په وروستی وخت کی دمغولو دیرغلو دوره پیل شوه. په دغه دوران کی دجیحون نوم په (آمویه) یا (آمودریا) واوښت. دغه دریا ب دپامیر دجگی سطحی (دآمودریاب سرچینه) څخه دارال ترجهیل پوری ۲۵۰۰ کیلو متره اوږدوالی لری. دآمودریاب دکوچنی پامیر دکنگلو څخه چی دځلورو زرو مترو څخه لوړ دی سرچینه اخلی اوپه پا سنی برخه کی دواخان په نامه نامتودی. کله چی دآقسو او پنجه اوبه هغه ته گډیږی د(آب پنج) په نامه بلل کیږی. دآمودریاب دکوکچی تردر یاب پوری په ډیره چټکی روان اوپه لارکی ډیر آبشارونه جوړوی له کوکچی څخه وروسته دسرځوړی (نشیب) دلیږیدوله امله آرام او بیری چلونی لپاره چمتو گرزی. دآمو دریا ب سوراله یوه څخه ترپنځو کیلومترو پوری تاکل شوی دی. دآمودریاب په دواړو غاړوونی په نیره بیاولی (بید) او چنارلیدل کیږی. دآمو دریاب داوبو ډیروالی دکنگلوپه سنروا لی او دگرمی په فصل کی دتودوخی په درجه پوری اړه لری. دآمودریاب داوبو دبت شر گندوی چی د گرمی په موسم کی دډبرو اویخ ټوټی له څان سره راوړی له دی څخه پرته ددغه دریا ب د اوبو دبت په پاسنی اوکښتنی برخه کی توپیر مومی. په منځنی اوورو ستنی برخه کی ددریاب اوبه دتبخیر اواوبولگولو له امله لږیږی اود آرال په شاوخوا کی یی دبت په یوه ثانیه کی ۱٤۹۰ متره مکعبو ته رسیدای شی په دا سی حال کی چی دکرکی دښار په سیمه کی یی دبت په یوه ثانیه کی ۲۰۵۰ متره مکعبو ته لوړیږی دآمودریاب داوبو دبت دیخوا څخه اټ شوی دی دمثال په ډول دکرکی په سمه کی په ۱۹۱٤ متره مکعبه او په ۱۸۲۲ کال کی په یوه ثانیه کی ۹٦٦۰ مترومکعبو ته رسیده.

دآمودریاب داوبو ژوروالی دآب خیزی په موسم کی له دووڅخه تردریو مترو پوری رسیږی. دآمودریاب غاړی داشتکال له امله دتراس (مرتبه لرونکی) په څیر ددریا ب له منځ څخه د۱۸ څخه تر شلو مترو پوری جگی دی.

دآمودریا بدلتایوو لس زره کیلو مترمربع پلن والی لری.

دکلفت دسیمی څخه وروسته آدمودریاب خپل سیر بدلوی اودپرله پسی تخریباتوله امله په څینو سیمو کی په ځوبناخو ویشل شوی او دښاخو ترمنځ ټاپوگان جوړوی. دآمو دریاب په ښی اوکیڼ اړخ کی زیات شمیر مرستیالان لری

دآمودریاب هغه مرستیالان چی دشورو ی اتحاد په خاوروکی بهیږی دچك، گند، قزل سو وخش، کافر نهان اوسر خران څخه عبارت دی.

دآمودریاب دگیڼی خوا مرستیالان دشیوا کوکچی (چی دآمودر یاب) په سلو کی ٤ مرستیالان جوړوی) اوکندز څخه دی دکوکچی اوکندز څخه دکرنی په برخی کی ډیر ه گټه اخستل کیږ ی آمودر یا ب په یوه ډیره فاصله کی داوبو زیاتوالی اوژور والی له امله دبیړی چلونی لپاره چمتو دی. دافغانستا ن اوشوروی اتحاد تجارتی مالو نه له دغه او ی لاری څخه وړل او راوړل کیږی.

دآمودریاب تر څنگ دافغا نستان غوره بندرونه تاشگذر، کلفت شیرخان بندر او

حیرتان دی‌چی دافغانستان صادرات‌اوواردات لەهغو شخه ترسره کیږی. پەدغوبند رو کی دکلفت بندرله پخواراهیسی دپطرولو اودموټر ونو غوړو دراوړلو لپارەټاکل شوی‌دی دقزل قلعه (شیرخان) بندر چی‌دکابل‌نږدی واقع‌لری داومو موادو،دلیږدو لولپاره غوره ګڼل‌کیږی.

**دکابل دریاب :**

دکابل‌ددریاب اوږدوالی‌له سرچینی شخه تر مصب‌پوری ۷۰۰کیلو مترەدی‌چی لەدغەوا ټن شخه ۵٦۰ کیلومترەپه افغانستان پـوری‌اړه لری،دکابل‌در یاب دکابل‌ښار پەلویـد یـزه ۸۰کیلومتر ی. کی‌داونی‌له غابنی(۳۵۰۰)شخه پیل‌اوپه پاسنی برخەکی‌ډیر تیزجر یـا ن لری.دکابل دریاب‌په خپله لاره‌کـی دخـر تنګیو شخه تیریږی‌دمثال‌پەډول کنەچی‌دکابل دریاب‌دللندر لـەتنګی شخه تیرشي‌نو دچار دهی سیمی تەراننوزی دکابل‌دښار شخه له تیریدو ورروسته دتنګی غارو تنګی‌تەرسیږ ی بیالەدغه تنګی‌شخه دنغلو اوسروبی‌هـوار ی سیمی‌ته جریان‌مومی. وروسی وریښمین تنګی تەرسیدلی اودتنګی شخەدتیریـدو ورو ستە دلغمان ټیټی‌او پرتی‌سیمی تەځان رسوی،دغه راز ددرونټی لەتنګی‌شخه جلال‌آباد اودلعل‌پور له تنګی شخەدپیښور سیمی تەبهیږی.دکابل دریاب داټك (۲۷۱متره) سرەنږدی‌دسنددریاب تەګډیږی

دلوګر، پنجشیر،الیشنګ ،الینګاراو کنـړ دریابونه دښی اوکیڼی‌خوادکـابل‌دریا ب مرستیالان شمیرل کیږی‌دکـابل دریـا ب اودهغەمرستیالان داقتصادله پلوەدافغانستا ن ډیرەغوره دریاب‌دی‌چـی دبریښنا دتولید او زراعتی سیمو دخړوبولولپارەسترارزښت‌لری. دکابل پەدریاب باندی‌دبر ښناځوبندو نـه جوړشوی‌چی دافغا نستان ستر بندو نەګڼل کیږی او پەلاندی ډول دی:

دجبل‌السراج دبرښنا بندچی په۱۲۹۹ کال کی‌تری‌ګټه اخستل‌پیل شوی اودسا لنګ پر دریاب‌باندی چی‌دکابل‌دریاب مـرستیال وی جوړشوی‌دی. ددغه‌بند دبرښناظر فیت۱۵۰۰ کیلو واټەدی.

دوردکودچك‌بند د۳۰۰۰ کیلو واټو پـه ظرفیت په ۱۳۱۹کال کی‌دلوګرپر دریـا ب باندی جوړشوی‌دی.

دسروبی بندچی دپنجشیر دریاب لەخولی شخه۱۵کلو مترەلیری اود۲۲۰۰۰ کیلوواټوپه ظرفیت په۱۳۳٦ کال‌کی دګټی اخستلو لپاره چمتو شوی‌دی دنغلو بندچـی تـراو سه دافغانستان ستر بنداوپه (۱۳٤٦کال کـی ۹۰۰۰۰ کیلو واټوپه ظرفیت‌په کارولوید. د ماهی‌پر برښنا اودننګرهار دکانال دپـروژی برښنادکابل پەدریاب باندی نورمراکزیادولای شو.

**دمرغاب‌دریاب:**

دمرغاب دریاب‌دفیروز کوەله غـرو شخه‌د ۲۵۰۰ مترو پەجګوالی سرچینه اخستی اوله منبع شخەترپای پوری ۸۰۰ کیلومترەاوږددی لەدغه اندازی واټن شخه٤٥۰کیلو مترەیی په افغانستان پوری اړەلری. دمرغاب دریا بیو مر ستیال‌دګو شکا په نـا مه دفیروز کـوه شخه سرچینه اخستی اودتاش کیـواری پـه سیمه کی‌چی دهیواد شخەبهرپرته دەلەمرغاب سره یوځای‌کیږی.

دمرغاب له دریاب څخه ددغه دریاب دا وبو ژوروالی اوساحل دجگوا لی نه املهٔ زمونږ په هیواد کی دومره گټه نه اخستل کیږی خود دمرواو پنجده په برخه کی دبند ونو په جوړ یدو سره تری اعظمی استفاده شوی ده٠

دشوروی اتحاد سره په نږدی سرحد کی دمرغاب دریاب دمرو چاق او بالا مرغاب سمسوره سیمه خړوبوی٠

دمرغاب دریاب د٣٠کیلو متروپه اوږدوا لی سره دافغانستان اوشوروی اتحاد ترمنځ سرحدی کرښه جوړه کړی ده٠

ددغه دریاب دلتادمروی په شاوخوا کی ده او وروسته بیادقراقرم په شگوکی ورك کیږ ی٠

**دهریرود دریاب:**

دبابادغروپه لویدیزولمنوکی دوه دریا بو نه دسنگل آب اوسرجنگل په نا مه پیل شوی اود دولت یار په سیمه کښی سره یوځای اودهریرود دریاب جوړوی٠ دهریروددریاب شرقاً اوغر بأ دفیروزکوه اوکاسه مرغ ترمنځ د ٤٠٠کیلومترو په اوږدوالی بهیږی داوبی په لویدیزوبر خه کی ددغه دریاب ستر مرستیا ل تکاویشا نچی د سیاه کوه په سویلی لمنوکی دهریرود سره د٢٠٠کیلومتروپه اوږدوالی موازی بهیږی له سره یوځا ی اودغرنیو سیمودتیر ید و وروسته د٥٠٠ کیلومترو واټن پوری دهرا ت وادی سمسوز کوی٠دهریرود دریاب دهرا ت دلویدیزپه ١٠٠ کیلومتری کی دافغا نستان او ایران گډی سرحدی کرښی ته رسیږی اودسر حدی کرښی په څیر څوکیلومترو پوری دافغانستان اوایران خاوری سره بیلوی او بیا شوروی اتحادته ننوزی٠ دهریرود دریاب دوه پردری اوږدوالی په افغانستان پوری اړه لری٠

دهرات لرغونی اوتاریخی ښاردهریروددریاب له برکته مینځ ته راغلی اودتاریخ په اوږدو کی پردیو یرغلگرانو پری څو واره بریدونه کړی دی٠دهریرود دریاب دهرات دښاراو غور یانو په برخه کی ډیرآرام بهیږی په داسی حال کی چی دسر چینی وروسته تراوبی پوری په ډیره چټکی جریان لری٠

دادریاب تراسلام قلعه پوری خپل لوید یز استقامت ساتی خوداسلام قلعه وروسته دشمال په لورکږیږی او دترکمنستان دریگستان په لور حرکت کوی په دغه ځای کی هریرود، دتجن په نامه یاداوډیو څه فاصلی وروسته په شگو کی له منځه ځی٠

**دهلمنددریاب :**

دادریاب دهزاره جات له غرو څخه د٣٨٠٠ مترو په لوړوالی سرچینه اخلی٠ لومړی دلویدیز او بیا له یوځه واټن وروسته دسویل لویدیزلورته دافغانستان په خاوره کی بهیږی٠دهلمند یا هیرمند دریاب د١٤٠٠ کیلومترو په اوږدوا لی دافغانستان ستردریاب دی چی تقریباً په بشپړه توگه زمونږ په هیوادپوری اړه لری٠

دهلمند دریاب دپیل په لومړی سرکی، ډیر کږ ندی حرکت کوی، خودگرشك په سیمه کی آرام اوله دی وروسته یی سودزیا تیږی.

دگرشك په سیمه کی دهلمند سترمر ستیا ل ارغنداب ورسره گډاودسویل په لورجریان مومی٠ دهلمند دریاب په سویل لویدیزافغانستان کی

دیوه‌قوس په‌خیر په‌هامون هلمندکی پای ته رسیږی.

دهلمنددریاب دبت په بیلو بیلوسیمو اویادکال په‌اوږدوکی‌تو پیر کوی په عمومی‌توگه په‌یوه ثانیه کی‌له ۱۵۰ مترومکعبو څخه‌تر ۲۰۰مترو مکعبو پوری رسیدلا ی‌شی. دهلمند ددریا ب داوږولږوالی‌یاډیروالی ددغه‌در یاب‌دشاو خوا اوسیدونکو په ژوندباندی ژوره‌اغیزه‌کوی .

څکه دهلمند دشاوخواخلك په صحرای سیمه کی‌میشت دی اوداوبو کمښت ددوی ژوند ته ستر زیان اړوی.

ددغه زیان‌دمخنیوی لپاره‌حکو مت‌ډیره کلکه پاملرنه کړی‌اودهلمند دناوی پراختیایـــی پروژی‌ددغه امرلاندی پـــه‌فعالیت لگیادی.د پروژوپه بنسټ زیات‌شمیر بندونه اوویالـی دهلمنددریاب‌پرسر جوړی‌اونه یوازی‌داو بـو لگولو په‌برخه‌کی مرسته کوی‌بلکه په‌راتلونکی نږدی وخت‌کی‌به‌دبر ښنا دتولیدله‌امله‌دسیمی وگړوته ډیره گټه ورسوی.

**بشری برخه:**

طبیعی چاپیریال داقلیم‌په اودهایدروگرافی خصوصیت دانسان په‌ژوندباندی مخامخ اغیزه کوی.دغه شرایط دبشر لپاره‌داستوگنی ځای اوداقتصادی فعالیت ساحه ټاکی. زمونږ په هیوادکی‌له پخواراهیسی‌بیلی بیلی‌اوسمسوری دری‌دوگړودژوند لپاره برابر ی‌شو ی‌او پـه هغوکښی گڼ‌شمیر خلك‌میشت وی.

په‌عمومی توگه دبشری‌ژوند نښی په‌عر نیـو سیموکی حتی تر۳٤۰۰ متروپوری هـم‌لید ل کیدای‌شی. نوځرگندیږی‌چی‌له پامیر څخه تر نیمروز پوری په‌بیلو بیلو حوزوکی‌دطبیعـی شرایطو په‌مساعدت سره زمونږوطنوال ژوند تیروی.

که‌غرنی سیمی له‌پر تواواوارو سیموسره پـر تله‌کړونوپه ښکاره‌تـــو گـــه دغرنیو سیمو اوسیدونکی لږدی څکه‌په‌داسی ځایوکی‌اقلیمی اوطبیعی شرایطدانسانی ژوند لپاره‌خنډو نـه پیښوی.سره ددی زمونږوطنوال په‌غرواورغو کی په مقیمی‌اویا نیمه‌مقیمی ډول‌ژوندکو ی. دمالواورمو روزنه دلوړو سیمو غوره‌فعا لیت دی‌په‌داسی حال‌کی‌چی دپر تواوهـــوارو سیمو اوسیدونکی‌په‌کرنه لگیادی.

هغه سیمی‌چی د۱۰۰۰ څخه‌تـــر ۲۰۰۰مترو پوری‌پر تی‌دی ،زیاتره‌ارتی اواوارئ‌ئی چی په هغو کی‌گڼ‌شمیر خلك‌میشت‌او‌په کرنه یابا غ داری کی‌فعالیت کوی‌دغه رازدلته‌دښارویوروزنه هم ترسره کیږی‌په‌هغو سیموکی‌چی له ۱۰۰۰ مترو څخه ټیټی‌دی دنفوس دډیروالی‌اوترا کم له‌امله‌په لومړی‌درجه کی‌راځی‌داهم باید ووایو چی‌زمونږدهیواد زیاتره‌ښارونه په‌دغه رازسیمو کی ځای‌لری.کرنه،صنعت‌اوفرهنگی چار ی‌پـــه نوموړو سیموکی‌په پرمختللی‌توگه‌لیدل کیږی.

**وگړی :**

دربښتینواحصایو دنشته‌والی لـــه امله نشو کولای‌چی د۱۳۱۵ ه،ش‌کال څخه‌پخوادهیواد د وگړو شمیرښکاره کړو،دملگرو ملتوداحصا یی له‌مخی‌په ۱۳۱۵ هجری شمسی‌کـال‌کی ۱۹۲۷ میلادی‌دافغا نستان‌نفوس ۱۰۹۷۲۰۰۰ تنه‌ښودل شوی‌دی.دغه‌رازدپلان وزارت داحصایی‌ریاست دپلان‌دپرمختنك د۱۳٤۹کال‌په نشریه‌کی زمونږ

هیواددوګړو شمیر په ۱۳۲۹ کال کی (۱۹۵۰ میلادی)دوولس ملیونه اټکل ګړی‌دی.

لاندنی جدول‌دافغانستان نفوس‌ترا کم‌په‌یوه کیلومترمربع کی‌داسی ښرګندوی:

| کال | دوګړوشمیر | تراکم‌په‌یوه کیلو مترمربع کښی |
| --- | --- | --- |
| ۱۳۱۵ | ۱۰۹۷۲۰۰۰ | ۱۷ |
| ۱۳۲۹ | ۱۲۰۰۰۰۰۰ | ۱۸ |
| ۱۳۳۶ | ۱۳۰۰۰۰۰۰ | ۲۰ |
| ۱۳۳۸ | ۱۳۸۰۰۰۰۰ | ۲۱ |
| ۱۳۳۹ | ۱۴۴۸۳۰۰۰ | ۲۲ |
| ۱۳۴۰ | ۱۴۶۸۴۰۰۰ | ۲۲ر۶ |
| ۱۳۴۱ | ۱۴۹۰۰۰۰۰ | ۲۳ |
| ۱۳۴۲ | ۱۵۲۲۷۰۰۰ | ۲۴ |
| ۱۳۴۵ | ۱۵۷۱۵۰۰۰ | ۲۴ر۱ |
| ۱۳۴۸ | ۱۶۶۲۴۲۹۵ | ۲۵ر۶ |
| ۱۳۵۳ | ۱۸۷۰۰۰۰۰ | ۲۸ر۷ |

له‌دغه‌جدول ښخه‌دا نتیجه‌ایستلای شو چی له ۱۳۱۵ کال ښخه‌تر ۱۳۵۳ کال پوری‌تقریباً ۸ته ملیونه وګړی‌ډیرشوی‌دی. دغه‌راز په کثا فت کی‌په‌یوه کیلومترمربع کی‌له ۱۷ نفرو ښخــه ۲۸ر۶ته‌چی ۱۱ر۶ زیاتوالی ښی‌زیاتوالی‌راغلی دی.

داهم‌باید ووایــو چـــی‌دافغا نستان‌نفوس‌د نوروهیوادوپه ښیرپه‌یوه ډول‌ویشل‌شوی‌نه‌دی بلکه‌په سیمه ایزه‌توګه په‌یوه ښای‌کی ډیراو بله برخه کی‌دشرایطوپه‌اسا س‌لږدی.

لاندنی جدول دافغانستان دولایاتو دوګړوشمیر اوتراکم ښرګندوی :

| | ولایات | دوګړو شمیر ۱۳۵۰ | اداری مرکز | تراکم‌په‌یوه کیلومتر مربع کی |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ۱ | کابل | ۱۳۶۰۶۶۴ | کابل | ۴۲۵/۲ |
| ۲ | کندهار | ۷۸۰۶۱۷ | کندهار | ۱۷۱۸ |
| ۳ | هرات | ۷۲۲۳۴۸ | هرات | ۱۷ |
| ۴ | بلخ | ۳۷۲۵۴۸ | مزارشریف | ۲۴/۶ |
| ۵ | ننګرهار | ۱۲۰۸۶۲۵ | جلال‌آباداوچغسرای | ۱۵۹/۹ |
| ۶ | پکتیا | ۸۷۸۸۳۳ | ګردیز | ۵۱/۶ |
| ۷ | غزنی | ۱۱۶۲۵۹۰ | غزنی | ۳۵/۶ |
| ۸ | هلمند | ۳۳۳۳۲۹ | بست لشکرګاه | ۶/۳ |
| ۹ | فراه | ۳۳۰۱۵ | فراه | ۵/۷ |
| ۱۰ | جوزجان | ۴۵۲۳۳۲ | شبرغان | ۲۰ |

| ولايات | دوګړو شمير ۱۳۵۰ | اداري مرکز | تراکم په يوه کيلومتر مربع کی |
|---|---|---|---|
| ۱۱ تخار | ۵۲۰۵۳۵ | تالقان | ۲۵ |
| ۱۲ بدخشان | ۳۶۲۸۲۵ | فيض آباد | ۸/۳ |
| ۱۳ باميان | ۳۶۴۴۳۴ | باميان | ۱۲/۳ |
| ۱۴ ارزګان | ۵۲۴۹۶۶ | تيرين کوټ | ۱۶/۶ |
| ۱۵ غور | ۳۴۰۶۷۸ | چغچران | ۹/۸ |
| ۱۶ پروان | ۱۲۹۷۴۰۳ | چاريکاراومحمودراقی | ۱۷۸/۹ |
| ۱۷ کندز | ۴۲۷۰۲۶ | کندز | ۵۴/۷ |
| ۱۸ بغلان | ۶۵۶۶۴۴ | بغلان | ۴۸/۶ |
| ۱۹ سمنګان | ۲۱۸۳۸۴ | ايبک | ۱۴/۲ |
| ۲۰ نيمروز | ۱۲۸۳۶۴ | زرنج | ۲/۴ |
| ۲۱ زابل | ۳۷۷۳۳۷ | کلات | ۱۸/۸ |
| ۲۲ لوګر | ۳۲۵۶۴۲ | برکی برک ـ پل علم | ۷۷/۵ |
| ۲۳ وردک | ۴۳۷۷۵۵ | ميدان ښار | ۴۲/۵ |
| ۲۴ لغمان | ۲۳۴۳۷۵ | مېتر لام | ۲۵/۷ |
| ۲۵ بادغيس | ۳۳۷۱۳۹ | قلعه نو | ۱۳/۶ |
| ۲۶ فارياب | ۴۵۷۸۱۴ | ميمنه | ۲۲/۴ |

که دغه جدول ته ځير شو وينوچی ځينی ولايات ګڼ شمير ځينی نورمنځنی شمير او يوه ډله نورلږاوتيټ دول وګړی لری هغه ولايات چی له ۱۰۷ شخه تر۴۲۵ پوری (پروان ـ ننګرهار اوکابل) په يوه کيلومترمربع کی تراکم لری لومړی درجه ګڼل کيږی کنړو نـه لوګر، دکاپيسالوی ولسوالی. پکتيا، بغلان او کندزدهغوولاياتوپه لړ کی دی چی منځنی نفو س لری او په يوه کيلومترمربع کی يی په منځنی توګه ۶۸ نفره ژوندکوی.

هغه ولايات چی له ۲۵ شخه تر ۵۰ پوری تراکم لری دوردك ،غزنی، تخار اولغمان شخه عبارت دی بلخ ،فارياب ،جوزجان، زابل، باميان هرات ،کندهار اوارزګان هغه ولايات دی چی په تيټ دول نفوس لری اوپه يوه کيلو مترمربع کی يی له ۲ شخه تر ۱۵ نفروپوری ژوند کـوی. دهيوادپاتی ولايات لکه سمنګان، بـاد غيس غورات بدخشان ،فراه، هلمند اونيمروز لـه

نفوس لرونکی ولایات گڼلای شو.

**پوهنه :**

داځرگنده خبره ده چی دیوی ټولنی افراد د پوهی په رڼاکی کولای شی خپل بشری توان دژوندد ټرلو اړخود ښه کیدو لپاره په کار واچوی. په ټولو هیوادوکی داقتصادی پانگی دزیاتیدو لپاره ټولنیزه پانگه بنسټ گڼل کیږی زمونږ په هیوادکی هم ددغه اصل په پیروی سره دپوهنی رپاختیاد جمهوری دولت ستره هیله ده چی په ډیره بیړه یی داصلاح اوسمون لاری پیل کړی دی.. په افغانستان کی دپوهی دتعمیم لپاره لومړی دښښو پرسونل دسمبالو لپاره هڅه کیږی په دغه برخه کی پخوانیو پنځه کلنو پلانو دوسی سره سم بریا لیتوب حاصل کړی او په ډیرو برخوکی دبهرنیو استادانو اوماهرا نو ځای هیواد والوډك کړی دی.

دپوهنی دگړنداو هراړ خیز پر مختك لپاره دمالی امکاناتو په حدود کی زیاته اندازه بودجه تر نظر لاندی نیول کیږی داسی اټکل کیږی چی په راتلونکو شوکلوکی به افغانستان دپو هنی له پلوه یولوړی درجی ته اوچت شی.

په دریم پنځه کلن پلان کی دټولنیز وخدماتو سکتور دپاملرنی وړوواو په دغه برخی کی پو هنی زیاتی مرستی ته اړتیا درلوده. لــــه همدی کبله دولت په دریم پنځه کلن پلان کی دټولنیزو خدماتو دسکتور دمعارف لپاره پـــه سلوکی ۸ر۲۷ لگښت ټا کلی وو. په ۱۳۵۱ کال کی دمتعلمینو شمیر ۷۶۱ زره ښودل شوی دی. سره ددی چی دپوهنی په برخه کی سخت زیار جاری دی بیا هم ترنن ورځی پوری دکاروړ وگړوله جملی شخه په سلوکی ۸۷٫۳ برخی دزده کړی له نعمت شخه بی برخی دی .دافغا نستان ځوان جمهوری رژیم دبی سوادیړ دورك کـــولو لپاره منظمی لاری چاری سنجولی دی چی په تطبیق کیدو سره به په عملی اونظری زده کړه کی دکیفیت سره ناخایی بدلون راشی. اوس غواړو چی دزده کړی په بیلو بیلو دورو باندی لنډ نظر واچوو.

**لومړنی زده کړه :**

دلومړنی زده کړی مقصد دادی چی دښوونځی دشمول وړ کو چنیان په ټول هیواد کښی ښوونځی ته شامل شی. په ۱۳۵۱ کال کی دلومړ نی دوری زده کوونکو شمیر ۶۰۵۱۰۰ تنه وو په دا سی حال چی په ۱۳۵۲ کال کی ۶۲۴۱۰۰ تنو ته اوچت شوچی په سلوکی ۸٫۹ زیاتوالی څرگندو ی په ۱۳۵۲ کال کی کلیوالی ښونځی ۱۹۲۶ بابه او لومړنی ښونځی ۱۳۴۳ بابه شمیر شوی دی. په داسی حال چی په ۱۳۵۰ کال کی لومړنی ښونځی ۱۲۹۵ اوکلیرالی ۱۹۳۶ بابه وو. پــه ۱۳۵۲ کال کی دکلیوالو ښونځیو کمښت ددعـو ښوونځیو لوړوالی لومړ نیو ښوونځیو ته گڼل کیږی په ۱۳۵۲ کال کی دبی سوادی د له منځه وړلو لپاره د(بیسوادی سره مبارزی) پروژه پراخه شوه چی داعمل په خپل ذات کی دپوهنی دتعمیم لپاره ډیره ښه نښه بلل کیدای شی.

**ثانوی زده کړه :**

ددغه دوری زده کړه نه یوازی هغو بکلور یـا پاسانوته چی له دولسم صنف شخه دخلا صید و وروسته په ټولنه کی دخدمت لپاره گو مـا رل کیږی ارزښت لری بلکه هغه نورفار غان چی دلوړی زده کړی په خاطر پو هنتو ن ته ځی هم دستراهمیت وړده. دثانوی ښونځیو او لیسو

شمیر په ۱۳۵۲کال‌کی ۷۱۲بابوته‌رسیده چی شمیر په ۱۳۵۰ــ ۱۳۵۱او ۱۳۵۲کال‌کی‌ښکاره پەدغه شمیر کی۲۰۰ لیسی برخه‌لری.لاندنی کوی :

جدول دبیلو بیلو دورو دزده‌کوونکواوښوونځیو

| دزده‌کړی سطحه | ۱۳۵۰ | ۱۳۵۱ | ۱۳۵۲ |
|---|---|---|---|
| لومړنی زده‌کړه دکلیوالی‌په گډون : | | | |
| ښوونځی | ۳۲۳۲ | ۳۲۵۷ | ۳۲۶۹ |
| زده‌کوونکی | ۵۷۲۹۳۲ | ۶۰۵۱۱۹ | ۶۲٤۱۱۳ |
| ښوونکی | ۱٤۶۵۱ | ۱٤۷۹۶ | ۱۵۸۱۱ |
| فارغان | ۳۷۲۳٤ | ٤۸۳۲۸ | ٤۹۵۰۵ |
| منځنی زده‌کړه : | | | |
| ښوونځی | ٤۹۷ | ٤۹۷ | ۵۱۲ |
| زده‌کوونکی | ۹۱۷۶۹ | ۱۰۲۰۵٤ | ۱۰۸۳۰۳ |
| ښوونکی | ۳۶۵۰ | ٤۱۲۶ | ٤٤۲۲ |
| فارغان | ۱٤۵۵۲ | ۱۹۶٤۹ | ۲۵۵٤۹ |
| دلیسی زده‌کړه : | | | |
| ښوونځی | ۱۸۸ | ۱۹۰ | ۲۰۰ |
| زده‌کوونکی | ۳۵۳۹۳ | ٤٤۹۲٤ | ۵۱۵۷۱ |
| ښوونکی | ۱۶۳۲ | ۲۳۲۰ | ۲۵۱۳ |
| فارغان | ٤۸٤۷ | ۶۰٤۷ | ۱۲۸۱۳ |
| مسلکی زده‌کړه: | | | |
| ښوونځی | ۳۷ | ۳۶ | ۳۶ |
| زده‌کوونکی | ۱۱۵۷۶ | ۸۶۸۰ | ۸۱۶۲ |
| ښوونکی | ۸۱۱ | ۶۷۸ | ۵۵۹ |
| فارغان | ۱۸۹۰ | ۲۱۵٤ | ۱۵۷۱ |

له‌جدول څخه څرگندیږی‌چی‌د۱۳۵۲کال کښی۱۳۵۰کال په‌نسبت‌دلیسی‌په‌زده‌کوونکوکښی په سلوکی۸ر٤۵ اودلیسی‌په فارغانوکی‌به‌سلوکی۳ر۱۶٤زیاتوالی‌راغلی‌دی. په‌مسلکی‌زده‌کړه کی ډیرښت رانغی حتی ویلای شوچی د۱۳۵۰کال په‌نسبت کمښت څرگندوی.

**لوړه زده کړه :**

لوړه‌زده‌کړه دکابل په پوهنتون، دننگرهـــار په پوهنتون‌اودصنعت داداری په انستیتو ت اودارالمعلمینو کی ترسره کیږی.لاندنی جدول په ۱۳۵۰ـ ۱۳۵۱او۱۳۵۲کال کی‌دپو هنتون دپوهنځیو اودارالمعلمینو شمیر څر گندوی:

| څانگی | ۱۳۵۰ | ۱۳۵۱ | ۱۳۵۲ |
|---|---|---|---|
| ټول محصلین | ۸٤۱۵ | ۹۸۱۷ | ۹۱۷۵ |
| دطب‌څانگه | ۱۱۷۳ | ۱۲۰۵ | ۱۱۲۳ |
| دکرنی څانگه | ۵۵۳ | ۷۳۵ | ٦۳۵ |
| دساینس څانگه | ۲۳۲۱ | ۲۵۹۱ | ۲۰۸۳ |
| اجتماعی علوم | ۲۹٦۳ | ۳۳۲۲ | ۳۵۱۹ |
| دارالمعلمینو نه | ۱٤۰۵ | ۱۹٦٤ | ۱۸۱۵ |

دجدول څخه څرگندیږی‌چی داجتماعی‌علومو په څانگه کی‌په۱۳۵۲ کی‌د۱۳۵۰کال‌په نسبت ۱۸٫۸زیاتوالی راغلی‌دی. په‌دی ډول دکر نی په څانگه‌کی‌په‌سلو ۸٫۱٤ اودارالمعلمینو کی ۲۹٫۲ډیر ښت څرگندولای شو.

په پای‌کی دابایدووایو چی دپوهنـــی او اقتصادی پراختیاتر منځ لاتراوسه هما هنگی منځ‌ته راغلی‌نه‌ده څکه ددغه هیلی سر تـــه رسیدل‌په‌لږه موده کی‌امکان‌نه لری‌امیدلروچی په‌راتلونکی نږدی وخت‌کی به‌دغه مقصد ته ورسیږو.

**اقتصادی برخه :**

دانسان شته‌والی دځمکی پرمخ‌تر ډیـــر ی اندازی پرهغوموادو باندی ولاړدی‌چی‌دکرنی‌له لیاری لاس ته‌راځی‌څکه کرنه دخوراکی‌شیا نو اوکالیو دبرابرولوډیره ستره منبع‌اودبشرددغو لومړ نیواړتیاوو دپوره کولو غوره لارگڼل‌کیږی

که‌چیری‌مونږ دخپل هیوادپخوانی اواوسنی اقتصادی بې‌نظر واچوو نووبه‌ووینو چــی‌د کرنی سکتور دتولیداتو دارز ښت دبهر نیو اسعاروبرابرول، داوومو شیانوتولید،دصنا یعو لپاره اودکارگرانو اووگړو دلگیاکیدو له امله دهیوادپه‌نورو اقتصادی سکتور نوبا ندی څو څله ستردی. په‌دی‌ډول‌ویلای‌شوچی‌دافغانستان اقتصاد اساساپرکرنه ولاړدی‌اوڅر نگــه چی اټکل شوی‌دی‌زمونږ دهیواد په‌سلوکـــی ۷۵

برخی‌ملی عایدات له‌دغه لیاری څخه‌لاس تـه راځی‌له‌بلی خواداهم‌ښکاره ده‌چی‌تراوسه پوری دافغان‌اولس په‌سلوکی له‌۷۵ څخه‌تر۸۵ خلك په مستقیمه‌توگه په‌کرنه لگیادی

له‌دغه شمیر څخه‌په سلوکی‌لس‌یی‌کوچیان‌گڼل شوی دی پلاتی په سلوکی ۹۰ وگـړی دغنمو جوارو وریجو،اوربشو،پومبه، میوواودسا بو په‌تولید اخته دی.

دغه‌رازکرنه دوړینواونخی نساجیو، نبا تـی غوړیو، شکری اونورو مصنو عاتو اومه مواد تیاروی په‌دی‌ډول دتجارت‌په برخه کی هم دزراعت‌داغیزی‌په‌باب‌هیڅ شك‌نه پاتی کیږ ی اوزیاتره تجارتی فعالیتونه دزراعتی شیا نـو په‌پلوزلو بناشوی‌دی.

سره‌ددی‌چی کرنه داقتصاد اصلی رکن او زیاتره بشری فعالیتونه‌دی خواته‌متر جه دی بیاهم بایدووایو چی‌تراوسه پوری‌دکرنی‌چاری په‌لومړ نی بڼه سرته رسیږی دکرنی‌وسایل ډیرساده دی‌اودماشین استعمال یواز ی پـه محدوده اندازه صورت نیسی. په‌ډیرو سیمو کی‌هرکال داوبودلږوالی له‌امله‌په سلوکی له ۵۰ څخه‌تر ۷۵پوری مځکی بی‌حاصله‌پاتی‌کیږی له‌بلی خوادهیواد دټول مساحت څخه یوازی ۸ر۷ملیونه هکتاره یاپه سلوکی ۱۲بز خـی مځکه‌دکرنی لاندی ده‌له‌دغی‌اندازی څخه ۳ر۵ ملیونه هکتاره مځکه په‌آسانه توگه داوبولگولو لپاره چمتو کیدای شی خوداوبو دلږوا لـی له‌سببه‌هرکال ۵ر۲ ملیونه هکتار ځمکه‌تراوبو لگونی لاندی‌را ځی.

په‌افغا نستان‌کی‌دمځکی لوی څښتان (لـوی مالکین ) په‌نسبی‌توگه لږدی‌داډله دخلکو پـه منځ‌کی حاکمه طبقه ده‌چی خپل ځانته‌پرا خه مځکه ،ژرنده کاریز اوبشپړدکرنی وسا یـل لری‌دوی کروندگرو سره دبیلوبیلو اړیکو له مخی چالچلن کوی .داډول‌مالکین دهقانان‌یاپه اجیرډول‌نیسی اویاداچی‌ددوی په مځکوپور ی په‌مستقیم ډول‌تړلی اودکال‌په پای‌کی خپلـه دهقانی‌له څښتن څخه‌لاس‌ته‌راوړی.دځمکودمالکیت اندازه‌په‌سیمه ایزه‌توگه‌له یوه‌ځای‌څخه‌بل‌ځای‌ته توپیرمومی،یعنی په‌هغوځایوکی چـی ځمکـی پراخی وی‌نودځمکودمالکیت اندازه‌هم پرا خه کیږی‌په‌داسی حال‌کی چی په ځینونورو بر خو کی‌دځمکی‌دمحدودیت له‌امله دمالکینوشمیر او دمځکی اندازه‌هم ټیټیږی.

دهغوعواملو په‌لړکی چی زمونږ دکرنـی تولیدات یی‌دزیان‌سره مخا مخ کړی دی‌اویادا چی ددغوتولیداتو دپرمختیا مخه نیسي ځینی یی‌دلته راوړوخوداهم بایدووایو چی داعوامل نه‌یوازی کروندگر،اولوی مالکین زیا نمن‌کوی بلکه دهیوادټول وگړی‌په مستقیمه‌توگه تـر اغیزی‌لاندی نیسی. نوموړی عوامل‌په دی‌ډول دی.

۱ـ داجیروکروند گرولیږدیدل دبناروتوپه لورچی په‌دی‌ډول ددوی‌زر ثمر اړونکی‌کارو نه پیل‌کړی

۲ـدځوان نسل‌پا ملرنه دکرنی څخه‌اوښتی اونورو کاروته یی‌مینه ښودلی‌ده.

۳ـدپراخواو زیاتو مځکوتصر فـدځا نگړو خلکو له‌خواچی دوی نشی‌کولا ی‌ددغو سترو مځکوښه پالنه وکړی

۴- دمځکه لرونکو دتوان لږوالی چی دناوړه شرایطو اونباتی یاحیوانی ناروغیو سره نشی کولای مبارزه وکړی.

نوموړی عوامل نه یوازی اقتصادی کمزوری دسترومالکینو پهبرخه کوی بلکهواړه ځمکه لرونکی اوبالاخره دهیواد ټول وګړی زیا نمن کوی. دغه اقتصادی ستونزی په ډیره چټکـــی دمسوولو مقاماتو له خوادرك اوله منځهوړل یی دجمهوری دولت ترهدایت لاندی پـه منظمو پلانونو سره کیږی.

دافغا نستان مځکی دزرا عتی استعداد لهمخی منځی حالت لری یعنی نهډیری ښی اونه ډېـــری شاړدی دکیمیاوی سری لږ لګښت ددی سبب کیږی دمځکو کمزوری لاپسی زیـــا تـهشی. دکرنی وړنباتات زمونږ پههیواد کیډیر زیات دی په تیره بیاغنم پهډیرو ډولو سره پیداکیږی. نور غوره نباتات جوار، وریجی، اوربشی، جودر، اوړدن دغلو پهلړکی او چنی (نخود) باقلی اومی (ماش) دبقولاتو په جمله کی یادولای شو.

دحیواناتو دروزنی لپاره درشقی اوشفتلی کرنه هم په زیاترو سیموکی رواج لری پومبه هغه نبات دی چی پهپهنږدی وختو کی یی بـا ب موندلی دی.

افغا نستان دنورو پرمختیا یی هیوادو پـه څیر دکرنی په برخه کښی زیات پرابلمو نه لری ددغو ربړودلری کړلو لپاره دپلانونو دجوړولو مفکوره منځ تهراغله څودهغوپه وسیله دخلکو دژوند سطحه لوړهاوله طبیعی منابعو څخه په اعظمی توګه استفادهوشی. دجمهوریت دنیکمر غه راتګ څخه پخوادافغا نستان پلانونه دپنځـو کالو لپاره طرح کیدل اولومړنی پنځه کلن پلان په ۱۳۳۵ کال تر اجرالاندی ونیول شو. ددی لپاره چی لوستونکی دپلانونو دارزښت اودهغو اغیزی څخه زمونږ دهیواد پهاقتصادی اړخو په تیره بیا په کرنه کی درك کړی نولازمه ده چی په پخوا نیو پنځه کلنو پلانو باندی رڼاواچول شی

لههغه ځای څخه چی زمونږ اقتصادی بنسټ پرکرنه ولاړدی نو په لومړنی پنځه کلن پلان کی ددغه سکتور دپرمختك لپاره ډیر زیات مناسب شرایط ومنل شول . پهدی ډول دکرهنی دګړندی انکشاف په خاطریوه زیاته اندازه پیسی په نظر کی ونیول شوی څودحمل ونقل اودمواصلاتو دفقدان لهامله چی دپروژو دعملی کیدو لپاره یو محرکه قوه ګڼل کیږی، دکرنی سکتوردضرورت پهحکم سره پهلومړنی اودویم پنځه کلن پلا ن کی خپل ځای دغهسکتور (مواصلات او حمل و نقل) ته پریښود.

دولت پهلومړ نی پنځه کلن پلا ن کی ۱۴٫۶ ملیارده افغانی پهنظرکی ونیول چـــــی ۹٫۸ ملیارده له بهرنیو منابعو او ۴٫۸ ملیاردهپـی دپوره پهډول لهبهرنیو منابعو څخه طرح کړی د د غو پر مختیا یی لګښتو نـــو لـــــه لـــړ څخـه ۳٫۱ ملیا ر ده افغا نـــی دکـــر نی په برخه کی اندازه شوی دی

دلومړی پنځه کلن پلان رښتونی هدف داوړچی دکرنی پهبرخه کی داوبو لګولو دپروژو پـــــه جوړولو سره نوی مځکی لاس ته راشی اوپهدی ډول دکرنی لاندی ساحه پراخه کړی. دغه راز

پەدغه پلان کی دحاصلاتو دزیاتوالی دناروغیو له منځه وړل او دکرنی دسیستم دسمون هیلی ښکاره شوی دی.

کەچیری مرنډ لومړنی پنځه کلن پلان پــــه عمومی توگه تحلیل کړوو بەوینوچی دکر نی پەبرخی کی دومره پر مختك راغلی نەدی چی دهیواد زراعت پەپخوا نی تو گــــه باتــــی شو ورځ پەورځ ډیـــر یــــدو نکـــی نفو س اړتیا وی تر سره نکړ اولـــدی کبله وه چـــی ددغه پلان پەاوږدو کی خوراکی شیان پــه بـــــی ساری ډول لږ شول ددی څخه علاوه دغنمو دکمبود لەامله یوه اندازه غنم دبهر څخه راوغو ښتل شول. پەلومړی پلان کی دکروند گرودژو ند دجگوالی لپاره دځمکی دیوه واحد تولیدات دومره زیات اوچت ونه گرزیدل.

دتولیداتو دکمبود علت لکه چی مودمخه وویل دمواصلاتو دپراختیا عاجل ضرورت وو چی دکرنی پەچاروکی پە مستقیمه توگه اغیزه کوی. دکرنی دسکتور پرمختیایی لگښت یوازی پە سلوکی ۶ر۱۲ ته کل کیدای شی. لەبلی خواد کر نی په برخه کی هم دلگښت زیاته اندازه داوبو لگو لــو پروژو ته متوجه وه دمثال پەډول دهلمند، ننگرهار اوسردی پروژی چی دجوړولو کاریی هم پەلومړنی پلان کی بشپړ نەشو اودویم پلان تەیی انتقال ومو ند.

پەدی ډول د کرنی پە سکتور کی دلږی پانگی اچونی لەامله پەلومړی پلان کی اغیزمنی عملی نتیجی لاس ته رانه وړل شوی.

دلومړی پنځه کلن پلاندپای تەرسیدووروسته دویم پنځه کلن پلان پە ۱۳۴۰ کال کی طرح او تر سره کیدل یی پیل شول.

پەلومړی گام ددغه پلان د پانگی اچونی اندازه پەبیلو بیلو سکتوروکی داډول اټکل شوی ده:

| سکتور | اټکل شوی لگښت پەملیون افغانیو | دلگښت فیصدی |
|---|---|---|
| صنعت، کانو نه، انر ژی | ۱۰۵۰۸ | ۳۳/٥ |
| حمل و نقل او مخابرات | ۸۰۰۶ | ۲٥/٥ |
| کر نه او او بەلگو ل | ۷۳۶۰ | ۲۳/٥ |
| ټو لنیز خدمات | ۳٥۱۰ | ۱۱/۲ |
| متفر قه | ۱۹۶۹ | ۶/۳ |

ددغه پلان لەمخی دکرنی پەسکتورکی پەسلوکی ۶۷ برخی پانگه داوبو لگولو دچارود سمر ن لپاره ټاکل شوی وه.

ددویم پنځه کلن پلان اهداف داووچی دورځ پەورځ ډیریدونکی نفوس اړتیا وی دخورا کی شیانو له پلوه رفع کړی.

دغه رازدنیو صنایعو داړتیاوړ یومبه اوچنغدر لاس تەراشی ددویم پلان داټکل لەمخی مونــــږ دتولیداتو زیاتوالی اودکرنی لاندی سا حـــی پراختیا دلته یادوو:

| اقلام | ساحه په هکتار | تولیدات په زرومتریك تنوسره |
|---|---|---|
| غنم | ۲۳۸۲۰۰۰ | ۲۳۳۹۰۰۰ |
| جوار | ۵۰۳۰۰۰ | ۷۵۵۰۰۰ |
| اوربشی | ۳۵۲۰۰۰ | ۳۰۵۰۰۰ |

پەداسی‌حال کی چی په لومړی‌پلان کـی‌پورتنی احصایی دارنگه‌وی :

| | | |
|---|---|---|
| غنم | ۲۲۳۰۰۰۰ | ۳۲۷۹۰۰۰ |
| جوار | ۵۰۰۰۰۰ | ۷۰۰۰۰۰ |
| اوربشی | ۳۵۰۰۰۰ | ۳۸۷۰۰۰ |

پەخواشنی‌سره‌بایدووایو چی ددویم پنځــه کلن‌پلان‌اټکلونه‌په رښتونی توگه‌عملی نه‌شول داځکه چی‌پرمختیایی لگښت‌په بشپړه تو گه ٤ر٦ملیارده‌یاپه سلوکی ۲۰ دهغه‌پیسو څخه لږووچی په‌پلان‌کی پیش‌بینی شوی‌وو.

له‌دی‌امله‌په‌دغه پلان کښی‌دحمل‌ونقل‌اومواصلاتو دسکتور څخه پرته په‌نورو برخوکی ښکاره کمښت راغی‌داهم باید ووایوچی دحمل ونقل لگښت دضرورت په‌اساس ترنوروسکتوروزیات وواوپه‌دغه‌پلان کی تقریباً ۲۰۰۰ کیلو متره سړك‌پوخ شو.چی په‌نتیجه کی‌دهیواد ستـر اقتصادی اوبشری‌مراکز سره‌وصل شول.

دویم پنځه‌کلن پلان‌دکرنی ماشینی‌کید ل اودخارویو سمه روزنه‌خپل‌لوړهدف وگـڼا نـه دکرنی دسکتوردا‌تو ملیاردو افغانیو په نظرکی نیولوسره یوازی څلور ملیارده‌افغا نی‌لاس‌ته راغلی‌اوولگیدی‌په‌دی ډول‌ددویم پنځه کلن‌پلان ستراتیژی همدپانگی دکمښت‌له امله شبپړه نه‌شوه.

که‌چیری مونږلره اندازه‌زیا توالی‌پلان په اوږدوکی دپیشی بینی‌سره په‌نظرکی‌ونیسو نو لیدل‌کیږی‌چی‌په دویم‌پنځه کلن‌پلان‌کی دغنمو دکرنی لاندی‌ساحه لـــه ۲۲۳۰۰۰۰ هکتا رو (۱۳٤۰)دلومړ ی پلان پای څخه ۲۳٤٦۰۰۰ هکتارو (۱۳٤۵)ته اوچته شوه‌په داسی حال کی‌چی‌پلان ۲۳۷۲۰۰۰ هکتاره اټکل کړی‌وه.

دتولیداتو په برخه‌کی ددویم‌پلان هدف‌تــر ډیره حده تطبیق شویعنی پلان دغلودتولیداتو اندازه څلورملیونه ټنه‌ښودلی‌وه په‌داسی حال کی‌چی په‌عملی‌توگه ۳۷۰۰۰۰۰ ټنه‌یعنی‌له‌اټکل شوی اندازی څخه‌یوازی ۳۰۰۰۰۰ ټنه کمی غلی لاس ته‌راغلی.

لاندنی‌جدول دکرنی منځنی تولیدات پـــه لومړی‌اودویم‌پنځه‌کلن پلان‌په دوران کـــــی څرگندوی:

| | لومړی پلان : | دویم پلان: |
|---|---|---|
| حبوبات | ۳۵۵٤۰۰۰ټنه | ۳۵۷۷۰۰۰ ټنه |
| پومبه | ۵۰۰۰۰ټنه | ٦٤۰۰۰ ټنه |
| دحبوباتو ساحه | ۳۲٦٦۰۰۰هکتاره | ۳٤۰۷۰۰۰ هکتاره |
| دپومبی ساحه | ۸٤۰۰۰ هکتاره | ۷۲۰۰۰ هکتاره |

لەجدول شخەشرگندیږی چیددویم پلان پەاوږدوکی دغلواونو روزراعتی تولیداتوزیاتوالی ډیرلږدی پەدی توگه دوگړی دچټکږیــــ ښت پە مقابل کی نشی کولای چی توازن وساتی دخلکو دژوند سطحه اودصنعتی خامومواداړتیا دکرنیدبهیدبدلیدو اوعصری.کیدو غوښتنه کــــوی پەدیعلت سره دولت پەنظرکی ونیول چیپەدریم پنځەکلن پلان کیدکرنی تولیدات‌اوچت شی او پە نتیجه کیدنفو سدوبر ښت سره انهول برابر کړی.داول‌او دویم پلان‌اقتصاد ی پراختیاددریم پنځه کلن پلان لپاره ښه زمینه‌مساعده‌کړواودپانگی اچونی شانگړی‌اودو لتی منابع‌دنومونږی‌پلان دترسره کیدو لپاره چمتوشوی.

ددریم پلان‌پەجوړیدو سره دکــــر نــیدانکشافی لگښتونو اندازەدنورو سکتورو پە نسبت پەسلوکی ۲ر۲۹تەاوچته شوه، پەداسی‌حال‌کی‌چی دحمل‌ونقل دسکتور لبارەدپا نگی اچونی اندازەټیټه شوه.

لاندنی جدول‌پە دریو پنځەکلنو پلانو کیدپرمختیایی لگښتو اندازه پەمیلیاردافغا نیو شرگندوی :

| | لومړی پنځه‌کلن پلان (حقیقی لگښت) | دویم پنځه‌کلن پلان (حقیقی‌لگښت) | دریم پنځه‌کلن پلان اتکل‌شوی لگښت |
|---|---|---|---|
| ۱ــحمل و نقل‌او مو اصلات | ۵/۱ | ۹/٦ | ۳/۱ |
| ۲ــ کانو نەاو صنایع | ۲/۷ | ۸/۸ | ۱۰/۷ |
| ۳ــ کر هنه | ۱/۳ | ۳/۳ | ۹/٦ |
| ۴ــتو لینز خدمات | ۰/۸ | ۱/۸ | ۵/۵ |
| ۵ــمتفرقه | ۰ر۳ | ۰ر۳ | ۳ر۰ |
| ٦ــتو ل | ۱۰/۳ | ۲۵ | ۳۳ |

ددریم پنځه کلن‌پلان داتکل لگښت ونــــــەدداخلی اوبهرینومنا بعو شخه لکه شنگه چی ښایی لاس‌تە رانه وړل شوه نو څکه ددریم پنځه کلن‌پلان ددویم‌کال پە پای کی دلگښت اوعوایدو فصلونە دموجودو امکاناتوپە حدودکی‌تجدید نظروگرزیدل، پەدی توگه دپا نگی اچونی اندازه دلومړنی مسودی شخەپە سلوکی ۱۸کم‌شوه‌لاند نیجدول دکــرنی غـــوره تولیدات پەدریم پلان‌کی لەدویم پنځەکلن‌پلا ن‌سره‌پە‌پر تلییزډول شرگندوی :

تولیدات‌ددویم پلان‌ددویم کال په‌پای کـی‌تولیدات ددریم‌پلان‌په لومړی کال‌کی (۱۳۵۰)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ــ غنم | ۲۰۳۳۰۰۰ | تنه | ۲۴۸۰۰۰۰ | تنه |
| ۲ــ وریجی | ۳۳۷۰۰۰ | تنه | ۳۷۲۰۰۰ | تنه |
| ۳ــ اوربشـــی | ۳۷۵۰۰۰ | تنه | ۴۱۴۰۰۰ | تنه |
| ۴ــ جوار | ۵۰۰۰۰۰ | تنه | ۷۰۰۰۰۰ | تنه |
| ۵ــ پوسبه | ۶۱۰۰۰ | تنه | ۱۶۰۰۰ | تنه |
| ۶ــ چغندر | ۶۶۰۰۰ | تنه | ۱۲۰۰۰۰ | تنه |
| ۷ــ غوښه | ۱۸۰۰۰۰ | تنه | ۲۰۱۰۰۰ | تنه |
| ۸ــ دسپه‌وړی | ۲۴۰۰۰ | تنه | ۲۷۴۰۰ | تنه |
| ۹ــ قره‌قلی‌پوستی | ۲۵۶۰۰۰۰ | جلده | ۳۰۰۰۰۰۰ | جلده |
| ۱۰ــغوایان | ۳۶۰۰۰۰۰ | راسه | ۴۰۰۰۰۰۰ | راسه |
| ۱۱ــ ټول پسونه | ۲۱۶۰۰۰۰۰ | | ۲۳۰۰۰۰۰۰ | راسه |
| ۱۲ــ قره‌قلی‌پسونه | ۵۶۰۰۰۰۰ | راسه | ۶۵۰۰۰۰۰ | راسه |

دجدول شخه خرگندیږی‌چی‌په دریم پنځـــه‌کلن‌پلان کی‌دکرنی تولیدات‌دومره‌زیات‌نه‌شول. په ۱۳۵۰کال‌کی ټول حبوبـــات ۳۷۰۰۰۰۰تنه‌یا په‌سلوکی ۳ر۱ده۱۳۴۵کال شخه‌زیا تاو په‌سلوکی (۱۵)دپلان‌داټکل شخه کم‌دی. پـه‌دریم پلان‌کی‌دغنمو اووریجو دیوه وا حـــد تولیدات ده۱۳۴۵ کال په‌نسبت اوچت شول.دغنمودیوه هکتار منځنی‌حاصل ددریم‌پلان په لومړیو خلوروکالوکی ده۱۳۴۵کال په مقا یسه‌چی ۸۷۰کیلو گرامه وو ۹۵۰کیلوگرامو تـه ورسید.

دغلو تولیدات په‌دریـــم پنځه‌کلن‌پلان کی‌دوگړوددېربنت سره‌انډول‌ونه‌ساته یعنی‌دوگړو ډیربنت په‌سلوکی دوه‌وو په‌داسی‌حال‌کی‌چی‌دغله‌جاتوډیربنت په‌سلو کی۷ر۰ اټکل‌کیږی. په‌بله وینادغنمو تولید په۱۳۵۰ ده۱۳۴۵کال‌په‌نسبت‌دیوه‌نفرلپاره‌په‌سلو کی ۸کم‌وو ددغه کمښت علت‌پرله‌پسی وچ‌کالی‌وه‌چی دهیوادپه‌زرگو نوخلك‌یی‌زیانمن کړل‌اودولت محبورشوچی‌ددریم پنځه‌کلن‌پلان‌په ورو‌ستی‌کال‌کی یوځه غنم له‌بهر شخه‌راوغواړی ددریم‌پلان په‌وروستی کال کی دغنمو کمبود ۵۰۰۰۰۰تنه‌اندازه‌شوی‌دی داهم بایدووایوچی‌دجوی‌حالاتودخرابتیاسره‌سره په ۱۳۴۶ ــ۱۳۴۹او۱۳۵۰ کالوکی علـــی‌دلومړاودویم پنځه‌کلن پلان په‌نسبت ډیری‌دی .

دامو ضوع پەلاندنی جدول کـــی ډیرەښەښکارندیږی.

| دحاصلاتومنځنۍ اندازه | په لومړی پلان کی | پەدویم پلان کی | پەدریم پلان کی |
|---|---|---|---|
| ټول غله جات | ۳۵۰۸۰۰۰ ټنه | ۳۵۷۶۰۰۰ ټنه | ۳۷۰۸۰۰۰ ټنه |
| غنم | ۲۱۸۷۰۰۰ ټنه | ۲۱۵۸۰۰۰ ټنه | ۲۲۴۶۰۰۰ ټنه |
| جوار | ۶۵۹۰۰۰ ټنه | ۷۱۵۰۰۰ ټنه | ۷۳۳۰۰۰ ټنه |
| وریجی | ۳۰۹۰۰۰ ټنه | ۳۲۵۰۰۰ ټنه | ۳۸۸۰۰۰ ټنه |

لە۱۳٤۵ کال راهیسی غنم او پومبه په کال کښی په سلو کی دوه زیاتوالی ښیی په داسی حال کی چی په نوموړی نیټه کی دمیوو اوسابو ډیروالی په سلو کی یودی.
دجوارو اوربشو اوغو ړلرونکونباتاتو پـــه برخه کی زیاتوالی راغلی نه دی.
لاندنی جدول دکرنی غوره حاصلات په۱۳۵۳کال کی ښکاره کندوی:

| اقـــــــلام | تولیدات ۱۳۵۲ | تولیدات (۱۳۵۳) |
|---|---|---|
| ۱— غنم | ۲۵۰۰۰۰۰ ټنه | ۲۷۵۰۰۰۰ ټنه |
| ۲— وریجـــی | ۴۵۰۰۰۰ ټنه | ۴۲۰۰۰۰ ټنه |
| ۳— جوار | ۷۶۰۰۰۰ ټنه | ۷۷۰۰۰۰ ټنه |
| ۴— پومبه | ۶۳۰۰۰۰ ټنه | ۱۴۵۰۰۰۰ ټنه |
| ۵— چغندر | ۶۲۰۰۰ ټنه | ۶۶۶۰۰ ټنه |
| ۶— کنی | ۲۲۰۰۰ ټنه | ۵۱۰۰۰ ټنه |
| ۷— غوړلرونکی نباتات | ۳۵۰۰۰ ټنه | ۴۰۰۰۰ ټنه |
| ۸— انګور | ۲۲۰۰۰۰ ټنه | — |

**صنعت :**

دکرنی پەرښتونی پرمختیا سره صنعت هم دودی په لورځی او پەداسی شرایطو کی دملت بشری توان دآرام ژوندلاس تەراوړلو لپاره پەکارلویږی کەلەیوی خواکرنه داقتصادلو مړی ستن ده له بله پلوه دصنعت دمتوازن شته والی څخه دکرنی ترځنګ انکارنه شوکولای کـوم وخت چی انسان دخوراك له پاره هڅه کوی پەاړخ کی یی دخوراك دلاس تەراوړلو وسایل او دخیل ځان دپټولو لوازم دضرورت پەحکم برابروی پەدی توګه کرنه اوصنعت دیوبل لازم اوملزوم ګڼل

کیږی زمونږ پههیواد کښې‌دصنعت تاریخچه ډیره لرغونی اودپخوانیو زمانــو راهیسی پهدغه بـــر خــه کښې نسبې وړاندې ی تګ‌لیدل کیږی،خودابايد ووایوچی نننۍ ی دپخوانیو صنایعو پهتیره بیادسپکــو صنایعو دارزښت پهمنلوسره سره نویو اوما شيني صنایعوته لومړی‌چانس ورکوی ځکه‌دوخت په اقتصادسره یوازی ماشین کولای‌شی چی‌دورځ پهورځ‌ډیریدونکی نفوس اړتیا بشپړه‌کړی .

افغانستان دیوه پر مختیایی هیوادپه څیر دصنعت پهچاروکی رښتونی بدلون‌راو ستلی‌نه دی‌ځکه ددغه سکتور پراختیاپوره اوغته‌شته منی غواړی‌ترڅو ورځی پوری زمونږ وطنوال دصنعت دپراختیا لپاره هڅه‌کوی خوپه‌دغه‌لار کی ځینی‌خنډونه‌ووچی‌په لنډډول وړاندې‌کیږی.

۱ـدتاریخ پهاوږدوکی دسختو یرغل‌کوو نکی ترتورو لاندی زمونږمدنی ښارونه لکه بلـــخ هرات،غزنی اونورشو خله‌وران‌اوآبادشوی‌دی‌چه پدی‌توګه دصنعت پهچاروکی‌یی وروسته‌والی‌راغلی

۲ـدبهرنیو یرغل‌ګرانودیرغلوپه‌نتیجه‌کی هیواد تجزیه شوی‌چی‌په‌دی ډول دبیلوبیلوسیموتر منځ‌اقتصادی هماهنګی‌شلیدلی وه.

۳ـدوریښمودلاری تړل کیدل یوبل ګــذار ووچی زمونږدمحلی صنایعوپه‌بدن یی‌حواله‌کړ.

٤ـدهنددنیمی قاری نیول‌دانګریزا نــو له خواچی پهنتیجه‌کی‌یی افغانستان دپخومو ادو پلورلو اوداومو شیانو درانیولو مرکزوګرزاوه

٥ـدپانګرالیږ بنی ساری پرمختګ‌چه پهلا تین امریکا،افریقا اوآسیا کښې‌یی دخواروولسونو دلوټولو لپاره‌ناوړه پالیسی طرح‌کړی.

٦ـزمونږدهیوا دپانګه وال ددرنډو صنایعود تأسیس‌سره مینه‌نه لری ځکه‌دوی یوازی ژر ګټه‌اخستونکوفعا لیتونه‌ته پاملرنه کوی.په‌دی ډول‌دملی پانګومتوجه کول‌نورو خوا وو تـه دصنعت مزی‌کمزوری کړی‌دی.

۷ـملی پانګه وال‌دبهر نیوپانګه والو لپاره ددلال پهڅیرفعالیت‌کوی اودهغوی‌مالونه‌په‌هیواد کی‌پلوری‌په‌دی توګه ددوی پانګه‌دپردیومالونو درانیولو اوپلورلولپاره پهکارلویږی‌نه دا چی دهیواد دصنعت ددوی‌اوپرمختیا لپاره یی‌په‌کار واچوی.

له‌نیکه مرغه‌دجمهو ری نظام‌په‌راتګ سره‌دا صنعتی خنډونه ډیر ژردرك اودهغوله‌منځه‌وړلو لپاره کلك‌اقدامات پیل‌شوی دی دانقلاب رهبر ښاغلی‌محمد داوددصنعت دودی‌په هکله‌په‌خپله تاریخی وینا (دافغانستان خلکوته‌خطاب) کی فرمایلی‌دی چی‌ددرند وصنایعوپرانستل‌د هیواد دګړند ی‌پرمختك ضامن دی.

په‌دی‌اساس دهیواد والودڅرګندو اړتیا وو دلیری‌کولو لپاره دصنعت رښتو نی‌پر مختك ددولت غوره‌هیله ګڼل‌کیږی.

څرنګه‌چی کلیوالی صنایع‌په ټیټ ډول په‌ټول هیوادوکی لیدل کیږی نوځکه ددغو صنایعو د تولیداتودښکاره کیدولپاره سمه احصایه‌نه‌شته په‌دی‌ډول مونږدصنعتی تولیداتو احصا یــــی یوازی دماشینی صنایعوپه‌برخه کی‌وړاندی‌کوو.

لاندنی‌جدول‌په ۱۳۵۰او ۱۳۵۲کال کــــی دهیوادغوره صنعتی‌تولیدات څرګندوی:

| تو دليداتو نوو ل | تو ليدات(۱۳۵۲) | | تو ليدات (۱۳۵۰) | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ــ حلاجی شوي پو سبه | ۲۵۰۰۰ | ټنه | ۱۶۸۰۰ | ټنه |
| ۲ــ نخی ټو کر ان | ۷۶۰۰۰۰۰۰ | متر ه | ۶۲۰۰۰۰۰۰ | متر ه |
| ۳ــ سنلي ټو کر ا ن | ۱۳۳۳۰۸۰۰۰ | متر ه | ۱۰۵۳۷۰۰۰ | متر ه |
| ۴ــ ور ين ټو کر ا ن | ۱۳۳۴۰۰ | متر ه | ۲۸۴۰۰۰ | متر ه |
| ۵ــ سمنټ | ۱۳۵۰۰۰ | ټنه | ۷۳۰۰۰ | ټنه |
| ۶ــ بر يښنا ۰۰۰۰۰۰۳۵۲۵ کيلوات في ساعت ۲۲۴ مليونه کيلو وات ساعته | | | | |
| ۷ــ دغنمو او ړه | ۳۸۰۰۰ | ټنه | ۹۲۰۰۰ | ټنه |
| ۸ــ شکر ه | ۷۴۰۰ | ټنه | ۸۵۰۰ | ټنه |
| ۹ــ نباتی غو ړي | ۳۲۰۰ | ټنه | ۳۰۰۰ | ټنه |

ددغودووکالو دپر تله کولو څخه ښکاره کيږي چی په ۱۳۵۲ کال کی د۱۳۵۰کال په نسبت په ډاگه زياتوالي راغلی دی دمثال په ډول دسنلي ټوکرانو په برخه کی په سلو کی ۲ر۴۰اودسمنټو په برخه کی په سلوکی ۸۵زياتوالي راغی دغه راز دشکری اودغنمو داوړو څخه پرته په ټولو نورو توليداتوکی ډيرښه پرمختنك ليدل کيږي. په ۱۳۵۲کال کی دفعالو اوغوره صنعتي مؤسسو شمير ۱۶۱ته رسيده چی په هغوکی ۲۹۰۰۰ تنه کارگران په کار مصروف وو دځوان جمهوری رژيم دپريکړو په اساس دصنعتي ودی لپاره خانگي ی او ښهرني پانگی دنوی موضوعه قانون له مخی په کارلويږي په دی ډول دخارجي مالونو دمخنيو ی لاراواريدای شي.

**مواصلات او حمل و نقل**

ددی لپاره چی دکرنی ،صنعت او سوداگری برخی په سالمه توگه پرمختنك وکړی نو په لومړی سر کښي مواصلاتی کرښو جوړول ضروری معلوميږي دحمل او نقل اومواصلاتو په سم انکشاف سره اجتماعي اواقتصادی مرکزونه يو له بل سره نږدی کيږي . په دی ډول دوگړو اړتياوی په گوټ گوټ کی په آسانی سره ترسره کيدای شي.

دپلان جوړولو دسيستم څخه پخوانه يواز ی دتوليدی مراکزو ترمنځ اړيکی کمزوری وی بلکه داقتصادی موضوعاتو په پراختيا کی يی هم خنډ ونه اچولی وه.داقتصادی ستونزو په نتيجه کی ټولنيزی ربړی هم منځ ته راغلی وی.

دپلان جوړولو د سيستم په بيل بيلو سيمو ترمنځ اړيکی ټينکی اودتوليدی مـوادو

لیږدول بهرنیو بازاروته په‌آسانه توگه سرته رسیږی. که څه‌هم په لومړی پلان کی کرنی او صنعت ته‌زیاته‌ونډه اولومړی حق‌ورکړل‌شوخود مواصلاتو اوحمل ونقل دزیان اونه‌شته والی له‌امله‌دضرورت په‌حکم دغودوو سکتوررو ځیل ځای‌مواصلاتوته پریښودپه‌دی توگه‌زیاته پانگه‌دغه وروستی سکتورته متوجه شوه.

دمواصلاتواومخابراتو په برخه کی‌دلومړی پلان دپانگی‌اچونی ونډه ١ر٥ ملیارده افغانی، دویم پلان ٦ر٩ملیارده، اودریم پلان برخه ٣ر٣٨ ملیارده‌افغانی وه.

په‌څلورم‌پنځه کلن‌پلان کی‌دټولو پانگی اچونی څخه‌چی ٩٣ر٣٠ ملیارده افغانی وی دمواصلاتو اومخابراتو لپاره ٨٩ر٢ملیارده‌افغانی وټاکل شوی په‌دی‌ډول وینوچی‌په‌لومړی دویم دریم‌او څلورم‌پنځه‌کلن‌پلان‌کی دمواصلاتو او مخابراتو لپاره جمعاً ٨٧ر١٥ملیارده افغانی تخصیص شوی‌دی. ددغه پانگی څخه په‌سلوکی ٨٠ برخو یی دسرك جوړولو برخی ته ورکړل شوی. ددریو پنځه‌کلنو پلانو (اول، دویم، دریم) په‌دوارن کی ٢٥٠٠ کیلو متره‌سړك قیر او اسفلت شوی‌دی. په‌څلورم پنځم کلن پلان کی ٦٠٠کیلومتره دویمه اودریمه‌درجه سړك هم ترکتنی لاندی نیول‌شوی دی.

دسړکونو اولویولارو جوړول نه‌یوازی دوقت دسپمالپاره ارزښت‌لری بلکه‌نقلیه وسایلو داستهلاك څخه هم‌مخنیوی‌کوی. په١٣٥٢کال کی دپخوسړ کونو دزیاتوالی ..ره سره دموټروپه شمیرکی‌هم زیاتوالی راغلی‌دی.

په١٣٥١ کال‌کی دټولوډولو موټرو شمیر ٢٦٤٠٠ عرادی‌و، په داسی‌حال‌کی چی په ١٣٥٢کال‌کی داشمیر ٣٤٦٠٠ عرادوته‌او چت شوچی په‌سلوکی ٣١زیاتوالی ښکاره کوی. دهوایی حمل ونقل په برخه کی هم دیادونی پرمختك‌راغلی‌دی. ځکه‌چی افغا نستان یو غرنی هیواددی نو دهوایی کرښو زیاتوالی اړتیا حس‌کیږی. په‌وروستیو کالوکی دملکی هوایی اوتوریزم عمومی ریاست څو ډوله الوتکی (بوینگ، یاك، کانویر اوتیی نانتر) داستفادی لپاره چمتوکړی‌اوپه دی‌توگه‌دپستی اومسافرینو . په‌لیږدولو کی‌یی‌آسانتیاراوستلی ده. په ١٣٥٠ کال‌کی دآریانا دالوتکو عواید ٣٣٤ملیونه افغا نی‌ووپه داسی‌حال‌کی چی په ١٣٥٢کال‌کی ٢ر٤٤٠ ملیونو افغانیوته چی ٤ر١٤ فیصده‌زیاتوالی ښکاره کوی‌ورسید .

**کانونه :**

افغا نستان‌دکانی‌موادوله امله شته‌من دی خوتراوسه پوری دتخنیکی وسایلو دکمښت‌له کبله‌تری بشپړه‌گټه اخستل‌شوی نه‌ده زمونږ دهیواد غوره‌کانونه اوسپنه، سرب، جست ، مس، سره‌زر سپین‌زر، سکاره، نفت‌طبیعی گاز مالگه، لاجورد، یاقوت زمرد، لعل اوداسی‌نور دی چه‌تراوسه پوری دمالگی‌سکرو طبیعی گازاو ځینو کریمه‌ډبرو څخه‌تریوی اندازی گټه اخستل کیږی.

له‌١٣٥٠کال څخه‌تر ١٣٥٢ کال پوری دافغانستان‌غوره کانی موادپه لاندی ډول دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دتوليداتو ډول | واحد | ۱۳۵۰ | ۱۳۵۱ | ۳۵۲ |
| طبيعي گـــاز | مليون متر مکعب | ۲٦۳۵ | ۲۸۴۹/۳ | ۲۷۳۵ |
| ډبرو سکاره | زرټنه | ۱۳۵ | ۷۰/۹ | ۱۱٦/۵ |
| مالگه | زرټنه | ۳۰ | ۳۱ | ۳۲ |
| لاجورد | زرکيلوگرام | — | ۲/۹ | — |

دجدول څخه څرگنديږي چېدطبيعي گازپه برخه کي په ۱۳۵۲کال کي د۱۳۵۰ کال په نسبت په سلوکي ۸ر۳زياتوالي راغلي دی.
ډبرو سکرو په برخه کي په۱۳۵۲کال کـــي د۱۳۵۱کال په نسبت ۳ر٦٤ډيروا لي ليدل کيږي.
که څه هم يوه اندازه نفت هم په هيوادکي لاس ته را څـــي څـو اندازه يـــي ډيره لـړه ده داهم بايـــد ووايـــو چي په ۱۳۵۲کـــال کي دکانو څخه لاس ته راغلي توليدات دارزښت لـه مخي۱۷ر۱ ملياردوافغانيو ته رسيږي.

ډبرو سکروکانونه پـه آشپشته ،کر کر،دخان آباد په بنگي،دصوف په دره اودهرات په کرخ کي ليدلای شو. په داسی حال کي چي داوسپنـــي کانونه په حا جيگک، دکندهار خاکـــر يـــز، جبل السراج،ار غنداب اودبد خشان په ځينو برخوکي پيداشوي دي مس په لوگر، پنجشير،ميدان او تخته پل کي ليدل کيږي.سره زره په بدخشان، تخار، سپين زر په پنجشيراودکندهار خا کر يز کي له پخوارا هيسي پيژندل شوی دی.

**سوداگری (تجارت )**

افغا نستان لـــــه پخوانيو زمانورا هيسي دگاونډيواوليری پرتوهيواد وسره په مستقيمه ياغير مستقيمه توگه سوداگری درلوده اوله دغي لاری څخه زياته اندازه بهرني اسعار لاس ته راوړل کيدل که څه هم دهيواد په دننه کي هم دبيلو بيلو سيمو ترمنځ په لږه اندازه تجارت کيږی خو مونږ په دغه بحث کي يوازې بهرني تجارت چي دهواد په اقتصادکي غوره اغيزه کوی تر کتنې لاندې نيسو.

څنگه چي افغانستان لــــه يوي خوا زراعتي هيواددی اودخپلي اړتيا څخه زيات دکر نـــي شيان په بهرنيو بازاروکي پلوری له بله پلوه ديو پرمختيايي هيواد پـه څيردی ته اړدی چـــي د صنعتي موادو کموالي د بهرڅخه بشپړ کړی ددغه اصل له مخه دخوراکي شيانو اوپه لږه پيما نه دشکراو منسوجاتو څخه پر ته نورټول استهلاکي او توليدی موادله خارج څخه راوړل کيږی ددی لپاره چي زمونږ خپل اقتصاد پياوړی کړای شي نوهرومرو به دزراعتي شيانوصا درات پــــه زياته پيمانه اونبه کيفيت سره تر سره کيږی که داسي نه وی زياته اندازه اسعار به د بهرنيوملکو

شخه هیوادته رانه‌وړل‌شی. له‌بلی مواد‌وارداتوونه‌دی‌له‌صادراتو شخه‌کمه‌وی‌په‌داسی حال‌کښی
سوداگری زمونږدهیواد په‌گټه‌ده.

لاندنی جدول‌له ۱۳٤۰ کال شخه‌تر ۱۳۵۲کال‌پوری صادرات اوواردات دارزښت له‌مخی
دزرو افغانیو په حساب خرگندوی :

| کال | صادرات | واردات |
|---|---|---|
| ۱۳۴۰ | ۲۲۲۳۰۷۹ | ۲۰۳۳۸۳۹ |
| ۱۳۴۱ | ۲۹٦۷۵۵۳ | ۲۹۹۲۵۳۳ |
| ۱۳۴۲ | ۳۳۵۹۱۳۳ | ۳۱۰۳۸۰۱ |
| ۱۳۴۳ | ۳۱۵۲۰۲٦ | ۳۹۲۷۰۰۸ |
| ۱۳۴۴ | ۵۰۲۵۳۰۰ | ۳۰۵۸٦۳۵ |
| ۱۳۴۵ | ۳۸۳۵۲۵۹ | ۳۹۸۳۸٦۱ |
| ۱۳۴٦ | ۵۰۱۷۵٦۸/۵ | ۳۷۵۵۳۳۰ |
| ۱۳۴۷ | ۵۳۳۸۳۱۵/٦ | ۳۸۸۳۲۸٦/۱۰ |
| ۱۳۵۲ | ۸۷۳۵۰۰۰ | ٦۷٦۵۰۰۰ |

له‌پورتنی جدول شخه خرگندیږی چی‌دافغانستان‌بهرنی تجارت‌په زیاترو کلو کی
زمونږ په گټه‌تمام شوی‌دی یعنی صادرات‌دارزښت له‌مخی تروارداتو ډیردی.

# نقش فرهنگی افغانستان در عهد اسلامی

## پیشگفتار:

ادارهٔ سالنامه، یك سلسله‌مقالات رادربارهٔ تاریخ فرهنگی افغانستان تقدیم میدارد .

عمده ترین هدف این مقالات تقدیم یك سلسله مطالب مفید دربارهٔ جنبه های فرهنگی تاریخ کشور میباشد .

باید تذکر دادکه دوره های مختلف تاریخی رانویسندگان ومؤرخان مختلف کشور تحریر داشته اند .

ازجانب دیگر ، معلوم است درنظر گرفتن دوره های مختلف تاریخی، که بطور معمول ازروی سلاله های حاکمه حدبندی میشود ، درزمینهٔ فرهنگ اعتبار کامل ندارد .

بطور مثال ، یك دانشمند علوم طبیعی، ویاشاعر، ویاعارف رادر می یابیم، که درزمان دوسلاله دریك شهر زندگی کرده است، ویا اینکه دراثر مسافرت، ازیك شهر به شهر دیگر، به تاریخ سلالهٔ دیگری منسوب شده . به عبارهٔ دیگر، نه درزمینهٔ توالی سالها و قرون، ونه درزمینهٔ جغرافیایی، یعنی پیمودن کشورها وولایات وشهر ها، نمیتوان حدبندی وتفریق قاطع قایل شد .

از ینجا ست که درین مقالات مختلف ، که یکی پی دیگر درج گردیده بعضی نا مها ومطالب مکرر آمده است .

بهتر آن بود، که نگارندگان این مقالات، چند مجلس منعقد نموده ومقالات خودرا با یکدیگر مرتبط ومنسجم مینمودند . اما برای این مقصد، وقت‌کافی دردست نبود ونخواستیم چاپ این مطلب به تاخیر بیفتد .

بنابرین درینجا، این مقالات رایکی پی‌دیگر تقدیم کرده ازخوانندگان آرزومندیم هرمقاله راجداگانه ارزیابی نمایند . درآینده امکان دارد، بامراجعهٔ مجدد به این مقالات وتبادل نظر بین نویسندگان آن، و اقدامات مزید، جهت همآهنگی بخشیدن مقالات توسط انجمن تاریخ، امکان استخراج یك رسالهٔ مفید ویکدست ازآن بوجود آید .

# پښتو ادب د پېړیو په پوړیو کې

**(داسلامی دوری له پیلیدو دخپلواکی ترګټل کیدو پوری) .**

دوخت اوښتون رااوښتون اوددی خــاوری دحساس موقعیت په درلودلو سره په تاریخی افغانستان باندی په بیلو- بیلو وختو کــی دبیلو- بیلو یرغلګرو اوتیری کوونکو تیریو، اړدوړ اوورانیو، دپښتو ژبی ډیری پانګــی له منځه وړی اوله خاوروسره یی خاوری کړی دی نوځکه دپښتوادب په باب دپه لاس کــی سندونو اوتاریخی پاڼو له مخی لاتراوسه هم دی پوښتنوته ځواب نشی ورکول کیدای چی:

دپښتو لومړنۍ لیکنه :

«چا ؟»

« څه وخت ؟»

«چیری ؟ »

کړی ده ؟

اودپښتو لومړنۍ ادبی نمونه :

«څنګه ؟»

«په کوم لیک ؟»

«دڅه په باب ؟»

ده ؟

له دی سره ـ سره بیاهم دپښتو ژبــی دجوړښت ، ویپو (لغتو) ، تاریخی سیراونورو نښنو نښانو له مخی دڅیړوهانو اوژب څیړونکو لپاره داټکل ډګرډیرارت اوپراخ دی اوداسی بیلګی اونښی پهلاس‌کی شته چی دپښتوژبی ژوندله زرګونوکلونو ورهاخواد تاریــخ ډیرو ژړو پوړیوته وررسوی .

موږددی لپاره چی زموږ دالیکنه ټاکلی تګ لاره لری ددی اوږدی موضوع له څیړلوڅخــه تیریږو اوپه افغانستان کی داسلامی دوری له راپیلیدو وروسته دپښتو ادب دبیلګو اونمونو په لټون پسی ګرځو اودلته چی څه لیکو هغه یوازی اویوازی دترلاسه شویو نمونو اوسندو له مخی دی کنه باور دی چی دڅیړنوډګرته دپښتوادب ډیری لرغونی نمونی رامنځ ته شوی اوډیری زیاتی ادبی پانګی او شتمنۍ یادزمانی ناخوالو له ځانه سره وړی اویالاتراوسه هم دڅیړونکو له سترګو څخه نهامی دی اودپلټنی اوڅیړنی وارلانه دی پری پیښی شوی .

موږدکار داسانتیا له امله دالنډه اوکوټلی (فشرده) کښنه دپیړیوپه پوړیو ویشلی ده، په هره پیړۍ کی دپښتنو لیکوالو اووپناوالو دکښنو اوویناوپه څرګ پسی وزو او پـــه هره پیړۍ کی دپښتو ادب فکری او شکلی خواوی په لنډ ډول څیړواوپه دی ډول پوړۍ په‌پوړۍ مخ‌په وړاندی راځو اودخپلوا کــی ترګټلوپوری رارسیږو .

**لومړۍ پوړۍ) لــومړۍ هجری پیړۍ (۱ـ۱۰۰هـ ق ـ۶۲۲ـ۷۱۸ ع) :**

په لومړۍ هجری پیړۍ کی دپښتو کوم لیکل شوی متن لالاس ته نه دی راغلی څوکله

چی دمخې پوړیو ته سرراهسك كړو اودپښتو اولسي ادب پخې نمونې اودامیر كروړ پخه او كروړه ویاړنه‌ولولونو هیڅكله موږ ته دی‌خبره زړه اوبه نشي څنبولي چــې پښتو ادب د ی له اسلام نه وړاندې لومړنۍ اودخاړپوخو او دخوانیدواودی پخوالي ته درا رسیــدو دوری نه‌وی تیری كړی ، په اولسي ادب خصوصا لنډیوكي ډیری داسي بیلگي اونمونې موموچی سره له‌دی چی دزمانی تیریدلو اوله یوی خولی نه بلې خولی ته‌یی رانقلیدلوبڼه څه ناڅــه وربدله‌كړی خودفكر اومحتوی له پلوه په‌څپله داگواهی لی چی‌دالنډۍ ډیری زړی‌اودلرغونو زمانو دی . خوله دی سره ــ سره څرنگه چی ددی پیړۍ دادبی بیلگو په باب لیكلی سند نه‌لرو اوددی پوړۍ دپاسه د پښتوادب دپل نښې ړنگی شوی نوځكه داوس له پاره موږ‌هم دراتلونكو څیړنو په هیله تری تیریږو .

**(دوهمه پوړۍ) دوهمه هجــــر ی پیړۍ (۱۰۱ــ۲۰۰ ﻫ ــ۷۱۹ــ۸۱۵ ع) :**

كله چی‌سړی ددی پوړۍ دپاسه پښنه‌كیږدی دغورپه مندیش كی یوه لوړه ماڼۍ تر سترگو كیږی ، یوڅوان پاچاپه ډیربرم پكی ناست دی اوداویاړنه یی غوږوته راځی :

زه یم زمری پردی نړۍ له ماتل نسته
په هندو سند و پرتخاراوپركابل نسته
بل په زابل نسته
له ما ا تــل نسته

داځوان پاچا امیر كروړ دامیر پولاد سوری زوی دی چی په ۱۳۹ﻫ كال دغورپه مندیش كی پرشاهی تخت ناست دی اوكله یی چی ډیری سوبې وكړی، دغور ټول گوټونه او د بالشتان اوخیسار اوتمران ماڼۍ اوبركوشك یی ټول ونیول اوایوادونه یی ضبط كړل نوپه‌دی ویاړنه یی خوله پرانستله اودپښتوادب یوه ډیره غوره اوپخه نمونه یی راپریښوده اودایی راوښوده چی پښتو ادب ډیری پیړۍ پخــوا سترگی پرانستلی دی (۱) .

له همدی پوړۍ نه‌چی دغزنی‌لورته راوگورو دلته موهم دلویكانو دواكمنی كورنۍ یوبیت توغوږه كیږی چی دپښتو په ډیره زړه لهجه چی كتابونو دلسان خلجیه په نامه یاده كړی ویل شوی اویوی بی‌لاسو اوپښوزړی نسخی ترموږپوری رارسولی دی (۲) .

په دی پیړۍ كی پښتو ادب دفكرله پلوه خاص پښتني رنگ لری اودنورو اغیزنه پكی موموٍ. ملي غرور، په خپلو مټو نازیدل او د ننگ اومیړانی په لاره تلل دپښتنو طبیعی خاصه ده اوداامیركروړ په ویاړنه كی په‌ښه ډول وینو. دفورم اوبڼې له مخی هم پښتــــو پاڅكی یوڅانگړی جوړښت لری چی له آریایی سندرو سره سرلگوی اودتازی له اغیزی څخه وتلی دی . همداویاړنه موږته دهغی وخـت دپښتو ژبې متره اوقوت هم راښیي او راته څرگندوی چی هغه وخت پښتوژبه دنوروژبوله اغیزه وتلی وه اودومره قوت یی لاره چــی ډیرژریی دنوروژبو راغلو وییو ته نوی نومونه مونډلای اودودولای شوای‌لكه«منبر» او«خطیب» چی دوه نوی اسلامی نومونه وو اودكروړپه ویاړنه كی په «دریغ» او «ستایوال» اړو ل شوی دی . همدا راز پښتو پاڅ كی لـــــه

همـــدی وختـــه څخـــه دژوند پاړکی دی د پښتنـــو ژونـــد یی انځـــور کړی اودذوی تولنیز تاریخ یی په خپله لمن کی رانغښتـــی دی خصوصا اولسی سندرودی دودته ښه وده ورکړی اوپه همدی توسن انګریزی ختیځ پوه «مستر راورتی» چی په پښتو ادب کی ژوره مطالعه لری دی نتیجی ته رسیدلی چی ووایی: «پښتانه که څه هم ورځپاڼی اونوری خپرونی نه لری مګرهغه ساده اوعامیانه اشعار اوبدلی چی په عام ډول دپښتنو دهری طبقی له خوا ویلی شوی، ددوی تاریخ اوورځپاڼی بلل کیدای شی .» (۳)

### دریمه پوړۍ دریمه هجری پیـــړۍ (۳۰۱–۴۰۰ھ –۹۱۳–۱۰۰۹ ع) :

په دی پیړۍ کی له تازیانو سره دپښتنو راشی ددرشی زیاتیږی او ادبی راکړی ورکړی پیلیږی، پښتانه پوهان، عربی سیمو ته ځی اوله عربی پوهانو څخه زده کړی کوی، بیابیرته خپل هیوادته راځی دلته دخپلو خلکو له پاره دنوروفکرپه خپله ژبه رااړوی اودادبی پوهنو په باب کتابونه کاږی . ددی پیړۍ پیژندل شوی ادبی څیره هاشم دزیدسروانی زوی دی چی په ۲۲۳ھ ق کال دهلمند په سروان کی زیږیدلی اوپه بست کی له زده کړی نه وروسته عراق ته تللی، هلته یی له ابوالعینانومی پوه سره کلونه تیرکړی په ۲۹۴ھ ق بیرته خپل هیوادته راغلی اوپه ۲۹۷ کال په بست کی مړشوی دی .

دپه لاس کی معلوماتو له مخی دی لومړی سړی دی چی په پښتو کی یی له عربی څخه ادبی ژباړی پیل کړی اوپښتوادب ته یی له تازی څخه توکی اوطنزراوستلی دی .

دهمدی سړی په لاس دپښتو نثر بنسټ هم ایښودل کیږی اودی دعربو دفصاحـــت اوبلاغت په باب «دسالووږمه» په نوم دپښتو نثرلومړی کتاب کاږی چی موږته یی له بده مرغه له نامه پرته نورڅه نه دی راپاتی (٤) .

داپیړۍ په لرغونی افغانستان کی دعربـــو دبشپړاوټینګ نفوذ اوپه پوهه طبقه کی دعربی ژبی ددودیدلو دوره ده خوپه څنګ کی یـــی دادوره دملی غورځنګونو اوملی خپلواکۍ دبیا پیلیدلو دوره هم ده لکه چی په همدی پیړۍ کی دافغانستان یوه برخه دطاهریانو تربیرغ لاندی خپلواکی ترلاسه کوی او دپردو کړۍ له لاسونو څخه ماتوی (۵) .

ددی ملی غورځنګونوپه څنګ کی فکری غورځنګونه هم په خپل ځای ؤ اودپښتوپـــه اولسی ادب کی یی بیلګی اونمونی پیداکیدلای شی .

### څلورمه پوړۍ څلورمه هجری پیـــړۍ (۳۰۱– ٤۰۰ ھ –۹۱۳ –۱۰۰۹ ع) :

په دی ټولو پیړیو کی دافغانستان په بیلو- بیلو سیمو کی دپښتنو واکمنۍ جوړی وی دهیوادپه ختیځو خواؤکی له ننګرهار، پیښور بیاترملتان پوری دلودیانو پښتنو واکمنی وه، دی واکمنانوهم لکه دسوریانو او لویکـــانو غوندی پښتو پاړکی درلودل اودزړه رازونه یی پکی خرګندول .

داوخت درقیبانو دکوټلو اوراځملولو لپاره دکفراوالحاد ټاپه هم یوه زوروره او «بربنس

لرونکی» وسله‌گرځیدلی وه خصوصا دغزنویانو پیاوړی واکمنی دهیواد اکثری محلی واکمنی په همدی نامه رنگی کړی . لودیان هم ددی وسلی ښکار کیدونکی وو نو ځکه کله چــی شیخ رضی واوریدل چی دده دتره زوی امیر نصردملحدینو سره ناسته ولاړه لری دترټنی پاړکی یی ورواستاوه اودی یی په ترخو ټکو کی دخپلی کورنی دسپکاوی سبب وګاڼه او ورته ویی ویل چی زموږ له کهوله نه یــی خوامیر نصردی ددښمنه ؤ له نورځخه خبرکړ اوورته ویی ویل :

دالحاد په تــور تــورن ســوم
زه لرغون خــو ملحــد نه یم
د دښمنــو و ینــا وی مغــبره
زه لــودی یمه څــو ز ه یــم

له‌دی‌احتیاط سره ــ سره بیاهم دوی دجوړی شوی دسیسی ښکار او دقرامطه ؤ پنامه په ٤٠١ هـ ق دسلطان محمودغزنوی له‌خواومروړل شول اوددوی وروستنی واکمن داؤد بن نصر دمحمود په بندکی ومړ .

ددی پیړی دادوه پاړکی ډیر څه لری اود هغی وخت له اجتماعی اوسیاسی اوضاعوڅخه موږ ته ښه توګه خبروی (٦) .

دژبی له پلوه هم دادواړه پاړکی دپښتو وییونبه‌پانګه‌لری اودشعرله‌پلوه هم دیوه‌خاص ملی فورم ښکارندوی دی .

له همدی پوړی نه چی سړ ی دهیــواد دلویدیځه خواؤته وګوری دکسی غره په لمن کی دتورو کیږدیو یوه لویه مینه تر سترګو کیږی . نری ــ نری اورونه راپورته دی او د یوی غرنی ونی لاندی یوسپین ږیری پښتون ناست دی له خپل خدای سره راز اونیازکوی، خپله پاکه مینه ورته ځرګندوی اوغوښتنــه تری کوی ، دځــه غــوښتنه ؟

دمیړو غوښتنه !

دڅه له پاره ؟ دځان دساتنی، دهیواد او مینی دساتنی دپاره اودپښتنی ننګ اوغیرت دساتنی له پاره ! ځکه داروڼ فکره پښتون هرڅه وینی اودخپل وخت له ټولو دسیسو او ناروا، تیریو څخه خبردی . داپښتون تاریخ دبیټ نیکه په نامه پیــژنــی او دپښتنو دسلسلة الانساب کښونکی یی دپښتنو له‌دری ګونوپلرونو څخه بولی (٧) .

دهمدی پوړی دپاسه ځینی نورپلو نه هم ښکاری، دبیټ نیکه په کورکی اسماعیل هم سترګی پرانیزی، دی هم دخپل پلار غوندی روحانی اوصوفی سړی دی، دینی پاړکی او د ژوندانه سندری وایی، دخپل تربره خرښبون په بیلتون کی ناری کوی :

که یون دی ــ یــو ن دی
مخکــی بیلتــــو ن د ی

اوداناری دهغو نارو بنسټ ږدی چی بیــا وروسته یی زموږپه ټولو ملی نکلو اوافسانو کی‌فورم‌راغبرګیږی‌اوتر‌نن‌پوری رارسیږی (٨).

خرښبون دسړبن زوی هم دهمدی پیړ ی سړی دی چی په ٤١١هـ ق کال یی له نړی څخه سترګی پټی کړی، ادبی ښندنی یی په همدی پیړی کی وی اودخپل تربره اسماعیل په ځواب کی‌ی ی له سوزه ډک ځلوریځ ویلی دی (٩) .

داپیړی دپښتنو ددینی او تصوفی ادب د

زيږيدون پيړۍ ده خوددينې او تصوفي ادب
بڼه یې دنورو ژبوله دی ډول ادب سره بیله
ده اوپښتني ځانګړنې لري .

همداراز داسماعیل اوخربښبون پاړکی ذدهغې
وخت دکورنی جوړښت، کورنی اړیکو او د
خوړی ترېوزگلوی اودخپلوانو دبنې او پخې
مینې ښکارندوی دی .

## پنځمه پوړۍ) پنځمه هجر ی پیـــړ ی
(٤٠١ــ ٥٠٠ ه ــ ١٠١٠ ــ ١١٠٦ ع) :

دتاریخ ددې پوړی دپاسه دپښتو ادب یوه
پخه اوترتیروپوړیونه نوی نښه راپاتی ده ،
دانښه دشیخ اسعدبولله ده چی هم دبڼې اوهم
دموضوع له پلوه په پښتوادب‌کی نوی زیاتون
دی اودازیاتون دهغې وخت دسیاسی‌اواجتماعي
پیښواوحالاتو څخه رازیږیدلی دی، څرنګه‌چی
پښتوادب دژوند انځوروونکی‌ادب دی نوځکه‌یی
وخت په وخت له پیښو او حالاتو سره سم
بدلونونه موندلی اودپیښو نښې یی خوندی
کړی دی .

په یوه هیوادکی ددوو پیاوړو واکمنیـــو
وجودڼپاتی‌کیدونه ږ. دغوریانو لرغونی واکمنی
چی له اسلام نه لاوړاندی بیاتردی وخته په
غورکی ټینګه وه دغزنویانو دنوی ، ځوانی ،
خواکمنی اودوخت دخلافت دملاتړی واکمنۍ
له کلک‌رقابت سره مخامخ‌شوه، سلطان محمود
غزنوی چی دټول هند سوبی‌کړی وی نودغور
سوبه هم ورته ګرانه نه وه . دپنځمی پیړۍ
په‌لومړۍ لسیزه کی ده دغور دهغې وخـــت
پاچاامیرمحمد سوری له اوږدی او سختی‌جګړی
وروسته دغورپه آهنګرانو کی محصورکړ ا و

غزنی ته یی بندی بوته . داغیرتمن واکمـــن
دبندله غیرته مړشو اوکله چی غورته ده د
مړینی خبر راورسیدونو دغور د وخت شاعر
شیخ اسعد ده په مړینه‌کی دویر یوه داسی
خوږه بولله وویله چی دادبی قوت جوړه یی
نه دوخت په‌دری ادب‌کی شته اونه یی پــه
پښتوادب کی ساری مومو .

دری ادب په غزنوی دوره‌کی ډیرښه پالل
شوی ؤ، دسلطان محمود غزنوی په دربارکی
څلورسوه شاعران موجود وو اودشعر ترټولو
ډولو قصیدو اوبوللو ښه وده کړی وه، دغور
اوغزنی دسیاسی سیالۍ ترڅنګ ادبی سیالی
هم توده وه، په غورکی هم لکه دغزنی غوندی
پخی بوللی دودشوی وی نو ځکه کله چـــی
امیرمحمدسوری ومړشیخ اسعدده ویرنه دیوی
پخی بوللی په چوکاټ کی وویله او دغـــور
ویرمنی یی پکی انځور کړه .

په دی پیړۍ کی ددری تراغیزلاندی ددری
سره دسیالۍ په غرض پښتو ته بوللی راځی
اوپه پښتوادب‌کی ویرنی پیلیږی (١٠) .

ددی پوړۍ دپاسه نوری ادبی نښی دزمانی
ترخوسیلیو ورانی کړی اوموږ تر اوسه تری
خبر نه یو.

## شپږمه پوړۍ) شپږمه هجر ی پیـــړ ی
(٥٠١ــ٦٠٠هـ ــ١١٠٧ــ١٢٠٣ ع) :

په دی پیړۍ کی ، شیخ تیمن کاکـــړ
(د٥٥٠ ه شاوخوا) . ښکارند وی غـــوری
(د ٥٨٠هـ شاوخوا) ، ملکیار غرشین (د٥٨٠هـ
شاوخوا) ، تایمنی (د٥٨٠هـ شا او خـــوا)
قطب الدین بختیار (د٦٠٠هـ شاوخوا)، اونور

شاعران رامنځ ته کیږی (۱۱) .

په شعرکی دمحتوی له پلوه دمینی سندری دستاینی بوللی، درزم اومیړانی ترانی را پیدا کیږی اودبهی له پلوه ملی وزنونه، بوللی او لیریك (غنایی) شعرونه وده کوی تردی چی ښکارندوی غوری دپخو بوللو غټ کتاب‌کاږی .

دهیواد له هری برخی څخه دشعر اوسندرو انګازی راپورته دی اوخصوصا دغور سیمه‌ددی پیړی دپښتو ادب ښه زانګو اوروزونکی ده .

**(اوومه پوړی) اوومه هجری پیـــړی (۶۰۱ـ۷۰۰هـ ـ۱۲۰۴ـ۱۳۰۰ ع) :**

داوومی پیړی په لومړی نیما یی کـــی پرافغانستان باندی چنګیزی تاړاکونه‌پیلیږی، د افغانستان ودان ښارونه په خـاورو اوړی، دهیواد علمی پانګی اوکتابتونونه داوراواوبو په خوله ورکول‌کیږی، دچنګیز دوحشی لښکرو له خوااانسانان وژل کیږی اوعام قتلونه‌کیږی.

داغیر انسانی پیښی دپښتنومقاومت پیاوړی کوی اودهیواد دساتنی جـــذ به یی تریخوا توندیږی، ملی غورځنګونه کیږی اوچنګیزی قواؤ ته ځای په ځای لوی لوی تاوانونـــه اړوی .

دهمدی پیښو تراغیز لاندی په پښتو ادب کی دیوه ادبی غورځنګ پیلامه کیږی او په پښتوادب کی دښکیلاك (استعمار) او تیـر ی ضدترانی اوملی حماسی پیلیږی او پـه دی سند روکی دخونخور غلیم‌سره پښتانه‌مقابلی ته رابلل کیږی، ددی ادب دشروکولو ویاړ دباباهوتك په برخه دی، ده په یوه هغه‌جګړه کی چی پښتانه لړاوچنګیزیان ډیرو او ددی

ویره وه چی پښتانه ماته وکړی دیوی تودی حماسی سندری په ویلو سره پښتانه دنهایی میړانی کولوته وهڅول څوچی یی په‌دښمنانو بری وموند، ده خپل ځوانان په دغه توګـــه ننګ اوجنګ ته هڅول اوورته ویل یی :

زلمو پرننګ ځانونه مړ ه کـړیء
دښمن په غشو مو پییه کـــړیء
دپښتو نخوا مځکی سا ته کړیء
پر کلی‌کورباندی مغل راغی (۱۲).

په دی پیړی‌کی دشیخ متی (کلات بـابـا) په وسیله پښتو ادب ته فلسفی فـــکر لاره ومونده اودعرفان او تصوف په یوه خاصــه لاری دښکلا اوجمال په سترګو دکایناتـــو ننداره وکړه اوپه ملی وزن یی دتصوف کلکی غوټی وسپړلی . ده «دخدای مینه» په نا مه دتصوفی پاړکو یوښشپړدیوان رامنځ ته کړ. چی له بده مرغه دزمانی تاړاکونو له ځانـــه سره وړی دی (۱۳) .

پښتوادب ته ددی پیړی یوه بله لویه‌ښښه دپښتو تذکرو لیکنه ده . ددی پیړی په پیل کی دسلیمان ماکوپه وسیله «تذکرة الاولیا» چی دپښتنو اولیا و واحوالونه پکی راغلی، کښله کیږی اویوپوخ نثرچی سجع یی لکه ددی وخت دزیاتو دری آثارو غوندی لږ ده مونږته راپریږدی .

دتذکری یواځی څوپاڼی دزمانی له تاړاکو څخه مونږته راپاتی کیږی اونور متن یی لکه دمونږ نورپه سووکتابونه دزمانی ترخی سیلۍ له ځانه سره وړی اودنشت غیږی ته یـــی سپاری خوداپاتی پاڼی یی هم زمونږپه ادبی

اوژبنی تاریخ‌کی ډیر ارځښت لري او زموږ دادب ځوږي نمونې زموږ لاس ته رارسوي او دپښتنو ځوتنه خوږژبي اودحال اوقال تښتنی ویناوال راپیژني (١٤)

په دې پیړۍ کې دادبي تاریخ په څنګ کې دعمومي تاریخ لیکل هم پیلیږي اومحمدبن علي بستي د٦٥٠هـ په شاوخوا کې د«تاریخ سوري» په نامه یوتاریخ کاږي چې دسوریانو ددوري په شاعرانو سربیره ددې‌کورنۍ عمومي حالونه هم لري اوپه اتمه‌هجري پیړۍ کې یوه بل پښتون لیکوال شیخ‌کټه په لرغوني پښتانه کې اخیستنی تري کړي دي (١٥) .

احمد لودي یوبل پښتو ن مؤرخ هم د«اعلام اللوذعي في‌اخبار اللودي »ترسرلیك لاندې دلودي پښتنو تاریخ د ٦٨٦هـ ق کال په شاوخواکې لیکي، داکتاب تریوولسمې پیړۍ پورې هم لاپه لاس کې ؤ اوکامران‌خان سدوزي په «کلیدکامراني» کې استفاده تر ی وکړه (١٦) .

په عمومي توګه په‌دې پیړۍ‌کې په‌پښتو ادب‌کې نوي زیاتونې وشوې اوپه یادوشوو خواؤ کې ارځښتناك آثار رامنځ ته شول .

**اتمه پوړۍ ) اتمه هجـــري پیـــړۍ (٧٠١ـ٨٠٠هـ ـ١٣٠١ـ١٣٩٧ ع) :**

په دې پوړۍ کې هم ځینې ادبي پلونه پاتې دي اوباوردې چې ډیر زیات پلونه یې ړنګ شوي اوتر خاورولاندې شوي دي ، په دې پیړۍ کې په وړاندې پیړیوکې دپښتنو ادب رانښلول شوي لارې دمخ په لوروهل شوې .

دملکیار هوتك چې د٧٤٩ په شاوخواکې ژوندي ؤ یوه خوږه ملي بدله راپاتې ده .

ددې پیړۍ په وروستۍ برخه‌کې د٧٨٠هـ ق کال په شاوخوا کې دزمینداوري اکبرپه لاس دپښتنو دخاصو ملي وزنونو یالرغونو شعرونو په ځای دوه ډوله نوري سندري منځ ته‌راځي یودپښتنو داوسنیو اولسي سندروبنسټ ږدي. اوبل ددري دغزلوپه پیروۍ پښتو ادب تـه دعربي اودري غزلوپه شان غزلې راننباسي او په‌همدې پیروۍ‌دوه بیز(مثنوي) وایي (١٧) .

له دې وروسته دپښتنو لرغونې پاړکې خپل ځای اوسنیو اولسي سندرو او دتازي اودري په پیروۍ ویل شوو پاړکوته پریږدي چې خپله شعري بڼه په لږ څـه تغییر اولسـی سندروته اوخپله محتوی بیا تقلیدي ادب ته ورپریږدي .

دنثرپه برخه‌کې هم ددې پیړۍ په منـځ (د ٧٥٠ هـ ق په شا اوخواکـــې) شیخ کټه دلرغوني پښتانه کتاب کاږي چې تردوولسمې پیړۍ پورې لاپه لاس‌کې ؤ اودپټې خزانـې مؤلف اخیستنې تري کړي دي (١٨) .

**نهمه پــوړۍ) نهمـــه هجـــري پیـــړۍ (٨٠١ـ٩٠٠ هـ ـ١٣٩٨ـ١٤٩٤ ع) :**

داپیړۍ دپښتنو په اجتماعي تاریخ کـــې زیات ارځښت لري چې دپښتو پرادبي خواهم بې اغیزې نه‌ده ځکه چې ددې پیړۍ په‌لومړۍ نیمايي کې دپښتنو یوملي مشر شیخ ملي‌خپل دفترکاږي په پښتنوکې داجتماعي عدالت اوملي سوسیالیزم یوه پخه تیږه ږدي او دمځکــو دویش یومعقول اودتولو دمنني و ړ سیستم رامنځ ته کوي .

ددی دفتر نسخی لږلیدلی شوی خوپه عملی توګه هندوستان او پښتونستان ته دانګریزانو ترراتګ پوری عملی ؤ اواوس لاهم په ځینی ځایوکی ددی ویش نښی نښانی په ځای دی، دی دفترمځکو په ویش سر بیره دپښتنو د تاریخ بابونه هم درلودل اوکه نسخی یی بیاتر لاسه شی دپښتنو دادب اوتاریخ ډیری تیاری به روښانه کړی (۱۹) .

دهمدی پیړۍ په پای کی خان کجورانیزی هم دشیخ ملی په پیروۍ دپښتنو تاریخ کاږی چی مؤرخین یی د«دفتر» تکمله بولی، ددی اثر اودفتر دواړو نسخی مستر راورټی لیدلی وی اوامکان شته چی دانګلستان په کوم کتابتون کی خوندی وی خو تر مــــوږ پوری نه دی رارسیدلی (۲۰) .

داجتماعی آثارو اوتاریخ لیکنی تر څنګ تذکره لیکل هم دوام مومی اوبابړ خان هـــم ددی پیړۍ په پای کی «تذکرهٔ غـــرغښت» کاږی (۲۱) .

شعر ویل هم پ‌ه‌دی پیړۍ کی وده کوی هغولودیانو ته چی موږپه څلورمه پیړۍ کی یادکړل یوخل بیاواکمنی وررسیږی او دهند دپښتنو یوواکمن سلطان بهلول لودی دشعر په ژبه دخپل دربار یوه شاعرته دخپل عدل اونیاو اواجتماعی اصلاحاتو ډاډ ورکـــوی . خلیل خان نیازی دسلطان بهلول لودی ددربار شاعردی اوپه پښتوکی یوه خوږه څلوریځـه تری پاتی ده اوښایی چی له خپل پاچا اونورو شاعرانو سره یی ډیری مشاعری‌کړی وی چی زموږلاس ته لانه‌دی رارسیدلی (۲۲) .

زرغون خان نورزی د دی پیړۍ یوبل شاعر دی چی د ۸۹۰هـ په شااوخوا کی یی ژونـــد کاوه ده چی دشعرونو لوی دیوان درلود ، یوه خوږه ساقی نامه تری راپاتی ده، دا ساقـــی نامه ډیره خوندوره اوروانه ده خوپه ژبه یی ددری لغات ورګډشوی اوهم یی ددری دساقی نامو په پیروۍ ویلی ده، داساقی نامه راښیی چی پ‌ه‌دی پیړۍ کی پښتو اودری یو پربـــل ډیری اغیزی کړی وی اوپښتوادب په لو یــه پیمانه ددری اثرمنلی ؤ (۲۳) .

داپیړۍ دیوی پښتنی ادیبی پته هم‌راکوی اودارابنیی چی پښتنو ښځمنو له اوږدو زمانو څخه دپښتنومیړونو ترڅنګ اجتماعی فعالیتونه کول اوډژوندپه ټولو اجتماعی چاروکی دمیړونو ترڅنګ ولاړی وی . دامیرمن زرغونه کاکړه ده چی دنهمی پیړۍ په پای کی یی ژوندکاوه اوخوارږه شعرونه‌یی ویل . دی په دری ادبیاتو کی ژوره مطالعه درلوده او ښایـــی ددری استادانو غوندی یی په پښتوکی هم استادانه وینا کړی وی . ددی خپل شعرونه په لاس‌کی نشته خودشیخ سعدی دبوستان دپښتوژباړی نمونه یی پټی خزانی خوندی کړی . چـــی وروسته پری غږیږو (۲٤) .

## لسمه پوړۍ) لسمه هجـــری پیـــړ ۍ (۹۰۱ ـــ ۱۰۰۰ هـ ـ۱٤۹٥ـ۱۰۹۱ ع) :

ددی پیړۍ په پیل‌کښی په ۹۰۳هـ ـ ق کال زرغونه کاکړه دشیخ سعدی دبوستان په‌پښتو کولوسره په پښتو ادب کښی داخلاقی شاعرۍ بنسټ ږدی د ۹۲۰ هـ ـ ق په شاو خواکی رابعه نومی کندهارۍ شاعره چه د کورګانی

بابرپه وخت كښې يې ژوندكاوه دښځمنوله‌خوا دعشقي شاعرۍ شروكوى اودميني په رمزونو اورازونو خوله پرانيزي .

د ۹۲۰هـ په شاوخواكى دوست محمد كاكړ دبابرخان كاكړزوى ددى له پاره چې دده دپلار له مرګه وروسته دبابرخان «تذكره غرغښت» وركه شوى وه راولاړيږى اوددى تذكرىمطالب چې ده ته يادوود «غرغښت نامه» په نامه‌كاږى اوداورك كتاب په‌دى وسيله راژوندى كوى خود غرغښت نامې هم يوازې يوه نمونه پټې خزانې موږته راخوندى كړې چې دكاكړ نيكه دزهد، تقوى اوميړانى كيسه كوى (۲۵) .

عيسىمشوانى ددىدورى بل شاعردى، دى پښتو ته رندانه تصوف راولى اولكه دهـرات پيرخواجه عبدالله انصارى (۳۹٦ـ٤۸۱) غوندى له‌خپل‌خداى‌سره رندانه رازاونيازكوى (۲٦) .

علي سرور لودى ددى پيړۍ يوبل عالـم اوعارف دى چې خواږه شعرونه يې ويلي او پټې خزانې يې دشعر يوه نمونه ترموږ پورى رارسولې ده .

ميرمن نيكبخته ددى پيړۍ يوه بله شاعره ده چې پښتو شعرېې دوعظ اودينى نصيحت لپاره په‌كاراچولى اودارشادالفقراء په نامه‌يې يووعظيه كتاب كښلى دى اودى روش بيا په راوروسته پيړيوكى دومره وده وكړه چې شعر په مطلق ډول ددينى تبليغ له پاره استعمال شوى اود شعريت ټولى ښيګڼې يې له لاسه وركړې خودميرمن نيكبختې شعر سر بيـــره پردى چې وعظ اونصيحت دى پوخ شعريت هم لرى اويوه نمونه يې پټې خزانى خونـــدى كړې ده .

شيخ‌محمدصالح‌الكوزى‌ددى‌دورى يوبل صوفى اومتقى شاعردى چې دشاګردانو اومخلصانـو يوه لويه حلقه يې درلوده اودده اشعاراواقوال په يې ليكل اودميني جهان يې هيڅكله پـــه شوكي اومنصب نه وركاوه (۲۷) .

شيخ بستان بړيڅ ددى پيړۍ په وروستيو كلـو كـې دبستان الاولـيـاء په نامه دپښتو صوفيانو اوروحانيونو اوويـړا والويوه تذكره وكښله او د تذكـــــره ليكنې دوديې ورروزه، ده عرفانى او عشقى شعرونه درلودل او ملى بدلوته يې وده وركړه (۲۸) .

شيخ قاسم هم ددى پيړۍ په وروستـــى برخه‌كي دتذكرهٔ اولياء په نامه يوكتاب كاږى اودپښتنو اوليااوو اوويناوالو ويناوى پكـــى خوندى كوى (۲۹) .

دالله يار تحفه صالح ددى پيړۍ يوبـــل ادبى سوغات دى چې نوموړى مؤلف دخـــپل استاد شيخ محمد صالح الكوزى احـوال او اشعار اودخپنى نورو شاعرانو ويناوى پكـى راوړى دى (۳۰) .

پښتو ادب ته دلسمي پيړۍ ډير لـــوى سوغات دروښانى ادب وړاندى كول دى څكه دهمدى پيړۍ په‌لومړى‌نيمايي كې‌په۹۳۱هـ ق كال دروښانى ډلى مؤسس بايزيد روښـــان نړۍ ته سترګى پرانستلى، دى داسى وخت زيږيدلى ؤ چې په هندكې دبابر د كوزنـــى له لاسه دپښتنوواكمنى تس نس شـــوى وه اوپښتانه دهندله بيلوـ بيلوبرخو څخه روه ته راشړل كيدل، په دى ليږدكى دبايزيـــد

کورنۍ هم شامله وه او بایـزید لاماشوم ؤ چې له‌جالندهر نه کاڼیگرام ته‌راولیږدیدل ، کله چې لوی شودده پښتون ضمیر دانشوه زغملی چې پښتانه دی د‌نورو ژغ په غاړه یوسي اوله خپلی واکمنۍ څخه دی بی برخی وی. دی دپښتنو دلـه‌لاسه تللـی عظمـــت دبیاراژوندی کولو له پاره د لاری په لټه‌کی شو، ده خاني اوپیسی نه درلودی چې خلك یی پر ځان را ټول کړی وای .

داوخت چې روحانیت اوروحانی ډلو زیاته وده کړی وه دی هم دیوه ځانګړی تصوفی مکتب دبنسټ اېښودلو په فکر کی شو، دروښانی تصوف چې اته پوړۍ یی درلودی دېـــــره یی کیښوده او خپل تاریخی کتاب خیرالبیان یی ددی مسلك دروښانتابه لپاره په څلورو پښتو، دری، عربی او هندی ژبو دعربـــی مسجـع نثر تــر اغیز لاندی دقـرآن‌کریم دسورة الرحمن په رنګ‌کی وکیښ او دخپل دی کتاب کښل یی خدایی الهام وګاڼه .

ده دروښانی تصوف دېری په ایښودلـو سره دتصوف راغلی او عنعنوی بڼه وربدله کړه، دده دتصوف‌بڼه دغرودغاروپه‌ځای‌دګړی دګرته وه، ډیر خلك پری رامات شول اوډیر ایماندار ملګری یی وموندل له کور ګانیانـو سره یی خوـ خوځلی میړنی جګړی وکـړی او یـــوځــل چــی دښمن وسله وال تیری پری کړی ؤ اودده ملګری تش لاس ؤ نودده په امریی دچوری ددرمونه کار واخیست اوپه دی وسیله یی خپل مجهز اووسله وال دښمن مات اوله زیاتو تلفاتو وروسته تیښتی تـــه مجبور کړ (۳۱) .

په هرحال روښانیانو په پښتو ادب‌کی نوی تیری کیښودی، دعربی اودری غوندی بشپړ مسجع نثرلومړی دبایزید روښان له خوا په خیرالبیان کی پیل شو، په پښتو کی بشپړ دیوان لومړی ځل ارزانی روښانی راپریښود، په‌پښتو کی‌رکنی عروض لـومړی پلا دولت لوانی روښانی تطبیق‌کړل، الفنامی لومړ ی ځل روښانی شاعرانو پیل کړی، دیو خا ص ډول صوفیانه بدلوله پاره دوی لومړی ځـل یوه خاصه بڼه اوسبك وټاکه اوهمـــداراز د موضوع او محتوی له پلوه ددوی په آثاروکی په اسلامی تصوف نوی زیاتونی وشوی او دوی تصوف‌ته د : «شریعت ،طریقت،حقیقت معرفت، قربت ، وصلت ، وحدت ، سکونت» اته پوړۍ وټاکلی چې ټول په یوه خولـــه په دی لاره روان شول اوپه خپلو لیکنوکـی یی دتصوف داپوړۍ ونغښتلی اووځیړلی . دوی په دی سربیره چې دتصوف تر ویښته نری مسالی څیړلی په خپلو لیکنوکی یـــی خپله ملی موخه اوهدف هم تعقیب کړی او پښتانه یی دی ته هڅولی چې یوملی حکومت اوملی مرکز ولری (۳۲) .

ددی پیړۍ روښانی ویناوال په بایزید روښان سربیره، ارزانی خویشکی، ملا عمـر خویشکی ، علی محمد مخلص واصل اوځینی نوردی . دبایزید روښان دمسجع نثرپه څنګ کی دده مرید ارزانی داسی نثر هم پیلوی چې سجع یی‌کمه ده اودیوه روان نثـر د لیکلـو له پاره لاره هواروی اودودوی یی (۳۳) .

اخون درویزه اودده ملگری هم دهمدی پیړی زیږنده دی . دوی په پښتو ادب کی کوم ابتکار نه کوی په هماغه ادبی لارو چی روښانیانو پرانستلی روانیږی اوددوی په پښتو مسجع نثر لیکنی کوی اودده زوی کریمداد دروښانیانو په پیروی گوډی اوماتی الفنامی رامنځ ته کوی(٣٤). دفکرله پلوه‌هم‌ددوی آثارملی ارځښت نه لری ځکه دوی دکورگانی دولت په لمسه دروښان په ضد تبلیغ کوی اوهغه کوی چی هغه تکفیر کړی اوپه دی حربه یی په پښتنو کی چه‌کلك مسلمانان دی عزت اووقار ختم کړی اوباغی یی وښیی .

**یوولسمه پوړی) یوولسمه هجری پیړی**

**(١٠٠١ -١١٠٠ ﻫ -١٥٩٣ -١٦٨٨ ع) :**

ددی پیړی په پیل کی روښانی ادب په خوښ کی دی په تیرو ویناوالو یی نورهم ورزیاتیږی لکه میرزا خان انصاری دولت لوانی، علی محمد بن ابابکر کندهاری خواجه محمداونور (٣٥) .

همدا پیړی دپښتونخوا په یوه بله ځنډه کی داخون ځالاك اودده دملگرو د مبارزو او مجادلو دوره هم ده، دی هم له یوی خوا له کورگانیانو سره مبارزه کوی اوله بله پلوه دمحلی کفارو (خصوصا داوسنی نورستا ن داوسیدونکو) دمسلمان کولو له پاره لیچی رانغاړی اوددوی داړولی مجادلی او مبارزی دده یوموید ملامست زمند په سلوك الغزات کی په مست شعرکی ځایوی اوتصوفی اشعار دمبارزی دبیان له پاره ددی سری له خوا دودیږی (٣٦) .

له کورگانیانو سره د روښانیانو تودی مبارزی اودکورگانی اجیرانو د سیسی دوی له منځه‌وړی خوله‌کورگانی دولت سره دپښتنو ددښمنی زړی راشین کیږی اوتر پخوا لاښه وده‌کوی اوداخل دامبارزه ددی پیړی په‌دوهمه نیمایی کی دختکو کورنی په غاړه اخلی اود کورگانیانو سره دمبارزی ډگرته دتوری اوقلم اتل خوشحالخان راوزی . خوشحال خان اړه نه لری چی خپله مبارزه له تصوف نه راپیل کړی ځکه دی خان دی اوله ډیر پخوا څخه پلویان اوملگری لری، ذی له شعرنه هم دتوری کار اخلی اودړوپك غوندی گوزارونه پری کوی .

دده په‌لاس پښتوادب له‌هری خوابشپړیږی، دپښتوساده نثرته وده ورکوی، دستارنامه او بیاض پری کاږی، دشعر هرصنف اوهر فورم کاروی اودموضوع اومحتوی له مخه هر ډول عشقی، حماسی، اجتماعی، انتقادی، دینی اوټوکی شعرونه وایی دسوات نامه په نوم سفرنامه، بازنامه اونورکاږی (٣٧) .

په دی پیړی کی ډیر شاعران اولیکوالان رامنځ ته‌کیږی اوډیری ادبی څیری نری ی ته سترگی پرانیزی .

ملاالف هوتك په ١٠١٩ﻫ کال دبحرالایمان مؤلف، امیر په ١٠٢٣ﻫ کال دپښتو تجویدمؤلف کریمداد داخون درویزه دآثارو بشپړوونکی اودالفنامومؤلف، خالق داداخون درویزه زوی دشرایط واحکام ایمان لیکونکی، عبدالحلیم درویزه یی شاعر ، اخون قاسم دفوائدالشریعة مؤلف ، بابوجان دخومجموعوخاوند، عبدالسلام

درویزه‌یی‌شاعر، قلندر، عبدالله(۳۸)اخوندمیاداد اخوند مصری، آدین، آزاد، بیگ محمد، نجابت قادر، کریمداد روښانی، شیخ فرید، حسین، فاضل، شیرمحمد(۳۸)ددې پیړۍ‌نوروپیناوال او شاعران دی .

همدارازپه همدی پیړۍ کی د خوشحالخان ختټک کره یو گڼ شمیر شاعرانو سترگـی پرانستلی چی داددهزامن اولونی وی اواکثرو یی خپله ادبی میوه ددوولسمی پیړۍ په پیل کی خپلی تولنی ته وړاندی کړه چی مشهوریې دادی : اشرف خان هجری، قادرخان، صدرخان سکندرخان ، بهرام خان، گوهرخان، حلیمه، آزادخان اونور (۳۹) .

دپښتنو لوی صوفی اومنلی شاعر رحمان بابا هم په همدی پیړۍ کی زیږیدلی اوپه‌همدی پیړۍ کی یی دخوږو شعروپه ویلو پیل‌کړی دی (٤۰) .

په دی پیړۍ‌کی په پښتو ادب‌کی هراړخیز بدلون راځی په هره برخه‌کی لیکنی کیږی . نظم اونثردواړه وده‌کوی ، ژباړی پیل کیږی اودنورو ژبو مهم آثارپه پښتواوړی .

**(دوولسمه پوړۍ) دوولسمه هجری پیړۍ (۱۱۰۱ــ۱۲۰۰هـ ــ۱۶۹۸ــ۱۷۸۵ ع) :**

داپیړۍ داسی وخت پیلیږی چی دپښتنـو ادب بن ډیر تازه اوښیرازه شوی اوله رازــراز ادبی گلونو څخه ډك دی، که څه هم ددې‌پیړۍ له شروکیدونه څومیاشتی وړاندی خوشحالخان ختټك له نړۍ څخه سترگی پټوی خوددده دلاس نیالگی په میوه راځی اوپښتو ادب تــه پــه زړه پوری ښښنی کوی، اشرف خان هجری‌خپل دیوان بشپړوی، قادرخان ختټك په ۱۱۱۲هـ ق کی، دمولاناجامی یوسف زلیخا ژباړی پــه ۱۱ ۽ هـ ق کال دشیخ سعدی گلستان پــه پښتو اړوی، خپل دیوان بشپړوی او دعربی دبردی مشهوره قصیده په پښتو بولله ژباړی اویوشمیر نور آثارکاږی، صدرخان ختټك، آدم خان اودرخانی کاږی، د دلـی اوشهو کیسه لیکی ، دحضرت رسول معجزی په خوږه پښتو راړوی اوخپل دیوان بشپړوی، دده لمسـی افضل خان ختټك دپښتنو لوی تــار یــــخ «تاریخ مرصع» کاږی اوانوار سهیلی پښتو کوی، دده‌لورحلیمه‌دخپلوشعرودیوان‌بشپړوی‌او دده دکورنی نورفاضل‌غړی په‌خپل‌ــ خپل وار پښتو ادب ته سوغاتونه وړاندی کوی .

بل لورته رحمان بابا خپل دیوان بشپړوی حمید بابا سترگی پرانیزی اودنیرنگ عشق، شاه اوگدا دکیسو اودشرعة الاسلام او خپـل دیوان په وړاندی کولوسره پښتو ادب غنی کوی، خواجه محمدبنگښ خپل دیوان کــاږی، محمدیونس درحمان باباشاگرد خپل دیـــوان بشپړوی، میرااوقلندرهم په همدی پیړۍ کی دسوزه ډکی ناری‌کوی اوپه خپلو شعرونوکی دخپلی تودی مینی تاوونه څرگندوی، غلام‌محمد هم معراجنامه، دوالضحی تفسیر جنگنامه اونور آثارکاږی، همداراز په ختیځه پښتونخوا کــی بای‌خان، حمیدگل، فیاض. نصرالدین، محی‌الدین سعیدخلیل، سعیدختټك، نیازمحمد، عبید، انار، ملنگ، نصرت، مومن، فیض الله، گله خان، نصیر، بنارس، فضل‌الحق، عالم‌گل، مسری‌خان بیدل، خوږدل، نجیب، نوازختټك، معاذ الدیــن

ختک، قاسم، قادرداد، اورکزی، اشرف خلیل، امیرخانهجری، مهین، امیر، عبدالله، میاعمر، محمدی صاحب زاده، عبیدالله احمدی صاحب زاده، افضل، احسن، انورشاه، اکرم، دوست محمد، سید، شیخ نامدار، شرف، شمشیر، شمس الدین، شاه غریب، شیرمحمد، طلب شاه، عجب، عبدالقاسم، عبدالقدوس، فاروق، میاخان، موسی، محمد، محمدیار، محتشم محمدگل، میاگل، مصری خانم، نورمحمد، نادر، نجیب الله قاضی زاده، محمدفهیم، فقیرالله، صدیق، فتحعلی، معزالدین، عبدالکبیر، نورمحمد، دلاورخان، مسعود، خانگل خلیل، کاظم خان شیدا، محمدگل مسعود، علیخان، خوشحالخان شهید، محمودرفیق، کاظم، معزالله مومند، عثمان، اودل، فضیل، عصام، محمدمظفر، ابوالقاسم، غفور، علیم، کامگارخان ختک، صمد، ملا عبدالرشید، اخوند گدا، جان محمد، الپوری حافظ، قاسم علي اپریدی، خواجه رزق الله، عبدالعظیم رانیزی، عبدالعظیم گنداپور، اونورتول ددی پوړی شاعران او ادیبان دی (٤١) .

په همدی پوړی کی دپښتونخوا په اویدیځه برخه کی دهوتکو ملی غورځنگ پیلیږی، دکورگانیانو، شیبانیانو او صفویانو ترمنځ په ویشل شوی افغانستان کی هره خوا ملی غورځنگونه اودملی خپلواکی غورځنگونه پیل دی، دهوتکوغورځنگ دروښانیانو او ختکو له غورځنگ نه وروسته‌دملی خپلواکی دترلاسه کولوپه لاره کی دریم لوی غورځنگ دی. دا غور ځنگ د صفوی تسلط اود گرگین دسفاکی په مخه کی دراولاړ شوی‌ملی قهر ښکارندوی دی چی په نتیجه‌کی ملی یون بری مومی اوگرگین اودده ساتونکی ددی ملی قهرپه توپان کی لاهوکیږی .

دی غورځنگ په پښتوادب‌کی هم یو بل باب پرانیست اودپردی ښکیلاك په ضدادبیاتو دمهیواد په‌دی برخه‌کی هم وده وکړه او د هیواد ددی برخی له خپلواك کیدلونه‌وروسته په کندهارکی دپښتو ادبی مرکز جوړیږی اودخوان تولواك شاه حسین په پام او توجه دپښتو له پاره اکاډیمیك کار پیلیږی، دادبی ټولنی غړی هره اوونۍ دده په مشرتابه غونډه جوړوی او دبیلو- بیلو علومو پو هان ددی ټولنی په سپارښتنه په هره برخه‌کی آثار کاږی اوښوآثارو ته صلی اوجایزی ورکول کیږی .

زرغونه انا دمیرویس نیکه مور او زینبه دمیرویس نیکه لورددی وخت خوږژبی شاعرانی وی. شاه حسین هوتك دمیرویس نیکه زوی محمدهوتك دپټی خزانی لیکوال، داؤد هوتك، ملاباز توخي، بهادر خان، ملا محمد صدیق پوپلزی، ملاپیرمحمد میاجی، اللهیاراپریدی، بابوجان بابی، ریدی خان مومند دمحمودنامی لیکونکی، ملامحمدعادل بړیځ، محمدطاهرجمریانی محمدعمر، ملامحمد ایازنیازی، ملامحمد حافظ بارکزی، نصرالدین‌خان اندړ، ملانورمحمدغلجی حافظ عبداللطیف اخکزی، سیدال خان ناصر، عبدالرحیم هوتك، ملاشیرمحمد هوتك، عیسی اخوندزاده ددی دوری خوږژبی شاعران او ویناوال دی (٤٢) .

په خبرکی ویل شویدی په نیولو شویو کسانوکی دکلبازی کلی اوسیدونکی ښاغلی خورشید هم شامل دی .

### دتلی ٦ـ٥٤

دپاکستان حکومتی مقاماتو دهغیولسیکرکی اونفرت سره دمقابلی کولو د پـــاره چــه دپښتونستان، بلوچستان اوپاکستان خلك یی ورسره لری دمعمول سره سم په بیلــو بیلو سیموکی دبندیزونو دقانون ١٤٤ ماده نافذه کړیده .

په یو وروستی خبرکی ویل شویدی پــه هغوسیموکی چه دپاکستان حکومت دبندیزونو ١٤٤ ماده پکی نافذه کړیده دپښتونستـــان دیره غازی خان سیمی شاملی دی .

چــه پــه دغــو سیمو کـــی دپاکستا نی حکومت په خلاف ولسی غونډی اومظاهـــری پیل شویدی .

### دتلی ٩ـ٥٤

دپښتونستان له پیښور ښخه په یوخبر کی ویل شویدی چه‌په هغه خای کښی دملیعوامی گوند یوتن په یوه ویناکی ویلی دی چـــه دپنجاب دپخوانی والی اودپیپلز گوند دمرکزی کمیټی غړی غلام مصطفی کرله استعفا ښخـه باید هغه‌کسان درس واخلی چه‌په پټو سترگو داقتدار پسی منډی وهی .

غلام احمد بلورویلی دی دپیپلز گونـــد دحکومت کولو طریقی شه بڼی نه‌وی خوغلام مصطفی کرچه دپټو رازونو دڕسوا کولو پــه باب کومی وعدی کړیدی له هغی ښخه هرچاته ښرگنده‌شوه‌چه‌دپاکستان اوسنیحکومت‌دامرانو حکومت دی .

غلام احمد بلور دپښتونستان له ولس‌ښخه وغوښتل چه دخپل حق غوښتلوتحریك پیاوړی کړی اویو مرکزته راغونډ شی .

### دتلی ١٢ـ٥٤

دبهرنیو چارو دوزارت داطلاعاتو او کلتور مدیریت خبراکړ چه افغانستان ته دبلوښــو پناه راوړونکو دراتگ په لړکی پدی وروستیو وختوکی دری نوی تنو نورو بلوښوچه ښځی اوماشومان پکښی دی دپاکستان دحکومـــت دظلم اوتیری اودهغه هیواد دعسکری قــواء دبیرحمانه حملوله امله دافغانستان خاوری ته پناه راوړیده .

دافغانی سری میاشتی ټولنیدپناه راوړونکو دنوی ډلی دخوراك اواستوگنځی لازم ترتیبات نیولی دی .

* * *

دپښتونستان په پیښورکی له پیپلز گوند ښخه بشیر احمدخان اوغلام محمد خان دهغــه گوندمهمو غړو استعفا کړی اودنورو غـــړو داستعفا کولو انتظار شته .

په پښتونستان کی دملی حکومت په خلاف یوه ډله جوړه شوی اودکابینی دوزیرانـــو ترمنځ مخالفت پیدا شویدی اوښایی چه په پیپلز گوندکی شامل پښتانه هم دخپل نماینده ملی عوامی گوند ملاتړ وکړی .

## دتلی ۱۳-۵٤

دپښتونستان له باجوړ څخه په رارسیدلی خبرکښې ویل شویدی چه دناوه‌کی دغلجو- کمانګری اوسیدونکی ښاغلی جهانګیر خان دمظفرخان زوی دپښتون زلمی سازمان تکړه ملګری‌دپاکستان دملیشیا، په‌ناوه‌کی ګرفتار اوبندی کړی شویدی .

دناوه‌ګی ولس په‌هغه ځای کښی دښاغلی جهانګیر خان ګرفتاری دپښتون قام په عزت اووقار دپاکستانی حکومت یوبل خرګند تیری بللی اودهغه حکومت په خلاف دانتقامی عمل کولودپاره ولسی غونډی اوجرګی روانی دی.

## دتلی ۱۹-۵٤

دباندنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مدیریت خبرراکړ چه دپاکستان دحکومت دظلم اوتیری اودهغه هیواددعسکری قواؤ دبی رحمه‌یرغلونو له امله دتلی دمیاشتی په دولسمه نیټه پنځه دیرشو نورو بلوڅو دافغانستان خاوری ته‌پناه راوړه .

دافغانی سری میاشتی ټولنی‌دپناه راوړونکو دخوراک اواستوګنی د پاره لازم ترتیبات نیولی دی .

## دتلی ۲۷-۵٤

دپښتونستان دچارسدی نه رارسیدلی خبر وایی چه دپاکستان دحکومت له خوا دملی عوامی ګوند درئیس خان عبدالولی خان په کورباندی دپولیسو پیری درول شویدی او د هغه فامیل دپاکستانی پولیسو ترسخت مراقبت اوکنترول لاندی دی .

پدغه خبرکی ویل شویدی دملی عوامی‌ګوند دښځینه ګوند رئیس دخان عبدالولی خان ماندینه میرمن نسیمه ولی دحکومتی مقاماتو په دغه مراقبت اوکنترول کښی‌شامله‌ده اوهر ځای ته چه دهغی موټرځی راځی دپولیسو د مراقبت کوونکو جیپونوپه و سیله تعقیب کیږی .

## دلړم ۱-۵٤

دپښتونستان له پیښور څخه په‌رارسیدلی خبرکی څرګنده شویده چه دپاکستان حکومت دپښتونستان دسترمشرخان عبدالغفارخان دبند موده ترڅیرومیاشتو پوری نوره هم اوږده کړی ده .

دبند هغه موده چه دپاکستان حکومت دخان عبدالغفارخان دپاره ټاکلی‌وه تیره‌شویده خوهغه حکومت سره لدی چه دخان عبدالغفار خان صحت ښه ندی دهغه دبندموده نوره هم اوږده کړیده .

دپښتونستان له نوښار څخه په رارسیدلی خبرکی ویل شویدی چه دهغه ځای دپوهنځی دمحصلینو داتحادیی په انتخاباتوکی دپښتون استودنت فدریشن نماینده انار خان داتحادیی رئیس ټاکل شویدی . پدغه انتخاباتو کی داتحادیی پوولسی داړه غړی‌دپښتون ستودنت

فدریشن له خوابریالی شویدی څه موده پخوا هم دایدوارد تنګی اوبنوپه کا لجونو کــــی دپښتنو محصلینو داتحادیی نمایندګان پــــه انتخاباتوکی بریالی شوی ؤ .

دنوښارپه پوهنځی کی دانتخاباتوله سرته رسولونه وروسته دهغه پوهنځی محصلینو په یوه لویه مظاهره کی غوښتنه وکړه چــــه دافراسیاب خټك خلاف فرضی مقدمی د ی سمدستی بیرته واخیستل شی اوددوی ته دی موقع ورکړ شی چه دمحصلینو قیادت وکړی.

دغه راز دپښتونستان نه رارسیدلی خبرونه وایی چه دپاکستان د حکومت په خــــلاف دپښتونستان په بیلوبیلو سیموکی ولســـی فعالیت دپخوا په شان جریان لری .

دبنوپه یوه خبرکی ویل شویدی چــــه دپاکستان دحکومت په ضد دوزیرستان دولس دسخت مخالفت اوملی مجاهدانو د ز یـــــات فعالیت دمخنیوی په خاطر دبنوپه ښــــار او شاوخواسیموکی‌دهغه حکومت له خوادبندیزونو دمقرراتو ۱٤٤ ماده نافذه شویده چه دهغی له مخی دغونډو اومظاهرو په شمول ټـــول ولسی فعالیتونه دحکومت مخالف‌ګڼل شویدی.

**دلړم ٤ـ٥٤**

په بنوکی دپاکستان دحکومت رسمی‌مقاماتو ویلی دی چه‌په دغه اقدام دحکومت په خلاف دخلکو دزیاتی پاریدنی او مخالفـــــت نـــه دراولاړیدونکو خطرونو د مخنیوی د پــــاره شویدی .

دپښتونستان اوپاکستان په سیمو کــــی دپاکستان حکومت دپښتنو او بلوڅو نیولوته دوام ورکوی .

دکراچی نه په یوخبرکی ویل شویدی چه‌په کراچی دپاکستان حکومت دکوهاټ او بنو د سیمی ۳۷۰ تنه پښتانه نیولی او بندیــــان کړی یی دی .

په خبرکی ویل شویدی دغو کسا نـــــو غوښتل چه دپاکستان دحکومت دمظالمـو او اقتصادی بدحال نه دځان خلاصی د پــــــاره دبلوچستان دساحل له لاری نه دمنځنی ختیځ کوم هیوادته پناه یوسی .

په خبرکی ویل شویدی ددغو کسانو په نیولوسره دبنواوکوهاټ په‌سیموکی دپاکستان دحکومت په خلاف دولس مخالفـــت لا پسی زیات شوی اوخلك دحکومت په ضد سختــو اقداماتو ته اړشوی دی .

**دلړم ٤ـ٥٤**

هغه فرعی‌انتخابات چه دحکومت له خوا د پښتونستان دخیبرپه سیمه کی اعلان شویدی دهغی سیمی مشرانو دهغه حکومت یوه بلـــه سیاسی دسیسه بللی ده .

**دلړم ٥ـ٥٤**

دپښتونستان له کوهاټ څخه په رارسیدلی خبرکی ویل شویدی چه پاکستانی مقاماتو په کوهاټ کی دامنیت ساتلوپه پلمه دبندیزونو دقانون (۱٤٤) ماده نافذه کړی اوپه هر ډول وسلې ګرځولو یی بندیزلګولی دی .

پاکستانی مقاماتو دبلوچستان په کوټه‌کی

هم دبندیزونو د ۱٤٤ مادی په نافذولو سره په وسلی گرځولو بندیز لگولی دی .

دپښتونستان له پیښور ښخه په یوخبر کی ویل شویدی چه دپاکستان پولیسو په نوښار کی ځلورتنه پښتانه مبارزین نیولی اوبندیان کړی یی دی .

دپاکستان حکومتی مقاماتو په نیول شویو کسانو دورانکاری اوشر جوړولو تور لگولی اوزیاته کړی یی ده چه دغوکسانو لاسی بمونه اووسله له ځانه سره درلوده او غوښتل یی چه دپاکستان دحکومت په خلاف عملیات سرته ورسوی .

په نوښارکی ولسی خلکو دپـــاکستان د حکومتی مقاماتو له خوا نوی گرفتاری غندلی اوزیاته کړی یی ده چه هغه حکومت دپښتنو گرفتارولو دپاره له هیڅ ډول پلموبرابرولواو دسیسو جوړولو ښخه ډډه نکوی .

**دلړم ٦ـ٥٤**

دپښتونستان له کوهاټ ښخه په رارسیدلی خبرکی ویل شویدی چه دهغه ځای په کالج کی دمحصلینو داتحادیی په انتخاباتو کــی دپښتون ستودنت فیډریشن امیدوارانوته بری وربه برخه شویدی همدارنگه دچارسدی کالج دمحصلینو داتحادیی منتخب رئیس هماعلان کړیدی چه هغه دپښتنو محصلینو په رایی بریالی شویدی اوله پیپلز گوندسره هیـــڅ ارتباط نلری

**دلړم ٧ـ٥٤**

دپښتونستان په پیښورکـــی پا کستانی پولیسو په تیرو ځلیرویشت ساعتو کـــی ددیرش تنودگرفتاری خبر ورکړی او نیــول شوی کسان یی دپاکستان دحکومت کلـــك مخالفین بللی دی .

د پښتو نستان په بیلو بیلـــو سیمـــو کی دپاکستان دحکومت له خوادسختو بندیزونو لگولو خبرونه رارسیدلی دی .

دپښتونستان دپیښور په خبر کی ویــل شویدی چه دپاکستان حکومت دپیښور دټولی سیمی په مربوطاتو کی دبندیزونو دمقرراتو د۱٤٤ مادی دنافذولوپه پلمه په هـــر ډول مظاهروغونډواوله پنځوتنونه دزیاتو کسانوپه غونډویدلو کلك بندیز لگولی دی .

همدغه شان دپښتونستان په نورو لویو او کوچنیو ښارونوکی دبندیزونو دغه ماده نافذه ده چه دهغی له مخی په ولس باندی سخـــت بندیزونه لگول شوی اودکلك اختناق ســره مخامخ دی .

پاکستانی مقاماتو دپښتونستان په‌پیښور مردان اوشاوخوا سیموکی دملی مبارزیـــنو د فعالیت دمخنیوی دپاره دبندیزونو دقانـــون یوسلوځلورځلویشتمه ماده نافذه کړی او په هرډول غونډو مظاهرو اووسلی گرزو لویی بندیزلگولی دی .

**دلړم ٨ـ٥٤**

دپښتونستان دبیلوبیلو سیمونه رارسیدلی خبرونه وایی چه‌په هغو سیمو کی په ملـــی مبارزینوباندی دپاکستان دحکومت بندیزونـــه اوانزجار دپخوابه شان دوام لری .

دبنونه په یوخبرکی ویل شویدی چــه دحکومت له خوا داینبودل شویو بند یزونو په وجه دبنواوشاوخوا سیمی یو زیات شمیر کسان نیول شوی اوبندیخانوته لیږل شویدی.

پهخبرکی ویل شویدی چه دهغو بندیزونو سره چه حکومت په بنواوشاوخوا سیمو کی لګولی اودهغوله مخی له پنځوتنونه دزیاتـو کسانو غونډیدل اووسله ګرځول منعشویدی. دسیمو خلکوبیاهم دخپلو مسالو په بــا ب غونډی کړیدی اوله دغه امله زیات شمیـر خلك نیول شویدی .

په بنوکی پاکستانی پولیسو ویلی دی . دنیول شویو کسانو کورونه هم تلاشی شوی اوپه نتیجهکی پولیسو له کورونونه یوهاندازه وسله هم ترلاسه کړی اومصادره کړی یيده.

دهغو بندیزونوپه لړکی چه دپاکستان د حکومت له خوا دپښتونستان اوپه زیاتوسیمو کی لګول شویدی دجلیم په چکوال سیمه اود پښتونستان په نورو سیموکی چه پیښورمردان هم یکی شاملی دی دغه بندیزونه سخــت شوی اودپاکستاندغواوامرونهدغاړی نهایښودو په صورتکی ګرفتاری روا نی دی

**دلړم ۱۰ـ۵٤**

په پښتونستان کی پاکستانو پولیسودولس دمبارزی دمخنیوی دپاره دیوه لوی پــلا ن دتطبیق په لړکی په اقدام لاس پوری کړی دی په پیښورکی دپولیسو قوماندانی ددغه خبردورکولو په ترځ کی ویلی دی چهپهدغه پلانکی دخلکو دکورونو تلاشی او ګرفتـاری روانه ده .

هغه اووه تنه چه وړمه ورځ په پیښور کی دکورونو دتلاشی په ترځکی دپاکستانوپولیسو له خوانیول شوی دی دپولیسو دادعا له مخی له هغو کورونو څخه وسله هم دهغوی لاس ته ورغلی ده . په خبرکی ویل شو یدی چه دغه وسله یوتوپك دوه تمانچی او ٥٤ دانی کارتوس ښودل شویدی .

په پښتونستان کی سیاسی او اجتماعـی ټولنو دپاکستانی مقاماتو ددغه اقدام دغند نی په ترځ کی ویلی دی چـــه د پښتونستان هروکړی یوتوپك یاتمانچه پخپل کورکی لری خودپاکستان حکومت پخواله دی چه د غــه وسله په مخالفه توګه استعمال شوی وی په غیرقانونی ډول مصادره کوی اووسله لرونکی بندیخانی ته لیږدوی چه په دغه وسیله هغه حکومت غواړی په ولسکی دویری اوډاراچولو له لاری خلك تهدید کړی اودخپلو حقوقو له مبارزی نهیی وګرځوی، دغوټولنو یقین څرګند کړی دی چه دپاکستان حکومت نشی کولی په دغه ډول پلمواوچالونو خپلو ناوړو هدفونو ته ورسی .

* * *

دبلوچستان له کویټی څخه په رارسیدلی خبرکی ویل شویدی چه په بلوچستان کـــی دملی عوامی ګوند مشر سناتور محمد هاشم خان غلزایی دملی عوامی ګوند ځینو مشرانو غړو اوعلاقمندانوته بلنه ورکـړ ده چــــه

دنوامبر په لومړی ورځ چه دلړم دلسمی نیټی سره برابره ده دبلوچستان دقانونی وزیراعلی ښاغلی عطاء الله خان مینګل په کور کی په یوه غونډه کی ګډون وکړی . په خبرکـــی ویل شویدی چه په دغه غونډه کـــی به په سیاسی حالاتو اودملی عوامی ګوند دراتلونکو مبارزی په باب خبری وشی .

**دلړم ۱۲ـ ۵٤**

دپښتونستان دپیښور خبردی چه په هغه ځای کی دپښتون ستودنت فیدریشن غـــړ ی جاوید رحیم په یوه ویناکی اعلان وکړ چــه دګورنمنت کالج دمحصلینو د اتحادیی پــه انتخاباتوکی حکومت مداخله کړی اود پیپلز ګوند کاندیدیی په ناجایزه توګه کامیاب کړیدی نوځکه محصلینو دغه انتخاب نشی منلی .

هغه اخطار وکړ چه که چیری ددغه واقعی په هکله دمحصلینو دقناعت دپاره بیاسمدستی انتخابات ونه شول نوپښتانه محصلین به په عمومی مظاهرولاس پوری کړی

**دلړم ۱۳ـ ۵٤**

دجمعیت العلمای پاکستان ګوند رئیـــس مولانا شاه احمد نورانی ورځپاڼه لیکونکو ته په خپله ویناکی وویل پـــه پښتو نستان بلوچستان کی اوس ولس پوره بیدار شویدی اودپاکستان حکومت نشی کولی چه د ولس حقوق غصب کړی .

مولانا زیاته کړه زمونږ ولس په اسلا م کلك ایمان اوعقیده لری اوپوهیږی چه په هغه دین کی دهیچا دحقوقو دغصبولو اجازه نشته نوځکه به زمونږ ولس دخپلو حقوقو دپـاره دحکومت په خلاف مبارزه وکړی او پدغـــه لاره کی به دهیڅ ډول قربانی ورکولو نه ډډه ونه کړی

* * *

دتحریك استقلال ګوند مشر اصغر خـان دپښتونستان په پیښورکی وویل دپښتونستان ولس باید دپاکستان دحکومت په ټولو هغو دسیسو خبروی چه حکومت یی دولس دتباهی اوبربادی دپاره جوړوی .

هغه وویل مونږ وینوچه پښتانه او بلوڅ دپاکستان له حکومت نه دخپل حق دغوښتنی دپاره پوزته شویدی او عقیده لروچه هغـــه حکومت ددی ولس په وړاندی سر ټیټولوتـه مجبور شی اصغرخان زیاته کړه دولس دمتحدی مبارزی په مقابل کی حکومت نشی کولی چـه دهغه دحقوقو غصبولو ته زیات دوام ورکړی دتحریك استقلال ګوند مشر وویل پښتا نه اوبلوڅ خپل بشری حقوق غواړی خودپاکستان حکومت هغه دتجزیه طلبی په نوم بندیانو ی اوهم یی تر سختو شکنجو لاندی نیولی دی خوولس چه دخپل حق دپاره په مبارزه لاس پوری کړ حکومت باید پوه شی چـه ولس بریالی کیږی اوحکومت دماتی سره مخامخ کوی .

**دلړم ١٤ـ٥٤**

دپاکستان دحکومت په خلا ف په ټـــول بلوچستان کې دملي مبارزينو فعاليت سخت شويدی . په وروستي خبرکې ويل شويدي چه په پښين کې پښتنوملي مبارزينو دپاکستاني حکومت په خلاف په يولړ اقداماتو لاس پورې کړی اوهغه حکومت په پښين کې دبنديزونو دقانون ١٤٤ ماده نافذه کړيده .

خبروايي ددغې مادی په اثر په هـر ډول غونډو مظاهرو اووسلې کرځولو بنديزونـــه اګيدلې دي .

**دلړم ١٥ـ٥٤**

دپښتونستان پخو انی وزيـــــر ا علـــی دجمعيت العلمای اسلام کـــــوند رئيس اود پاکستان په مرکزی اسامبله کې دحکومت د مخالفو ګوندونو مشر ښاغلي مولانا مفتي‌محمود دپاکستان په‌ګوجرانواله‌کی يوی لويی ولسی غونډی ته پخپله ويناکې وويل دپاکستان د مرکزی اسامبلی سره‌دحکومت دمخالفوګوندونو دمقاطعی دختمولو مقصددانه دی چه ګوياهغوی دپاکستان له حکومت نه دخپل ولس دحقوقو دمطالبو اومبارزونه لاس اخيستی دی .

دمخالفو ګوندونو مشر وويل: دپښتونستان ولس دپاکستان له حکومت نه دخپلو حقوقو ترلاسه کولودپاره په‌اسامبله اوله اسامبلی‌نه دباندی په دواړو حالونو کی داحتجاجونو او کلکی مجاهدی په لاره روان دی اوپه دغـــه لړکی ورسره مخالف ګوندونه ملګری دی .

ښاغلي مولانا مفتي محمـــود د پـاکستان دحکومت په خلاف په بلوچستان کی دپښتنو اوبلوڅو ملی مبارزی ته داشاری په ترڅ کی وويل په هغه سيمه‌کی دحکومت په خـــلاف دخپلو حقوقو دغوښتنی دپاره دپښتنو اوبلوڅو ملی مبارزی دوام لری اوپه بلوچستان کی‌يی دپاکستان دحکومت له خوا دهغه ولس پـــه خلاف داقداماتو په باب خپله ژوره انديښنه څرګنده کړه .

دپښتونستان پخوانی وزيراعلی په‌پښتونستان کی دملی عوامی اوجمعيت العلمای اســـلام ګوندونو دملی حکومت ديادونی په ترڅ کی وويل هغه وخت چه په پښتونستان کی دخلکو حکومت اوملی وه هيڅوك نه ګرفتار يدل خو اوس چه دملی عوامی ګوند او جمعيت العلماء دګوندونو ملی حکومت نشته نو دپـــاکستان دمرکزراولپنډی مرکـــزی محبس تـــه ليـــږدول محبس، تهديد اوجبرله لاری په خلکو باندی حکومت کول غواړی .

**دلړم ١٨ـ٥٤**

دملي عوامي ګوند رئيس خان عبدالوليخان چه له‌څه مودی راهيسی دپاکستان په‌بيلوبيلو بنديخانوکی دبندژوند تيروی اوس دپاکستان دمرکزراولپندی مرکزی محبس ته لـــيږدو ل شويدی .

په خبرکی ويل شويدی خان عبدالوليخان چه تراوسه يی دبندموده نده معلومه شوی په بی سرنوشته توګه دپاکستان دحکومت له‌خوا بندی دی اواوس‌دسکرله‌بنديخانی نه‌دپاکستان مرکزی بنديخانی ته وليږدول شو

په خبرکی داهم ويل شوی دی چه پـــه

پښتونستان بلوچستان او پاکستان کـــی سیاسی اواجتماعی ټولنی دپاکستان دحکومت له خوا دخان عبدالولیخان دبندی کولو په‌لړ کی له هغه حکومت نه خپله زیاته خواشینی اوکرکه څرگندوی اودغه عمل دپښتونستان او بلوچستان دولس په خلاف دپاکستان دحکومت یوبل استبدادی تیری اوظلم گڼی .

## دلړم ۲۵ــ۵٤

دپښتونستان په پېښور کی دهغومحصلینو په منځ کی سخت مخالفت پیداشویدی چــه دپاکستان پیپلز گوندپوری مربوط دی .

خبروایی چه داختلاف په نتیجه کی زیات شمیر محصلینو له پیپلز گوند سره پریکړه اعلان کړی اویوشمیر نورچه ښاغلو عمر عباس اومشتاق احمد بنگښ هم پکی شامل دی له پیپلز گوند څخه ایستل شویدی .

په‌خبرکی ویل شویدی چه په پښتونستان کی پښتانه محصلین په چاروکی دهغه گوند دبی ځایه مداخلی سخته غندنه کوی اوورځ په ورځ په پښتون ستودنت فیدریشن باندی چه دهغوی خپل‌نماینده سازمان دی راټولیږی.

دپښتونستان له مانسیری څخه په یوخبر کی ویل شویدی چه په هغه ځای کی دپیپلز گوند ځینو غړودهغه گوند قیادت غندلی دی اوغوښتنه یی کړیده چه‌په گــــوندکـــی دی سمدستی نوی انتخابات وشی .

دپیپلزگوند غړوویلی دی چه دپیپلزگوند دمنشور له مخی باید دگوند او حکومت چوکی جلاوی خوله بده مرغه دگوند اوحکومت پــــه چوکیو یوټولی قبضه کړیده او پدی توگه په گوند اوحکومت‌کی آمریت قایم دی .

په مانسیری کی دپیپلز گوند غړو اخطار ورکړیدی چه‌که اوسنی حالت بدل نشی‌هغوی به‌له پیپلز گوند سره پریکړه وکړی .

## دلړم ۲۷ــ۵٤

دپاکستان دتحریك استقلال گوند مارشال اصغرخان په لاهورکی دخپل گوند کا لنـــی کنفرانس ته په یوه ویناکی ویلی دی چـــه دپاکستان په تیریوکال کی دافغانستان سره دخپلو روابطو خړپړ تیا نوره هم زیاته کړیده اودپاکستان خارجی سیاست له ناکامی سره مخامخ دی .

* * *

د پاکستان له کراچی څخه په یوخبر کی ویل شویدی چه په هغه ځای‌کی دډیموکراتیك کنفرانس په نامه یوکنفرانس جوړیږی چه په هغه‌کی دپنجاب اوسندپه دیموکراتیکو قوتونو سربیره دپښتونستان او بـــلو چســـــتان دډیموکراتیکو قوتونو نماینده گان هم گډون کوی .

کنفرانس چه دمزدور، طلبا، کیسان دعوامی رابطی کمیټی له خوایی بلنه شویده، داساسی حقوقو دتامین دمدنی ازادیو او داجتماعـــی اقتصادی عدالت دمینځ ته راوړلو دپاره دیو پروگرام جوړولوهدف لری په کنفرانس کــی یوازی دپنجاب دایالت ۱۵۰تنه‌نمایندگان‌گډون کوی او له پښتونستان څخه‌دپښتون‌ستودنت فدریشن په دریو نمایندگانو سربیره سل ته نور نمایندگان‌هم‌کنفرانس ته وربلل‌شویدی

خبروایی چه د کنفرانس دا فتتاحیه‌غونډی

ریاست به میرمن نسیم و لی‌په غاړه لری د مز دور، طلبا کیسا ن دعوا می رابطـــی کمیټی رئیس ډاکتر ا عزاز نظیرپه یوه‌وینا کی هیله څرگنده کړیده چه دیموکـراتیـك قوتونه به دکنفرانس د هدفونو په پوره کولو کی همکاری وکړی او له ولس څخه یـــی غوښتی دی چه ددیمو کرا تیکو قو تونـــود مبارزی کلك ملاتړ وکړی .

ډاکتر ا عزاز نظرویلی دی‌دیمو کراتیکـو قوتونو کنفرانس ددی دپاره را بلل‌شویدی چه اوسنیو بدو حالاتو ته تغیر ورکړ واعزاز نظیرپه اقتصادی خرابو حالاتو باندی‌دتبصری په‌ترڅ کی په مطبوعاتو باندی دبندیزو نـــو د۱٤٤ ما دی او د پاکستان د سا تنی‌دقانون په پلمو بندیزونه لگو ل اوهم په صنفی‌اتحاد یو، کارگرانواوبزگرانو باندی دفشارغندنه‌کړی، اوویلی یی دی اقتصادی عدالـــت تر هغـــه وخته‌پوری منځ ته نشی را تللی تر څـــو ددغو بلاگانو ا صلی عوا مل‌محونکړی شی.

**دلیندۍ ۱ـ٥٤**

دپاکستان صدراعظم ذوالفقار علی بوتـــو اعلام وکړ هغه مخالف غړی په چه په ملی عوامی گوند پوری‌مربوط دی ډیر ژر دپاکستان په ملی اسامبله کی خپلی څوکۍ دلاســـه ورکړی او هغوی ته به ددی اجازه ورنه‌کړی شی‌چه‌وروسته لدی دمرکزی پارلمان اوایالتی اسامبلو په‌څوکیوکینی .

دبی‌بی‌سی نماینده څرگنده کړیده چـــه دپاکستان دمشرانو په جرگه‌کی ددغو بدلونو دتصویب په صورت کی مدنی آزادی به له‌پخوا زیاته محدود شی او په دغه هیواد کښی‌دعالی محکمو قدرت زیات کمیږی .

دغه راز ددغو بدلونونو دیوه له مخـــی قادیانی ډلی ته حق ورکول کیږی په‌فدرالی اسامبله اوایالتی اسامبلو کی به یوټاکلی شمیر څوکۍ ولری .

تیر کال دسختو اوپرله پسی مظاهرو له امله چه‌په ټول پاکستان کی وشوی دهغه هیواد حکومت مجبورشوقادیانی او غیرمسلمان اقلیت اعلام کړی خوڅرنگه چه ددغی ډلـــی ملاتړ دپیپلز پارټۍ دپاره زیات اهمیت لری کتوونکی وایی دپاکستان حکومت پدی‌وسیله غواړی دغه ډله یوځل بیادپاکستان په سیاسی ژوندکی شامله کړی .

دفرانس پرس نماینده رپوټ ورکړیـد ی چه دهغو نورو بدلونونو له مخی چه تصویب شوی دهغو کسانو خوشی کول سخت شوی چه دوقایوی حبس دقانون له مخی نیـــو ل شویدی اودغه راز دقانون جوړونکو غونډو د غړیو دمصئونیت دسلب دپاره لاره اواریږی.

دفرانس پرس نماینده وایی یوله هغـــو اشخاصو څخه چه له تالار څخه دوتلو دپاره‌یی دغونډی درئیس حکم ونه منله د پـــاکستان دقانون پخوانی‌وزیرمیان محمودعلی قصوری ؤ چه پولیسوپه زورله غونډی وویسته .

ویل‌کیږی په هغو نښتوکښی چی په‌غونډه کی‌وشوی مولانامفتی محمودداودمخالفو گوندونو دری تنه غړی لږڅه ژوبل شویدی .

دفرانسپرس دنماینده له خولی دمخالف گوند یوه غړی ددغو پیښو وروسته په یوه مطبوعاتی مرکه‌کی په حکومت تورولگاوه چه مخالفین خپه‌کوی اوداساسی قانون داړولـو له لیاری مدنی خپلواکی په خطرکی اچوی .

ده وویل هغه مخالفین بهچه په تیرونهـو میاشتوکښی یی دمجلس دغونډوسره پریکړه کړی وه یوکنفرانس‌جوړکړی اوخپله راتلونکی تگ لاره به وټاکی .

**دلیندی ۳ـ۵٤**

درویتر نماینده داسلام آبادنه خبرزاکړی ی دی چه‌په پښتونستان کښی دحکومت دغړیتوب نه دپخوانی صدراعظم عنایت الله گنداپور په ناڅاپی برطرف کولوسره دغه حکومت سخت لړزیدلی دی

درویتر نماینده په ډاگه کړیده گنداپورچه دسیمی په اوسنی کابینه‌کی دکار قائـو ن اودپارلمانی چارودوزیرپه توگه و ظیفه اجـرا کوله دهغی سیمی اوسنی صدراعظم نصرالله خټك برطرف کړی اودبرطرفی دپاره یی په رسمی ډول کوم علت نه دی ښودل شوی .

سیاسی‌کتوونکی عقیده څرگندوی چه‌گنداپور دهغو اختلافونو له امله برطرف شویدی چـه دپیپلز پارټی دغړیو ترمنځه پیدا شویدی .

**دلیندی ۳ـ۵٤**

دپښتونستان دمردان نه په یوخبر کی ویل شویدی چه دتمباکو دفابریکی کارگرانو دخپلو غوښتنوپه لړکی تیره اونی په اعتصاب لاس پوری کړ .

خبروایی چه دکارگرانو دمردان دبـوری دکارخانی دکارگرو، مطالبو هم پوره ملاتـړ اعلان کړ .

دتوربیلی دکارگرواتحادیی هم د مـردان دکارگرانو دملاتړ اعلان کړیدی اوهغوی ویلی دی‌که چیری دمردان دکار گرانو غو ښتنـی سمدستی ونه منل شی نودهغی خاوری ټول کارگران به په عمومی اعتصاب لاس پـوری کړی .

همدغه شان دتوربیلی دکارگرانو اتحادیی پدی خبره هم خواشینی څرگنده کړه چـه دتوربیلی یوه کارخانه سندته لیږدول شویده.

بل خبروایی چه دپښتونستان اوبلوچستان کارگرانو او خلکو پد ی خبره خوا شینـی څرگنده کړیده چه دپاکستان حکـــو مت دبلوچستان دسایکلونو کارخانه کراچی تـه لیږدولی ده .

ددغو سیمو دکارگرواتحادیو په خپلووینا وکی ویلی‌دی چه دپاکستان حکومت داقتصادی بی عدالتی په ذریعه غواړی دبیلوبیلو سیمو خلکو ترمینځه اختلاف پیداکړی اوپه‌دغه توگه حکومت کولوته دوام ورکړی .

* * *

دپښتونستان له پیښور ښخه په‌یو خبرکی ویـــل شـوی د ی چـــه د پاکســـتان حکومتی مقاماتو په هغـــه ځـــای کښـی دپاکستان دساتنی دقانون لاندی‌دفرنتیرگاردین نومی داخبار دمدیر ښاغلی یوسف لودی دبندی کولو امرکړیدی دښاغلی یوسف لودی اخبار پخوابندشوی وواوپه خپله یوسف‌لودی هم دناروغتیاپه وجه څه موده پخواله بنـــد

څخه خوشي شوی وو .

**دلیندۍ ٤ـ٥٤**

دپاکستان له کراچۍ څخه په یوخبر کې ویل شویدی چه میرمن نسیم ولی دکراچۍ په پوهنتون کی دپښتون ستودنت فیدریشن یوکنفرانس ته په ویناکی ویلی دی چه دپښتنی ددودونوله مخی ښځی باید یوازی دکور دننه چاری سرته ورسوی مګرکله چه حالات دوزخ شی اوسړی په بندیخانو کی واچول شی پښتنی ښځی بېرته راوزی اودخپلو وروڼو سره اوږه په اوږه دخپلو حقوقو دپاره مبارزه کوی .

میرمن نسیم ولی له محصلینو څخه غوښتنی دی چه‌په سیاسی ډګرکی سمه لار غوره کړی اودولسی ګټودپاره مبارزه وکړی .

میرمن نسیم ولی ویلی دی چه دمبارز ی هدف باید دهغو موسسو آزادی وی چه‌دټولنی تعمیر پری بناشویدی

میرمن نسیم ولی دملی دیموکراتیك ګوند جوړولو په باب ویلی دی چه شیرباز خا ن مزاری په خپل دغه اقدام سره ولس ته ډیر خدمت کړیدی اوپه مبارزه کـــی یی دهغــه دبریالیتوب هیله ښکاره کړیده .

دپاکستان په حکومت باندی دانتقاد کولو په ترځ کی میرمن نسیم ولی ویلی دی داډیره بدمرغی ده چه هرڅوك په پاکستان کی قدرت ته ورسیږی هغه فکر کوی چه پاکستان‌هماغه په خپله دی .

میرمن نسیم ولی زیاته کړیده چه دحکومت له خوا دسنااواسامبلو څخه دولس دمنتخبو نمایندګانو دلیری کولو تهدید ډیره داهمیت وړخبره نده ځکه‌چه دولس نمایندګان‌نه حریص دی اونه دقدرت اوږی .

مرمن نسیم ولی خواشینی ښکاره کړیده چه په پاکستان کی دښځو دبین المللی کال نمانځنه په ډیره ګرمی اونمایشی توګه روانه ده خوپه تیر لنیږوخت‌کی په لاهورکی ددوی دخویندو دسپکاوی په باب هیڅ آوازنه پورته کیږی .

**دلیندۍ ٦ـ٥٤**

درویتر آژانس خبر ورکړیدی چه پـــه بلوچستان کی دپاکستان دحکومت په خلاف مبارزه په منظم ډول روانه ده اودملی مبارزینو فعالیت مخ په زیاتیدو دی .

رویتر خبر ورکړی دی چه په تیره اونۍ کی له‌کوټی څخه ١١٠ کیلو متره لیـــــر ی دبلوچستان په جنوبی برخه کی ملی مبارزینو دپاکستان په‌یوه پوځی لارۍ وسله‌وال یرغل کړی اودپاکستانی حکومت ١٨ تنه عسکر یی وژلی دی .

رویتر زیاته کړی ده چه په تیروخلورو میاشتوکی په بلوچستان کی ملی مبارزینولږ ترلږه ٨٠ تنه پاکستانی عسکر وژلی دی .

**دلیندۍ ٥ـ٥٤**

دملی عوامی ګوند دښځینه څانګی مشـــر میرمن نسیم ولی دپښتونستان بلوچستان او پاکستان دکارګرو، بزګرو، محصلینو سیاسی

کارکوونکو اوپوهانوپه نوم به یوه پیغام کی ویلی دی دخپل ولس دحقوقو دترلاسه کولو دپاره دحکومت په خلاف زیات متحدشی اوډله ایزه مبارزه پیل کړی . هغی وویل دپاکستان حکومت چی دولس کوم حقوق غصب کړی او تر پښولاندی کړی یایی لاندی کوی نه‌یوازی داچه دپښتنو اوبلوخو سره دغه سلوك روان دی بلکه دپنجابیانو اوسندیانو حقوق هم‌پکی شامل دی نودغه ټول مظلوم خلك بایدظالم حکومت په مقابل کی په یوه ډله ایزه کلکه مجاهده لاس پوری کړی اوخپل حقه حقوق ترلاسه کړی .

میرمن نسیم ولی اعلان وکړ په پاکستان کی داوسیدونکو ټولو مظلومو ملیتونو دحقوقو دپاره‌دحکومت په‌خلاف زمونږمبارزه‌جریان‌لری.

همدغه شان دملی دیموکراتیك گوند مشر ښاغلی شیربازمزاری دولس په نوم په یوه پیغام‌کی دپښتنو بلوخو اوپه پاکستان کی داوسیدونکو ملیتونو دحقوقو دمبارزی دیادونی په‌لړکی دملی عوامی گوند رئیس خان عبدالی خان دجمهوریت علمبردار اولوی مشر بللی اوویلی یی دی چی خان عبدالولی خان دخپل ولس دحقوقو دترلاسه کولونه علاوه دسنداود پنجاب دولسونو دحقوقو دپاره هم قربانی ورکړی اوددغو قربانیو او مبارزی سلسله اوس هم جریان لری

پدغه غونډه‌کی چی په‌کراچی‌کی جوړه شوی وه ښاغلو سناتور غلام محمد بلور، سرفراز خان، نوازبت. اوراومهرهم دولس دحقوقـــو دترلاسه کولودپاره دپاکستان د حکومت پـــه خلاف په‌ډله ایزه ستره مبارزه زوراچولی اود یوی نه ستړی کیدونکی مجاهدی غوښتنه یی کړیده .

**دلیندۍ ۱۰ــ٥٤**

دپښتونستان له پیښور څخه په یوخبرکی ویل شویدی چی په‌هغه ځای‌کی یوسیاسی مشراومبارز ښاغلی مهدی شاه مهدی په ملی دیموکراتیك گوندکی دشاملیدو اعلان‌کړ یدی.

خبروایی چه په ملی دیموکراتیك گوندکی دمیرمهدی شاه له شاملیدونه وروسته یوتن بل سیاسی مشر ارباب عبدالغفورخان هـــم په ملی دیموکراتیك گوندکی دشمول اعـــلان کړیدی خبروایی چه په پښتونستان کی په ملی دیموکراتیك گوندکی دولسی خلکوسیاسی مشرانو اومحصلینو دشاملیدوپه لړکی دمردان دشیرگرد پښتنو محصلینو داتحادیی رئیس حیدرعلی اوسکرتر جنرال نثار ختړك هم له هغه گوند سره وفاداری اعلان کړیده .

خبرزیاتوی چی ظاهرشاه مومند هم لـــه خپلو گیوملگرو سره په ملی دیموکراتیـــك گوندکی ورشامل شویدی .

دپاکستان له‌کراچی‌څخه یوخبروایی چه‌دملی دیموکراتیك گوند موسس شیرباز خان‌مزاری وړمه ورځ په یوه مطبوعاتی ویناکی د۱٤٤ مادی څخه دمخالفت په پلمه پـه سناکی د مخالف گوند دمشر ښاغلی محمد خاشم‌غلجی دگرفتاری په وجه دپاکستان دحکومت غندنه کړیده .

**دلیندی ۱۱ـ۵٤**

دپښتونستان له مردان څخه په یوخبرکی ویل شویدی چه‌په هغه ځای کی مدافع وکیلانو په یوه غونډه کی دپیپلزګوند له خوا په اساسی قانون کی دیواړ خیزترمیم غندنه کړیده .

مدافع وکیلانو په یوه پریکړه کی څرګنده کړیده چه واکمن ګوند دمحکمو داختیاراتو کمولو په ذریعه غواړی یوګوندیز حکومت منځ ته راوړی اودمدافع وکیلانو اتحادیه دغه عمل په‌کلکه غندی .

په غونډه کی په مرکزی اسامبله کی د مخالف ګوند دغړو دسپکاوی اوهم په‌کراچۍ کی دقانون پوهانو په مظاهره باندی دپولیسو دحملی غندنه وشوه .

* * *

دپښتونستان له بنوڅخه په یوخبرکی ویل شویدی چه دپاکستان پولیسوپه بنوکی ځینی کلی په بیلوبیلو پلمولټولی اوولسی خلک یی زورولی دی .

په خبرکی ویل شویدی چه پولیسودپښتنو له‌کورونو څخه ټوپکی، کارتوس او لرونه دلایسنس دنه لرلوپه پلمه ضبط کړیدی اوهم یی دوه تنه دپاکستان له حکومت سره دمخالفت په پلمه ګرفتار کړیدی .

**دلیندی ۱۲ـ۵٤**

دپښتونستان له مینګوری نه په یوخبرکی ویل شویدی چه په‌هغه ځای‌کی نباغلی شمس بونیری له محصلینو څخه غوښتی دی چه دیموکراسی دمینځ ته راوړلو دپاره د حکومت په‌خلاف په‌روانه مبارزه کی فعاله برخه‌واخلی.

شمس بونیری په خاص ډول له پښتنو محصلینو څخه غوښتی چه دپښتون په کور روان یرغل ته پاملرنه وکړی او دخپلوحقوقو دلاس ته راوړلو دپاره سره متحد شی .

**دلیندی ۱۵ـ۵٤**

دپښتونستان له خیبرونه په یوخبرکی ویل شویدی چه‌په هغه ځای کی یوتن مشرنباغلی مفتی‌ګل اسلام په خیبرکی له ولس سره د پاکستان دپولیسو ناوړه رویه غندلی او غوښتنه یی کړیده ده هغه پاکستانی پولیس چه په بیلوبیلو پلمویی دخیبر دسیمی ځینی کلی لټولی دی سمدستی ولس ته وروسپارل شی چه دسیمی دولسی دود سره سمه جزا ورکړله شی .

په خبرکی ویل شویدی چه په خیبر کی دپاکستان دپولیسو په ناوړه رویه دهغه ځای ولس سخت پاریدلی دی .

دپښتونستان له دیره اسمعیل خان نه په یوخبرکی ویل شویدی چه‌په هغه ځای کی تیره ورځ دپاکستان دحکومت په خلاف یوه لویه مظاهره شویده چه‌په هغی کی په زرونوخلکو ګډون کړی وو مظاهره کوونکو داسی لوحی‌پورته‌کړی وی چه د حکومت خلاف شعارونه پری لیکل شوی وو .

دپاکستان له کراچۍ نه‌په یوخبرکی ویل شویدی چه په هغه ځای‌کی پولیسودبلوچستان داسی لوحی پورته کړی وی چه دحکومت

ښاغلی عبدالمجید نیولی اوبندی‌یی کړی دی .

**دلیندی ۱۶-۵۴**

دپښتونستان له پیښور ځخه په یو خبرکی ویل شویدی چه دایالتی اسامبلی شپږ تنه غړی ښاغلو امیرزاده خان، حاجی تاج محمدخان بابومحمداکرم ارباب، سیف الرحمن، شیردل خان اومیرمن محموده سلیم په ملی‌دیموکراتیك گوندکی شامل شویدی .

خبروایی په پیښور کی دمرکزی اسامبلی پخوانی غړی ممتاز صفدرهم په‌ملی‌دیموکراتیك گوندکی دځپل گډون اعلان کړیدی .

دپاکستان دحکومت دمخالفو گـوندونو د پارلمانی ددلی کانوانسیون دپاکستان دحکومت دغه اقدام غندلی دی چه‌په پښتونستان کی‌یی دملی عوامی اودجمعیت العلمای اسلام گـډ حکومت استعفاته اړکړیدی .

کنوانسیون دمخالفو گوندونو له مشرانوسره له پخوانیو شویو موافقونه دپاکستان دحکومت په سرغړونو خواشینی ځرگنده کړیده په تیره بیادمری له موافقو اودفبروری شپاړسمی نیټی له موافقونه دحکومت پیروی نه کول په خاص ډول غندلی دی .

کنوانسیون په اساسی قانون کی دپاکستان دحکومت ټول یواړخیز بدلو نونه غندلی اوزیاته کړی یی ده چه دغه ترمیمات دټولو اصولو اواساسی قانون داساساتو دبدلون دپاره دیوی توطئی مقدمه ده .

کنوانسیون ویلی دی چه دشیرپاو خواشینی کوونکی قتل په سنا اوفدرالی اسامبله کـی دمخالف گوند دمشرانو دبند دپاره دحکومت له خوادیوی ناوړه وسیلی په توگه شویدی.

کنوانسیون دهغو کسانو په مقابل کـــی دپیپلزپارټی دارگان په غـــچ اخستوونکـــو اقداماتو باندی اعتراض کړیدی چه‌حق وایی .

کنوانسیون دپنجاب په ایالتی حکومت کی پرله‌پسی اوښتنی غندلی اوویلی‌یی‌دی چه‌دغه عمل دیوی خواپه هیوادکی دثبات د گډوډۍ سبب شوی اودبلی خوایی دپنجاب داسامبلی غړی دځپلو مشرانو دانتخاب دحق نه‌بی‌برخی کړیدی اوپه دی ډول دپاکستان د اساســـی قانون دفدرالی روحیی دفسخ کیدو سبــــب شویدی .

کنوانسیون ویلی دی چه داسامبلی دهغو غړیو سره ظالمانه چلند کیږی چه دپیپلـــز پارټی ځخه یی استعفا کړیده اونه یواځـی داچه دهغوی شتمنی ضبط کیږی بلکه پخپله دوی دپولیسو له‌خوا غـولول کیږی او ورك کیږی لکه چه ده هغو پخوانیو دووزیرانو په باره‌کی تراوسه کوم خبرلاس ته‌نه دی راغلی چه پولیسو بیولی دی .

کنوانسیون ددغی ځرگندونی په ترځ کی چه په‌اسامبله‌کی دمخالفو گوندونو غوښتنواو نظریوته دخبرووخت نه ورکول کیږی هغـــه سخت اعمال غندلی اوبدورته ویل شوی چه دننه په پارلمان کی دمخالفو درندو غړیوسره کیږی اوویلی یی دی چه دا سی پیښـــــی دپارلمان په تاریخ کی ساری نلری .

دکنوانسیون په پریکړه کی ځرگنده شوی

ده چه دپاکستان دساتنی د دیموکراسی دټینګولو دخلکو داساسی حقوقونه ددفاع دپاره په پارلمان کی دمخالفو ګوندونو غړی هرډول قربانی ته تیاردی اوکه دمخالفو ګوندونو مشران لارښوونکی پریکړه وکړی ټول تیاردی چه داسامبلو دغړیتوب څخه استعفا وکړی او دسیاسی ګوندونو اوخلکو سره اوږه په اوږه د خپل سری اوتباهی نه دپاکستان دژغورلودپاره قانونی اقدامونه اوکوښښونه‌و کړی .

دنوای وقت ورځپاڼی په یوه بل خبرکی ویلی دی چه‌دپاکستان دجمعیت العلماء رئیس ښاغلی شاه فریدالحق اودسند په اسامبله‌کی ددغه ګوند مشرانوپه یوه مطبوعاتی مرکه‌کی وویل : چه‌په پارلمان کی ددغه جمعیت مربوط ټولوغړیوپه لیکلی توګه خپلی استعفا وی ده ته وړاندی کړیدی چه دمخالفوګوندونو دمصوبه لایحی له مخی کله‌چه لازمه وبلل شی‌دمربوطو اسامبلو رئیسانو ته وړاندی شی .

ده وویل: بایددحکومت دغیرقانونی اقداماتو په مقابل‌کی اغیزمن احتجاج وشی .

ده وویل : دیوه لومړنی اقدام په حیث په ټولو سترو ښارونوکی دپارلمانی مشرانوپه لارښوونه ددریو پورتنیولیکو په خیر مظاهری کیږی اووروسته ستره مظاهره کیږی چه دهغو لارښوونه به‌په خپله دمخالفو ګوندونومشران په غاړه واخلی .

ښاغلی شاه فریدالحق وویل : دخلکوذعامه افکارو دراویښیدوله امله به حکومت مجبورشی چه عادلانه اوبی طرفه انتخابات وکړی او باید خلك دغه مقصد ته دررسیدودپاره دهیڅ ډول قانونی زیار اومجاهدی څخه لاس وانخلی .

**دلیندی ۱۸ـ۵٤**

دپاکستان له اسلام آباد څخه په یوخبرکی ویل شویدی چی دهغه هیو اد په مرکزی اسامبله کی داخله وزیر اعتراف کړیدی چی په مرکزی امنیتی قواؤکی دبلوچستان اوسند دزلمیانو په شاملولو ندی بریالی شوی .

داخله وزیرویلی دی چی دپاکستان حکومت په مرکزی امنیتی قواؤکی دسندی او بلوڅی زلمیانو دشاملولو ډیر کوښښ کړی‌دی.

داخله وزیر داسامبلی دغړی احمد رضا قصوری دیوی پوښتنی په ځواب کی په امنیتی قواؤکی دسندی اوبلوڅی زلمیانو دنه شمول وجه هغه جذبات ښودلی دی چی هغوی یی دامنیتی قواؤ په خلاف لری . دپاکستان دمرکزی اسامبلی په غونډه‌کی مکی معظمی ته دپښتونستان دیوستر دینی عالم ښاغلی مولانا یوسف بنوری په ورتګ دبندیزلګولو په باب هم پوښتنه شویده خوداخله وزیر دغی پوښتنی ته له‌ځواب ور کولو څخه ډډه کړیده .

**دلیندی ۲٤ـ۵٤**

دپښتونستان دوزیرستان نه رارسیدلی خبروایی چه دوزیرستان په ټوله سیمه کی دملی مبارزینو له خوادپاکستان دحکومت په خلاف عمومی قیام روان دی اوټولو اولسی خلکو دهغه حکومت دټول زورپه مقابل کی مقابلی ته خپل چمتووالی نورهم ټینګ‌کړیدی.

په خبرکی ویل شویدی چه د پاکستان حکومت دوزیرستان دملی مبارزینو په خلاف

دمقابلې دپاره دوانه مرکز اودنیلایې سپین‌کښ گردایې اومرتضاتانې ته اوهمدغه شان دگوملې سیموته دپنځوزروتنونه زیات عسکر ددرندې وسلې سره ورلیږلې دی .

دپاکستان حکومت دوزیرواحمد زیوولس ته التیماتوم ورکړی دی چه ټولې هغه سیمې خوشې کړی چه دوی پکې دپاکستانې پوځ سره دمقابلې دپاره سنگرونه نیولې دی .

خبرزیاتوی چه دوزیروملې مبارزینو دهغه حکومت التیماتوم ته اهمیت ندی ورکړی اود پخواپه شان خپل کلك مقاومت او مبارزې ته ددوام په خاطرپه خپلوسنگرونوکې ناست دی .

بل خبروایې چه‌دوانه اوروحانې شخصیتونو خپل ولس ته فتوی ورکړی ده چه دزورگیر حکومت په مقابل کې ددوی جگــړه جهاد، مرگ یې شهادت اوژوندیې دمجاهدۍ ګرځې نودوی باید په خپله خاوره باندې فداکاری ته زیات چمتوودریږی .

**دلیندۍ ۲۴ــ۵٤**

دپښتونستان له‌مردان ښخه‌په‌رارسیدلی خبر کې ویل شویدی چه‌په هغه خای‌کې دکالــج دمحصلینو په اتحادیه‌کې پښتنو محصلینوهغه کسان غندلې دی چه دپاکستان دحکومت په اشاره دمحصلینو ترمنځ دنفاق پیدا کولــو کوښښ کوی .

خبروایې داتحادیې په یوه غونــډه کــې محصلینودپیپلزگوندله څوتنوهمکارانو ښخه په کلکه غوښتنې دی چه په تعلیمې چارو کـــې دپیپلز گوند دناوړو مداخلې له ملاتړ ښخــه لاس واخلې .

خبروایې دپیپلز گوند همکارانو دپښتنــو محصلینو سپار ښتنه ردکړه اودمحصلینو پــه خلاف و گواښیدل چه‌وروسته دیوی ښنتې‌په نتیجه کې دپیپلز گوندطرفدار ان‌سخت‌ووهل شـــول.

خبر زیاتوی چه دنښتې په وخت کې د پاکستان پولیسو هم دپیپلز گوند دطرفدارانو مرسته کړیده په‌خبر کې ویل شویدی چــه دمردان ولسې مشرانو اودکالج په چارو کې دحکومت ناوړه مداخله غندلې ده .

دپښتونستان له پیښور ښخه په یو خبرکې و یــل شویدی چــه پــه ا یا لتې اسا مبلــه کې دقیوم لیك اوپیپلز گوند دغړو تر منــځ تاوتریخوالې پیداشویدی خبروایې‌تاوتریخوالې دپاکستان دداخله وزیر قیوم دهغې و ینا‌په نتیجه کې پیدا شوید ی چه‌په‌تخت بایې‌کی‌یې کړی وه .

داخله وزیر په‌خپله ویناکې دپیپلز گوند په ځینو ایالتې وزیر انو دبدیانتې تورونه لگولې وو.

خبرزیاتوی چه‌په ایالتې اسامبله کـــې دپوهنې دایالتې وزیر سکندر زمان او دپیپلز گوند دغړی عبدالصمد خبری ډیــری سختې شوی وی او نژدې وو چه په یوبل وارو نه وکـــړ ی .

په‌خبر کې ویل‌شویدی قیوم لیگان‌اوس دا احساس کوی چه‌پیپلز گوند هغوی دخپلــو سیاسې مقصدو نودپاره استعمالوی.

**دلیندی ۲۵ــ۵٤**

دپښتونستان له پیښور څخه یو خبروایی چه دپښتنو محصلینو اتحادیې په پیښو ر پوهنتون کی دیوی غو نډی په تر خ کی د پښتونستان دستر مشر خان عبد الغفارخان‌د سمدستی خوشی کو لو غوښتنه کړیده.

دپښتنو محصلینو اتحادیې همدار نګه د پاکستان له‌حکومت څخه غو ښتی دی چه د محصلینو مشر افراسیاب ختك په‌خلاف ټو لی جوړی شوی دعوی بیرته واخلی .

دپاکستان دپنجا ب له چکوال څخه یوخبروایی چه‌په هغه ځای کی داسلامی طلبا ووانجمن دانجمن درئیس غلام مصطفی عابد په‌مشری په‌یوه غـونډه کی دمخا لفو ګوندونوله‌مشرانو سره دپا کستان دحکومت ناوړه رویه غندلی ده ،حکومت څخه په‌کلکه غوښتل شو ید ی چه‌دمولانا عبدالستار نیازی په‌شمول چه څـو ورځی دمخه بندی شو یدی ټول سیاسی‌بندیان سمدستی خوشی کړی .

* * *

دپښتونستان له‌پیښور څخه په‌یوخبر کی ویلی‌شو یدی‌چه په‌هغه‌ځای‌کی دپیپلزګوندد غړو خپل مینځی مخالفت ډیر زیات شوی اودهغه ګوند ګڼ شمیر غړی دپیپلز ګوند دمر کز ی اوایالتی قیادت غندنه کوی .

**دلیند ی ۲٦ــ۵٤**

په یووروستی خبر کی ویل شویدی چـه په‌هندګی دپښتون جر ګی نومی ټولنی‌له خوا دملګرو ملتو نو دسرمنشی ښاغلی کورت‌والد هایم په‌نامه په‌یوپیغام کی غوښتنه شویده چه‌هغه دپاکستان له حکومت څخه وغواړی چه‌د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خـان له‌بند څخه خوشی کړی· دملګرو ملتونو د سرمنشی په‌نامه دپښتون جر ګی‌دپیغام متن په‌دی ډول دی·

جلالتمآ باــ دپښتونستان محبوب مشر خان عبدالغفار خان له ډیر وخت راهیسی سخت ناروغ دی · دپاکستان حکومت هغه یو څـل بیایی له‌کوم دلیله بندی کړی اواوس‌بندیخانه کی پروت دی·

حکومت نه‌دهغه علاج ته پاملرنه کړی او نه‌یی خپلوانو ته په‌بندیخانه کښی دهغه سره دکتلو اجا زه‌ورکوی .

مونږ له‌دی امله تاسی اوستاسی په‌زریعه دملګرو ملتونو دنورو غړ و څخه هیله کوو‌چه دانسانیت حقیقت اوعدالت په خاطردپاکستان له‌حکومت څخه وغواړی چه‌خان عبدالغفار خان بی‌له ځنډه خوشی کړی هغه ته اجازه‌ورکړی هرځای اویاهر هیواد ته چه وغواړی دعلا ج دپاره ولاړشی .

ښاغلیه اوس دخان عبدالغفار خان‌عمرله۸۵ کالو څخه زیات دی آیاپه دی عمر به‌په‌زندان کی دیوسړی ساتل هم څه‌معنی‌لری·

خان عبدالغفار خان دخپل ژوندانه شل‌کاله دبرطانیی په‌بند یخانو کی تیر کړیدی او د پاکستان له پیدا ینبت نه وروسته چه ځانته اسلامی هیواد وایی شل کاله نور په‌بندیخانو کی‌ساتل شویدی .

آیا حیرانوونکی خبره نده آیاد بو تـو حکومت دپاکستان حکومت دپښتنو اوبلوڅـو

سره هره بې عدالتي کوي اوورڅ‌دپاکستان‌د حکومت ورځني پروګرام دی.

دپاکستان دحکومت د تاریخ او واقعیت تحریفولو دپاره دانګریزانو په څیر هر لازم کوښښ کړیدی .

**دلیندۍ ۲۹ــ۵٤**

په پاکستان‌کې دمتحدی دیمو کرا تیکې جبهې دفیصلې سره سم ددسمبر ۱۹ نیټه چې دلیندۍ له ۲۸ سره برابره ده دټولې ورځې په‌نامه په مظاهرو سره نمانځل کیږي .

په‌پښتونستان کې په‌اسامبله کې دمخالفت ګوند مشر اودجمعیت العلما اسلام ګوند سکرتر جنرال مولانا حبیب‌ګل دمتحدی جبهې له‌خوادټولې ورځې په‌نامه ددسمبرد۱۹ورځې دنمانځلو دفیصلې هرکلی کړی اوو یلی‌یې دی‌چه دپاکستان دحکومت غیر قانوني چارود مخنیوی دپاره دو لس درایو تنظیمو لو ته ډیر زیات ضروری دی .

مولانا حبیب ګل ویلی دی : دجمعیت‌العلمای اسلام‌ګوند ټولو څانګو ته هدایت ورکړ شویدی چې دمتحدی جبهې دفیصلې سره‌سم ددسمبر د۱۹ نیټې په مظاهرو کې ګډون وکړي .

دپښتونستان په‌کوهاټ کې متحدې دیمو کراتیکې جبهې دجماعت اسلامي ګوند په دفتر کې بناغلي حاجي محمد ابراهیم په‌مشرۍ غونډه کړې اوله‌ولس څخه یې غوښتنې دی چې ددسمبر په ۱۹ نیټه په احتجاجیه مظاهرو کې‌ګډون وکړي اوپخپلو منځو تورې پټۍ وتړي .

**دمرغومی ۳ــ۵٤**

دکویټې څخه درا رسیدلو خبرو نو سره سم دټورې ورځې دلمانځلوله امله په کویټه کې سختې مظاهرې او ډیرې غونډې وشوې.

مظاهره کوونکو په‌لوی لاس ۱٤٤ مادی‌په ماتولو سره چه‌له پنځو تنو څخه دزیاتوخلکو راټو لیدل منع کوي په‌واټونوکې مارش وکړ اودمخالفې جبهې مشرانو اوزده کو ونکو په وینا وکې دښمار دچوك په‌میدان کې‌دپاکستان حکومت او داساسي قانون په خلاف دهغه‌غیر دیموکراتیك فعالیتو نه سخت وغندل.

ددغو مظاهرو نه وروسته ملك محمد انور کاسي او څو تنه‌زده‌کو و نکي یو لیسو ونیو ل .

**دمرغومی ۳ــ۵٤**

دپښتو نستان له‌وزیر ستا ن څخه په رسیدلي خبر کې ویل شو یدی چه له‌جغملې نه‌تر جندولې پورې په‌یوه اوږده مسافه کې دبرېښنا اوتیلفون سټنې اومزی دملي‌مبارزینو له‌خوا له مینځه‌وړل شویدی .

خبروایي دمسید و اواحمد زیو وزیرو ملي مبارزینو دوانه اوله دی سړ کونه دترافیکو په‌مخ تړلي دي او دوزیرستان ولسي مشرانو پاکستان ته اخطار ورکړیدی چه دوزیر ستان ولس دپاکستاني حکومت په‌هد فونو پوهیدلي اوتردې وروسته باید هغه حکومت دو لس‌د تیر ایستلو له کوښښ څخه لاس وا خلي .

ولسي مشرانو ویلي دي دوزیر ستان ولس به ترهغه وخته پورې دپاکستاني حکو مت

بهخــلاف خپلی مبارزی جاری وساتی تر څو
هغه حکومت دپښتنو اوبلو څوپهسیمو کښی
هرډول مداخلی بس کړی او دپښتنواوبلوڅو
حقه حقوق ومنی.

**دمرغومی ٤ـ٥٤**

دپښتونستان له پیښور څخه پهیوخبر
کیویل شویدی چه په ایالتی کابینه کــــی
دپیپلز اوقیوم مسلم لیګ ګوند و نو دغړیو
تر مینـــځ سخت مخالفت پیداشویدی .

خبروایی دقیوم لیګ غړی پهدی خبـــر ه
غور کوی چهپه څه ډول دحکومت په خلاف
سیاسی مبارزه پیلکړی اود پاکستان داخله
وزیر هم دحکومت په انتخاباتی پلان انتـقاد
کـړ یدی .

خبر زیاتوی پهایالتی کابینهکی دعنایتالله
ګنداپور ملګری هم دحکومت په خلافمبارزی
کولوتهچمتوشویدیاود کابینیاوهتنهو زیر انو
چهدسیاسی فشار پهوجه دنصر الله خــټـــک
مـلاتړ تهاړ کړی شوی وواوس یو ځلبیادهغه
پهمخالفت لاس پوری کړیدی .

دجمعیت العلمای اسلام ګوند مشر مولانا
سید ایوب بنوری دپښتونستان په پیښورکی
پهخپله یوه وینا کی لهحکومت څخه غو ښتنی
دی چه استعفا وکړی او دولس نمایندهحکومت
ته دواك ورکو لو دپاره عمومی انتخا با ت

وشی سید ایوب بنوری دپاکستان حکو مت
تهاخطار ورکړیدی چه کهاوسنی حالت دوا م
وکړی ډیری ناوړی نتیجی بهولری.

**دمرغومی ٦ـ٥٤**

دپښتونستان له پیښور څخه یو خبروا یی
چهپه هغه ځای کی دجماعت اسلامی ګو نــد
رئیس قاضی حسین احمد پهیوه وینا کـــی
ویلی دی چه دتوری ور ځی دمظا هـــرود
مخنیوی دپاره دبند یزو نوله ١٤٤ مـا د ی
څخه پهکار اخیستلو سر بیره دپا کستـان
حکومت لهنورو غیر دیمو کراتیکو چارو څخه
هم کار اخیستی دی.

قاضی حسین احمد ویلی دی پولیسو پـــه
ټول پښتونستانکی خلك له بسونو څخـــه
کوز کړی او هغوته یی اجازهنده ور کړیچهپه
مظاهرو کی ګډون وکړی .

ده ویلی دی دمردان او پیښور تر مینـــځ
لاره دترافیکو په مــخ تړل شوی او دکلوخلك
مظاهرو ته له ورتلو څخه په زور منعکړ ی
شویدی .

قاضی حسین احمد ویلی دی دحکومت له
دغو ناوړو چارو څخه یو ځل بیا ثابته شوه
چه حاکم ګوندپه دیمو کراتیك ډول دمخالفو
ګوند ونو سره مقابله نشی کو لیاولهغیـــر
دیمو کراتیکو لارو څخه حکومت ته دوا م
ورکوی .

قاضی حسیناحمد ویلی دی. اوس پد ی
کی څه شك ندی پاتی چه ولسو نه ډیرژر
پیپلز ګوندله اقتدار څخهوغورځوی.

**دمرغومی ٧ـ٥٤**

لهاسلام آباد څخه درویتر اوفرانسپرس د
نمایندګانو دخبرو سره سم دهغه فرمان لـــه
مخی چه پـــه اسلام آبـاد کی دپا کستان
جمهور رئیس صادر او نا فـذ کړی هغهکسان
چهدیوه رنګ شوی سیاسی ګوند غړ ی وی

دپاکستان په‌فدرالی پارلمان اوپه ایا لتـــی اسامبلو کی له غړیتوب څخه بې برخــی کیـږ ی ·

کتونکی عقیده څرگندوی ددغه فرمان اصلی مقصد ملی عوامی گوند دی چی دپاکستان د حکومت په‌حکم دفبروری په‌تیره میاشت کـی ړنگ شوی او دحکومت له خوادغه حکم دهغه هیواد په ستره محکمه کی تصویب‌شویؤ·

دپاکستان دجمهور رئیس دفرمان په‌اساس هغه کسان چه دړنگ شوی گوندغړی وی د پاکستان په مقننه مجلس کی به‌دپنځـوکالو دپاره دانتخاب کیدو حق‌ونه‌لری ·

**دمرغومی ۱۰ـ٥٤**

دپښتونستان له‌مردان څخه په‌یو خبر کی ویل شویدی چه‌دهغه، ځای دپښتنو محصلینو داتحادیې مشر دمر دان د کالـج محـصل ښاغلی محمد اسلم ټاکل شویدی په‌یو ه غـونډه چه‌په دی مناسبت جو ړه شوی و ه داسلامیه کالـج محصلینو داتحادیې مشرمحمد نثار خټك له پښتنو محصلینو څخه غو ښتی دی‌چه دوخت دتقا ضا سره سم یومر کز ته راټول شی او دآزموینی په‌دی دوره کی په ډیر جرات او زړور تیا سره خپلی ملی‌وظیفی سرته ورسوی · نثار خټك و یـلـی د ی پښتنانه محصلین باید ثابته کړی چه د خپل قام سره مینه لری اوپه‌دی لاره کی هر ډول قربانی ور کولی‌شی·

نثار خټك په‌خپله ویناکی د پاکستان لـه حکومت څخه غو ښتی دی چه دپښتونستان ستر مشرخان عبدالغفار خان سمدستی خو شی کړی او دپښتنو محصلینو پیــاوړ ی مشر افراسیاب خټك په‌خـلاف تړ‌لی جعلی د عوی بیرته واخلی ·

دپښتونستان له پیښور څخه په‌یو خبر کی ویل شویدی چه دکالـج دپښتنو محصلینود اتحادیې رئیس مرستیال ښاغلی سیداصغرعلی شاه په‌یوه وینا کی ویلی دی چه‌باید حکومت سمدستی هغه پښتو فلمـو نه بندکړی چه په‌هغو کی په پښتون کلتور پوری ملنــډ ی شویدی ·

اصغرعلی شاه ویلی دی داسی برېښی‌لکه چه‌دځینو خلکو دیوی دمنظمی دسیسی‌په‌ذریعه دپښتون کلتور شرمو لو سو گندکړیدی·

**دمرغومی ۸ـ٥٤**

دبی‌بی‌سی خبریال له‌اسلام آباد څخه خبـر ورکړی دی چه دپیښور پولیسو دملی عوامی گوند یوشمیر هغه غړی چه غوښته یی په‌هغه ښارکی‌یوه‌سیاسی غونډه‌وکړی تیت‌اوپرك‌کړل اودهغی‌ځینی‌سمبالوونکی یی ونیول ·

ددغی سیاسی غونډی دجوړیدو مخـــه دپاکستان دتحفظ دقانون دیوی مادی په‌اساس ونیوله شوه چه‌په کښه گوڼه‌لرو نکوسیمو کی د څلـور تنو څخه دزیاتو کسانو سره‌غونډیدل منـع کوی ·

اودنیول شویو کسانو په‌ډلې کی دپاکستان دپخوانی جمهور رئیس ایوبخان زوی گو هر ایوب دتحریك استقلال دگوند مشر مارشال اصغرخان اودجمعیت العلما دگو ند څخـــه مولانا نورانی شامل و و·

مولانا نورانی دبی‌بی‌سی خبریال ته‌په‌اسلام

آباد کی وویل چه دپیښور هوایی ډګر ته درسیدو سره سم وینول شوم او په یوه جیپ کی دهغه ښاراتیا کیلو متری ته یووړ شوم او خوساعته وروسته خوشی کړی شوم ·

* * *

په اسلام آباد کی دبی بی سی نماینده د پاکستان له فدرالی پارلمان اوایالتی اسامبلو نه دملی عوامی گوند دغړو په ویستلو باندی په تبصره کی ویلی دی چه دپاکستان حکومت داساسی قانون دځلورم بدلون له مخی چه تیره میاشت دهغه هیواد پارلمان تصو یب کړ دقوانینو دجوړولوقدرت ترلاسه کړی دی اوپدی لاره کی لومړنی اقدام دجمهوری ریاست دفرمان په ډول خپور شو چه دروان کال داکتوبر له نهه ویشتمی نیټی څخه په اجراوړوی اودهغه له مخی دملی عوامی گوند غړی له فدرالی پارلمان اوایالتی اسامبلو څخه و یستل شوی دی ·

دبی بی سی نماینده لیکلی دی چه په دغو کسانو کی خان عبدالولی خان داقلیت دگوند رئیس ښاغلی هاشم غلزایی دهغه هیواد دسنا په مجلس کی دملی عوامی گوند دفرکسیون مشراوهم په بلوچستان کی دد غه گو ند ځلورتنه سناتوران شته خوتر اوسه پو ر ی څرگنده شوی نده چه آیادبلوچستان پخوانی گورنر ښاغلی بزنجو ددغه ایالت پخوانی صدر اعظم ښاغلی مینگل اوښاغلی مری به چه دوی ټول په بلوچستان کی دملی عوامی گوند ستر مشر ان دی په مجلسونو کی غړ یتوب وساتی که نه ؟

دپاکستان دجمهور رئیس دفرمان له مخی دملی عوامی گوند مجرم پیژندل شوی دی د هغه غړی اوهمدا رنگه هغه کسان چه دگوند نـو دقانون له مخی دهیواد په مجلسونواوهم په ایالتی مجلسونو کی دگـډون کولو حـق نه لری اوهم به تر پنځو کالو پوری د هغـه هیواد دمجلسونو یا ایالتی مجلسونو پـه نمایندگی دانتخاب اوانتصاب حق ونه لر ی ·

په نتیجه کی به دغه کسان ونشی کو لی چه چه دعمومی انتخاباتو په مبارزو کی چه ټاکـل شوی ده یونیم کال وروسته و شی گـډ و ن و کـړ ی ·

* * *

دکویټی څخه درارسیدلو خبرونو سره سم پدی وختو کی دملی عوامی گوند پخوانی غړی ملك عبدالعلی کاکړ اونورمحمد په کویټه کی دعامه امنیت دساتنی دمواد ولاندی بند یان شویدی ·

**دمرغومی ۹ ـ ٥٤**

دپاکستان دحکومت په هغه فرمان با نـدی چه دړنگ شویو گوند ونو غړی دسنـا او اسامبلو له غړیتوب څخه محرو موی دتبصری په ترڅ کی دملی دیمو کراتیك گوند مشر شمیر بازخان مزاری ویلی دی چه په سنا اواسامبلو کی دملی عوامی گوند غړی په ملی دیموکراتیك گوندکی شامل شویدی اویاهغه کسان دملی عوامی گوندغړی بلل کیدی شی چه او س په بندیخانو کی دی ·

مزاری ویلی دی دنوی فرمان په رڼـا کی به دملی عوامی گوند دهغو پخوانیو غړو په

باب چه‌اوس په‌ملی دیمو کراتیك گوند کی شامل دی قانونی مشوره و غوښتل شی اوهم که‌ضروری وگڼل شی ستری محکمی ته بـه مراجعه وشی ۰

**دمرغومی ۱۱ـ۵٤**

دپاکستان له‌کراچی څخه په‌یو خبر کـی ویل‌شویدی چه ددیمو کراتیکی جبهی‌سکرتر جنرال پروفیسور غفور احمد یوی غونډی ته‌په وینا کی ویلی‌دی مخالفو گوندو ته‌دحکومت له‌خوا وخت په‌وخت اخطار ونه و ر کـو ل کیـږ ی ۰

غفوراحمد زیاته کړی دپاکستان ځینـو سیمو ته دصدراعظم بناغلی بوتو سفرونه هم بی‌مقصده ندی او داویره شته چی‌دعمومـی انتخاباتو له‌پیل‌کیدوڅخه‌دمخه‌دمخالفو گوند ونو مشران په‌کومه پلمه گرفتارکړی‌شی ۰

غفور احمد زیاته کړی ده صدر اعظم پـه مخالفو گوندو نو تورونه لگوی چی دخارجی هیواد و ایجنټان اودپاکستان دښمنان د ی خو حکومت څکه داکار کوی چه له‌دیموکراتیکو لارو څخه په‌راتلو نکو عمومی انتخا باتو کی دخپل بریالیتوب څخه نامیده شوی دی او غـواړی په‌بی اساسه تورونو سره دمخالفـو گوندونو مشران بندیان کړ ی تر خو په راتلونکی انتخاباتی مبارزه کی د هغو لـه مخالفت څخه ځان خلاص کړی۰

* * *

په پاکستان کی‌دجمهوری ریاست‌دفر مـان له‌صادریدو وروسته چه‌دملی عوامی گو نداو دهغه غړی یی په‌ملی اسامبله اوایا لتـی اسامبلو کی له‌برخی اخیستلو نه محرو مول دذوالفقار علی بوتو حکومت دادی اختصا صی محکمی جو ړ ی کړی دی چه په اصطلاح دپاکستان دخاوری دتمامیت او یو والی سره دمخالفت په خیر پیښی و څیړی ۰

دبی‌بی‌سی راډیو نماینده له اسـلام آبادنه ددغه خبر په ورکو لو سره ویلی دی چـه بنایی دملی گوند غړی به‌لومړنی هغه کسان وی چه پدغو اختصا صی محکمو کی بـــه محاکمه شی۰

دغه خاصه محکمه چه غړی یی دعالی‌محکمی دری قاضیان دی ددی لپـاره جوړه شویده هغه موضوع گانی پکی طرحه شی چه‌دبوتو حکومت یی‌خیانت‌بولی ۰

دبی‌بی‌سی خبریال وایی دغه نوی محکمه‌په حقیقت کی دملی عوامی گوند دمشرانو لپاره چه مخکی دپاکستان عالی محکمی دغه تورونه پری لگولی دی جوړه شویده ۰

دجمهوری ریاست فرمان چه له دی امله‌د ذوالفقار علی‌بوتو په‌تجویز لاس لیك شو ی دی پتیلی ده چه حکومت دی دپیښو څرنگوالی دغی نوی محکمی ته‌وړاندی‌کړی۰

ددغه فرمان له‌مخی دملی عوامی گوندمشران به‌په‌دغی‌محکمه‌کی په‌جلا ډول محاکمه‌نشی بلکی دوی ټول به‌په‌ډله‌ایز ډول‌حاضرکړی‌شی۰

خبریال وایی څرگنده نده چه‌په‌دغی‌محکمی کی به تورنانوته دمرافعی غوښتلو حق‌ورکړی شی که‌نه اوکه دغه‌حق ورکړی شی که نـــه دپوښتنی وړده چه‌کومه لوړه مر جـع به‌هغه وڅیـړ ی ۰

خبریال وایی دپاکستان ددیمو کرا تیکی جبهې داتحاد یی مشرانو چه ټول مخالف ګوندو نه پکی برخه لری وویل دجمهو ری ریاست فرمان نه‌منی اوژربه په‌دی باب‌عریضی برابری کړی .

## دمرغومی ۱۳ــ۵٤

له‌کویټې څخه درویټر دخبر له‌مخــــی د پاکستان صدراعظم ذوالفقارعلی بــوتـــو د بلوچستان ایالتی حکومت دبی کفایتی په تور برطرف کړی اوپدغه ځای کی‌یی‌دفدرالی‌حکومت قانون نافذکړیدی .

دپاکستان صدراعظم ویلـــــی دی چه د بلوچستان دصدر اعظم غلام قادر جام‌په‌مشری ایالتی حکومت پدغه ایالت کی دپر مختیـــا دسستوالی مسؤل بولی خودبلو چستان معزول صدراعظم دهغو پنځو تنو سلاکارانو په جمله کی شامل دی چه ددغه ایالت له ګوزنراحمد یارخان سره دفدرالی حکومت په نما یند ګی دبلوچستان دچارو دپرمختګ دپاره مو ظـــف شویدی .

دایالتی حکومت په‌باب دغه اقــــدامات د بلوچستان په‌مر کز کویټه کی دبوتو دفدرالی کابینی دسترو غړیو او په خپله دهغه ددوه ورځنیو سلامشورو وروسته‌شویدی.

درویټر نماینده تبصره کړیده چه دغـــــه اقدام سیاسی ټولنی ندی حیرانی کړی ځکـــه د۱۹۷۳ کال په‌فبروری کی هم بوتو ددغه‌ایالت پخوانی حکومت برطرف کړ او ملی عوا مـــی ګوند یی چه دبلوچستان حکومت د هغـــه په‌لاس کی ؤ دتجزیه غو ښتنی دنهضتونـــو

تشویق په‌تور منع‌کړ .

په‌هغه رسمی وینا کی چه خپره شوی ویل شویدی چه‌دپاکستان حکومت اوس ډاډه د ی چه دبلوچی قبایلو له‌خوا مخالفانه فعا لیتونه پای ته‌رسیدلی .

دپاکستان صدراعظم یو کال پخوا هـــم ویلی ؤ دغه فعالیتو نه‌چه دبلو ځانو او په اسلام آباد کی‌دفدرالی حکومت‌ترمینځ‌اختلافونو څخه پیداشوی پای ته‌رسیدلی‌دی.

دفرانسپرس دیوبل خبرله مخی دبلوچستان ایالتی اسامبله هم په موقتی توګه ځنـــډول شویده .

## دمرغومی ۱٦ ــ۵٤

دپاکستان په‌مرکزی اسامبله کی دمخالفو ګوندونو مشر اودجمعیت العلمای اسلام ګوند رئیس مولانامفتی محمود په‌یوه وینا کی ویلی دی چه دبلو چستان دحکو مت دړنګو لواقدام په‌هغه ایالت کی دپاکستان دمر کزی‌حکومت هغه دعوا دروغ ثابت کړه چه‌ویل بی‌یی په بلوچستان کی دپیپلز ګوند داکثریت اودعوامو نماینده حکومت جوړشوی دی.

مفتی محمود ویلی دی چه که‌په بلوچستان کی دعوامو نماینده حکومت موجود وای نـــو بیا به‌یی دناکامی‌اوبی کفایتی‌سوال نه وای پیدا‌شوی خو ځرنګه چه دبلو چستان حکومت دحکمران ټولی نماینده حکومت وو نو ځکه‌ناکام شوی دی .

مفتی محمود ویلی دی کله‌چـــه مونږ د پښتونستان حکومت داحـــتجاج په‌تو ګـــــه پرېښوده داخبره مو کړی وه چه په مصنوعی

ډول داکثریت پیدا کولو اوپه بلو چستان کی دغیر نماینده حکومت جو ړولو دسیسه نشی بریالی کیدلی .

مفتی محمود ویلی دی دحیرانتیا خــا ی دی هغه کسان چه دبی کفایتی په وجه لــه حکومت څخــه وایستل شول بیرته دمشاورانو په حیث په اقتدار کښی شریك شول .

مفتی محمود زیاته کړیده دبلـــو چستان دمسئلی دحل یوازنی لاره داده چه حکومت د اکثریت منتخبو نمایندګانو ته پریښبود ل شــی .

* * *

جمعیت العلمای اسلام ګوند سکرتر جنرال ښاغلی صاحب زاده عبدالباری په یواخباری بیان کی غوښتنه کړی ده چه دپا کستــــان حکومت دی دپښتونستان ستر مشر خـــا ن عبدالغفار خان سمدستی خوشی کړی.

صاحب زاده عبدالباری ویلی دی چه دخان عبدالغفار خان صحت ښه ندی او په بندیخانه کی دهغه دصحی حالت دزیاتی خرابتیا امکــان شتــه .

دپاکستان له کراچی څخه په یوخبر کی ویل شوی دی چه دبلو چستان دحکومت دړنګولو په باب دپاکستان دحکومت په فیصلو باندی دیوی تبصری په ترځ کښی دملی دیمو کراتیك ګوند مشر شیربازخان مزاری ویلی دی دبلوچستان دمسئلی دحل یوازنی لاره داده چه په هغــه خــای کی حکومت دو لس نمایند ګانو تــه وسپارل شی.

مزاری ویلی دی دحیرانتیا خای ده چه له یوی خوا په بلوچستان کی په ایالتی وزیرانو دخیانت او بی کفایتی تورونه لګیدلی دی اوله بلی خوا بیامشاوران ټاکل شوی دی .

مزاری له ولس څخه وغوښتل چه دواکمن ګوند ددسیسو او سیاسی رشوتو نو پالیسی ته پاملرنه وکړی. اودهغه حکومت په خلا ف په سیاسی مبارزه کی ګډون وکړی .

* * *

دپښتونستان له وزیر ستان نه را رسیدلی خبروایی په هغه نښته کی چه دوزیر ستان دملی مبارزینو او پاکستانی عسکرو تر منـځ دوانه اودرګی په سیمو کی شوی وه یو زیات شمیر پاکستانی عسکر وژل شویدی.

په خبر کی ویل شویدی چه دپاکستا نــی عسکرو یوشمیر مړی ملی مبارزینو د خــانه سره ساتلی دی اوهغوی ته یی له ور کړی نه انکار کړی وو .

پدغه جګړه کی په یوه ورځ کی ټول شل تنه عسکر وژل شوی چه یو تن نظامی قوماندان هم پکی شامل دی . همدغه شان پدغه جګــړ ه کی یو نظامی قوماندان اودیرش تنه عسکر د وسلی سره دملی مبارزینو لاس ته ورغلی دی . دپاکستان دنظامی قوا وو هغه ډ لــه چه دیوه کرنیل په مشری یی غوښتل دجګړی خای ته ورشی دوزیر ستان دملی مبارزینولخوا په شاتګ ته مجبور شوی او ټانك نظامی چونی ته ستنه شویده وروستی خبرو نه وایی چه دوانه اوتنایی نظامی چو نی دملی مبارزینو لخـوا محاصره شوی او پاکستا نی عسکر دسونګ او ارتزاقی مواد و دنشتو الی په مشکلا تــو

اخته دی ۰

**دمرغومی ۱۸ــ۵٤ :**

دملی دیمو کراتیك گوند رئیس ښاغلی شیر بازخان مزاری ویلی دی چه دده گوندبه دهغو چوکیو پهفر عی انتخاباتو کیلهبرخــی اخیستلو څخه ډډه وکړی چه دپاکستان‌حکومت دملی عوامی گوند له غړو څخه پهغیرجمهوری توگه بیرته اخیستی دی ۰

**هغه وویل** تر څوپوری چهپه بلوچستان‌کی حالات عادی شوی نه وی اوهلته جمهور یت پهځای شوی نهوی په فرعی‌انتخاباتو‌کی‌گډون کول‌هیڅ نتیجه نلری ۰

ښاغلی مزاری زیاته کړه پهداسی‌حالا تو کی چه دپاکستان مرکزی حکومت دایا لتــی حکو متونو څخه دخپل لاس کوډاکی‌جوړکړیدی اوپه جمهوریت پوری مسخری‌کوی دجمهوریت اداروډپاره انتخابات بی معنی څیزدی هغــه دغه‌خبری پههغه غو نډه کی وکړی‌چه دده او میرمن نسیم ولی پهویاړ کراچۍ پهشیر شاه مینه کی جوړه شوی‌وه۰

پهدغه وخت کی میرمن نسیم و لی پخپله ویناکی وویل سره ددی چه‌حکومت هغـــــه خلك نیسی څوك چی زمونږ پهغونډه کـــی گډون کوی خوبیاهم زمونږ پــه غونډه کښی دگڼو خلکو گډون ددی خبـــری ښکـــا ره ثبوت دی چه زمونږ ملك دپاکستان اوسنی حکومت نهغواړی ۰

پدغه غونډه کی ښاغلی هاشم خان غلــزی هم ویناوکړه اووی ویل چهپدی وخت کــی سیاسی آزادی پهاقتصادی اوکلتوری آزاد ی پوری تړ لی ده خوپه پاکستان کی نهیوازی داچی پښتون اوبلو څملت هیــڅ آزادی‌نلری بلکه واکمن گوند پهپاکستان داوسیدونکــو ټولو خلکو آزادی غصب کړیده۰

**دمرغومی ۱۸ــ۵٤**

دبلو چستان دکویټی نهپه یوخبر کی ویل شویدی چهدبلو چستان گورنر میراحمدیارخان دیوبیان پهترځ کی دا خبره منلی ده چــی بلو څان دپاکستان حکومت ته ندی تسلیــم شوی اوهلته دحکومت په ضد مبارزه‌تراوسه روانه‌د ه هغه اعتراف کړیدی چی دبلـو څ ملت او مشران پاکستان نه خوا بدی دی ۰

گورنر دغه ټولی خبری دپاکستان‌دحکو مت دهغه اقدام پهتر څ‌کی‌کړیدی چی دهغه‌ترمخه هلته‌حکومت ړنگړ کړی شویدی ۰

خبرزیاتوی چی گورنر پداسی حال کی‌چی دده خپل لمسی دبلوڅ‌ملت په مرسته پــه غرونو کی دی اوډپاکستان د حکومت خلا ف جنگ کوی بلو څوته اپیل کړیدی چی دده سره همکاری وکړی ۰ دبلو چستان خبرو نه وایی چی دگورنر وزیر اعلی داسامبلی دغــړو او پاکستا نی عسکرو قوماندان اودکابینـــی ترمینځ مخالفتونه نور هم‌ځرگندشویدی۰

**دمرغومی ۲۰ــ۵٤ :**

فرانسوی مشهور لوموند ور ځپاڼـــی د پاکستا ن دحالاتوپه باب پهیوه مقاله کـــی لیکلی دی‌چه د ۱۹۷۵ **کال دفبروری پهمیاشت** کی دپاکستان صدر اعظم ذوالفقار علی بو تو عوامی ملی گوند چه دحکومت ډیر سترمخالف گوند اودپښتونستان اوبلوچستان په ایالتونو

کی پیاوړی سیاسی نهضت دی په دی پلمه چه دپاکستان دحاکمیت **اوتمامیت په خلاف فعالیت** کوی منع کړ. دغه تصمیم **دیوه ایالتی وزیر اود** پاکستان دصدر اعظم دیوه شخصی اونژ دی ملګری دوژل کیدو څخه وروسته ونیول شو دهماغه کال دنوامبر دمیاشتی په څوارلسمه نیټه دمخالفو ګوندونو مربـوط دپاکستان دفدرالی اسامبلی یو ولس تنه غړی دهغه هیواد په اساسی قانون کی دبدلون له تصویب سره د مخالفت په جرم چه دهغه سره سم دملی عوامی ګوند پیروان په مر کزی پارلمان او ایالتی اسامبلو کی دغړیتوب څخه یی برخی کید ل ددغی اسامبلی څخه وایستل شول.

ددسمبر دمیاشتی په نیمایی کی اتو مخالفو ګوندو نو په ټول پاکستان کی دتوری و رځی مراسم په ځای کړل . دهغی په تر څ کی یی دپاکستان دصدر اعظم ددیکتاتوری په خلاف احتجاج وکړ. دده استعفا یی وغوښته.

دپاکستان صدر ا عظم دتـوری ور ځی د مراسمو په ځای کولو نه مخ کی یی له هیـڅ لیکلی دی چه د۱۹۷۵ دفبروری په میاشـت ډول تکنی توب څخه اعلام وکړ چه دده دحکومت مخالف هر ډول نهضت به سخت و ټکول شی.

تردی چه څه وخت دحکومت مخالف دپیپلز پارټی پیروانو وغوښتل په لاهور کی دپاکستان دصدر اعظم په ضد احتجاجیه غونډه وکړی. پولیسو یوساعت مخکی له هغه چه غـو نـډه جوړه شی دغونډی دتالار په نیولو سره دهغی مخه ونیوله .

دلومونډ ور ځپاڼی زیاته کړیده پد اسی حال کی چه دملی عوامی ګوند مشران ټـول بندیان کړی شویدی دپاکستان حکـو مت ددسمبر په ۲۸ نیټه ددی خبری مخه ونیوله چه ددغه هیواد په اسامبلو کی ددغه ګو نـد وکیلان ددغو اسامبلو په چارو کی برخه واخلی یانوی سیاسی ډله جوړه کړی او په پای کی دسږ کال دجنوری په لو مړی نیټه مر کزی حکومت دبلوچستان دایالت دچارو اد اره مستقیما پخپل لاس کی وا خیستله منتخبه اسامبله او ددغه **ایالت حکومت یی ړنګ کړ پدی** ډول نباغلی بوتو دبلو چستان دایالت پـه چاروکی دمرکزی حکومت اودپاکستان دنظامی قوا ؤ تسلط چه دده دادعا په خلاف د۱۹۷۲ کال څخه په ضدد قبایلو پاڅون سختیږی لا پسی ټینګ کړ .

دلوموند ور ځپاڼی څرګنده کړیده پداسی حال کی چه دبوتو نژدی ملګری اومرستیالان ټول مخکی له ده نه جلا شویدی له مخالفینو سره دده کړکیـچ **دپاکستان سیاسی د ګر سخت** کړکیچن کړیدی .

دبوتو مخالفین هغه استبدادی چلند ته په ګوتی نیولو سره چه دپاکستان صدر اعظـم دهغه هیواد چاری پری اداره کوی وا یـی چه په پاکستان کی سیاسی آزادی له مینځـه تللی دی خو رښتیا خبره داده چه هیـڅکله پدغه هیواد کی سیاسی آزادی نه وه .

پدی ډول دبوتو سیاسی جبهه دهغو خلکو له نظره چه نورله ده سره پخوانی مینه نه ښیی ډیره زیاته لږه شویده .

بوتو **له دی څخه ویریږی چه اوسنی حالت** ددی سبب نشی چه یو څی لښکر یو څـل

بیادګر ته راووخی اوقدرت **په لا س کی** ونیسی ۰

دلوموند و رڅپانی په‌پای کی یادونه‌کړی‌ده چه دپاکستان ور څپانه لیکونکو هم دمطبوعاتو په‌چارو کی دپو لیسو دلاس وهنی له امله سخت احتجا ج کړیدی ویلی یی‌دی چه هیڅکله مطبوعات له‌دغه **ډول سختی زند ی** سره نه ؤ مخامـخ شوی په‌جریده واوورځپاڼو کی دحالا تو دحقایقو دخپریدو دمخنیو ی‌له پاره دبند یز له هـر ډو ل لارو چاروڅخه کاراخلی ۰

* * *

دبلو څو محصلینو **داتحادیی رئیس ښاغلی** واحد بخش بلوځ‌په‌کراچی کی په‌یوه بیـان کی ویلی دی حکومت چی هر څومره دبلوڅـو اوپښتنو په‌ضد ناوړه اقدامات وکړی څو د بلوڅو محصلینو حوصله نشی خرابولـی ده زیاته کړی‌چی‌دبلوځ‌ملت **تحریک‌دملت‌تحریک‌دی‌او** ملی تحریکونه دحاکمانو په ګر فتاری نشـی ختمیدای ۰

هغه حکومت ته اخطار ورکړیدی چی که د کراچی بلو څ محصلین سمدستی خو شی‌نکړی شول‌نودوی به دحکومت په‌ضد سختی‌مظا هری پیل کړی۰ هغه زیاته کړه بلو څ دخپلـو حقوقو دترلاسه کولو دپاره دمبارزی په غرض غرونو ته ختلی دی‌اودحکومت په‌مقابل کی‌چی هرڅومره مجادله وکړی مسؤولیت نلری۰ په یوبل خبرکی ویل شویدی دپاکستان‌پولیسود بلوچستان په‌سیمه کی دریل ګاډی په‌ستیشن کی سل تنه بلو څ محصلین نیو لی‌دی۰

پاکستانی پولیسو دهغوی دګرفتاری دعلت نښودلو په تر څ کی‌ویلی دی چی‌دوی دحکومت په‌خلاف دمبارزی دپاره غرونوته‌روان ؤ ۰

**دمرغومی ۲۱ــ٥٤**

دبلوچستان له‌ګو یټی څخه کراچی تـــه دستنیدوپه وخت دملی دیمو کرا تیك ګو ند مشر ښاغلی شیر بازخان‌مزاری په‌یوه‌مرکه‌کی ویلی دی چه سناتور محمدعزیز کرد پــه بلوچستان کی دملی دیمو کراتیك ګونددرئیس اوسناتور محمد هاشم غلجی دجنرال سکرتر په توګه ټاکل شویدی ۰

مزاری ویلی‌دی ښاغلی حاجی غلام سرور په‌کوټه‌کی دګوند درئیس په‌توګه ټاکل‌شوی اودبلو چستان په‌نورو سیمو کی به هـــم وروسته ګوندی ټاکنی وشی ۰

مزاری زیاته کړیده چه په بلوچستان کی دملی دیمو کراتیك ګوند یوه شل کسیز ه کمیټه جوړه شویده چه رئیس یی سناتور کرد اوجنرال سکرتر یی محمد هاشم خان غلجی دی ده ویلی دبلو چستان په‌نورو سیموکی‌به دګوند ر ئیسان ددغی شل کسیزی کمیټی له غړو څخـه انتخاب‌شی۰

ښاغلی مزاری په‌خپله وینا کی ویلی دی دهغه ښه هرکلی څخه چه دبلو چستان‌خلکو دملـی دیمـو کراتـیك ګوند څخـه کړ یدی، ډیر خوشحاله دی اوهیله یی څرګنده کړیده چه‌هغه ګوند به‌په بلو چستان کښی یو ډیر قوی ګوندشی ۰

ده‌ویلی دی هغه کوښښونه چه‌د ملـــی دیموکراتیك ګوند په باب خلکوته دغلط فکر

ورکو لو دپاره کیدل ټول خنثی کړی شویدی اوهغه گوند بەدخلکو دیمو کرا تیکو حقوقو دپاره مبارز ی ته دوامورکړی ·

**دمرغومی ۲٤ــ٥٤**

دپښتونستان لەکو ها ټ څخه پەیو خبرکی ویل شویدی چیپەهغهځای کیدجمعیتالعلمای اسلام گوندمشر ښاغلی حبیب شاه اودجمعیت اسلامی گوند مشر ښاغلی عبدالحمید خــان دپاکستان دحکومتی مقاماتو پەامر بند یان شوی اوپه دوی باندی دتوری ور ځی پـــه مناسبت پەیوه جوړه شوی غونډه کی دحکومت پەخلاف دپاروونکو وینا ووتورلگیدلیدی·

خبروایی دپاکستانو حکومتی مقاماتــو د پښتونستان په اسامبله کی دمخالف گو ند دمشر مولانا حبیب گلاو دتحریكاستقلال‌گوند مشر خیال بادشاه دگرفتاری امر هم صـــادر کړیدی ·

خبر زیاتوی په هنگو کیدجمعیت العلمای اسلام گوند مشر مولانا سفر الاسلام او په کوهاټ کی دجماعت اسلامی گو ندرئیس مولانا عبدالهادی په یوگړ بیان کی ویلی دی چید مخالفو گوند دمشرانو گرفتاری ددیمو کراتیکو اصولو پەخلاف ده دوی ویلی دی دپاکستان حکومت دبند یزو نو د۱٤٤ مادی څخه پرته حکومت نشی کولی·

**دمرغومی ۲۷ــ٥٤**

لەکرمی ناوی څخه په رارسیدلیخبر کــی ویــل شو ید ی چه په هغه ځــای‌کی ملی مبارزینو دپاره چناردتانك ، ښاروالی په یو تن‌لوی بابو یوسف نومی او ورسره شل‌تنو حمله کړی اودتوپکو ډزی یی پری کړید ی·

خبروایی دملی مبارزینو دډزو په اثر یوسف بابو مړشو ی او له ملی مبارزینو څخەدوەتنه ټپیان شویدی·

لەکرمی ناوی څخه پەیوه بلخبر کی ویل شوی دی پەهغی ولسی غونډه کی چەپه سدی بازار کی شوی وه په پښتنو اوبلو خــوباندی دپاکستان دحکومت دظلمونو غند نەشوی او دملی اتحاد او یووالی سپارښتنیشویدی·

**دمرغومی ۲۹ــ٥٤**

لەپیښور څخه پەیو خبر کی ویل شو ی دی چەپه پښتو نستان کی دمحصلینوداتحادیی رئیس ښاغلی محمداسرار دپاکستان لەحکومت څخه پەکله غوښتی دی چه دښودکالجدمحصلینو اتحادیی‌پەانتخاباتو کښیدرياستکاڼدید ښاغلی طوفان سمدستی خوشی کړی او هغه تەپـــه انتخاباتو دگډون کولو اجازه ورکړی ·

محمد اسرار ویلی دی که چیری فر یــد طوفان لەبند څخه خوشی نکړی شی دپښتنو محصلینو اتحادیه به پەټول پښتونستان‌کیپه احتجاجیه مظاهرو لاس پوری کړی ·

دپښتونستان لەدیره اسمعیل خان څخــهیو خبروایی پەهغه غونډه کی چه دټانگه دگری کالــج دپښتنو محصلینو لخواشوی وه پەیوه پریکړه کښی دپاکستان لەحکومت څخه کلکه غوښتنه شوی ده چه دپاکستان پخوانی رئیس یحیی خان دی محاکمه شی ·

دمحمود الرحمن کمیسیون رپو ټ دی خپور شی او دبــــندیزونو ۱٤٤ماده دی لـــر ی کړی شی ·

**دمرغومی ۳۰ــ٥٤**

دپښتونستان نەپه رارسیدلو خبرونو کی

ویل شوی دی چه دپاکستان دحکومت پــه خلاف دولس مخالفت پهوجه دحکومت لخوا د خلکو نیول دوام لری ٠

دملګنهسیمی دهاتیانو لامده خور اودپیښور دسیمی پهبیلو بیلو ځایو نو کښی پاکستانی پولیسو یوزیات شمیر کسان ګرفتار کــړ ی اوبندیخانوته یی لیږلیدی٠

دپولیسو له خو لی ددغه خبر ورکولو په ترڅ کیویل شوی دی چه نیو لیکسانزیاتره په خپلو کورونو کښی دشپی پهوخت کـــی نیول شوی او هغه وسله چه ددوی سره وه پولیسو تری نیولیده٠

پههغه سیمه کی تبصره کوونکو پد غــه لړکی دتبصری په تر څکی ویلـــی دی د پښتونستان اوبلو چستان خلك پهکیلو او بانــډو کی اوسی زیاتره یی پهخپلو کورونو کښی دخپل ځان ساتنی دپاره کو چینیوسلی لری خودپاکستان حکومت دخلکو دخوږولو او ګرفتار ولو دپاره دغه پلمه پیداکړی ده او پدغه وسیله دخلکو خوږولو اونیو لو تهاقدام کــو ی ٠

* * *

دپښتونستان لهدیره اسمعیل خان څخــــه پهیو خبرکی ویل شویدی دپاکستان پهمرکزی اسامبله کیدمخالف ګوندرئیساو دجمعیتالعلمای اسلام ګوند مشر ښاغلی مولانا مفتی محمو د پهیوه وینا کی ویلی دی چه دپاکستانحکومت دډیموکراسی دودی اومدنی آزادیو سا حـــه ورځ پهورځ تنګوی ٠

مولانامفتی محمود لهمر کزی اوایا لتـــی اسامبلو څخه دملی عوامی ګوند دغړودایستلو اقدام تهاشاره کړی اوویلییدی دپاکستان دپوهنی مرکزی وزیر عبدالحفیظ پیرزاده په داسی حال کی چهدمرکزی اسامبلی غــړ ی ښاغلو چودری ظهور الهی اوپروفیسرغفـــور احمدهمحاضر وودحکومت پهنمایندګی له مـا سره وعده کړی وه چه دملی عوامیګوندغړی به داسامبلو دغړیتوب له حق څخه نـــه محرومیږی ٠

مفتی محمود ویلی دی حکومت په دیبرخه کی یوځل بیاله شوی موافقی څخه تیریکړی اوهغه یی رد کړیده ٠

دبلوچستان داوسنی حکومت ړنګولوپه باب مولانا مفتی محمود پهخپله ویناکی ویلی دی کوم اسبابچهپه بلو چستان کی دحکو مت دړنګولو دپاره ښودل شویدیدهغو تقاضا داوه چهپه بلوچستان کښی ایالتی وزیر اعلی او نورو وزیرانوته سخته جزا ورکړ شوی وای خوددغی تقاضا پهخلاف هماغه کسان یو ځل بیادعوا مو دشاپیتی وګرځول شول خوكچهپه خپله دحکمران ټولی له خوابی کفایته بلـــل شو یـــد ی ٠

مولانا مفتی محمود ویلی دی مر کزیحکومت پهبلو چستان کی داسامبلی په ړنګولو سره دولس دنمایندګانو او دیمو کراتیکو اصو لو سخت سپکاوی کړیدی ٠

**دسلواغی ۲ـ۵٤**

دپاکستانحکومت دبلوچستان دپخوا نـــی وزیر اعلی ښاغلی سردار عطاء الله مینګلزوم ښاغلی عبدالمجید دپاکستان دملکی الوتنو په

اداره کی دبم دچاودنـــی پەتو ربنـــد ی کړیدی ۰

پەخبرکی ویل شویدی ښاغلی عبدالمجید غوښتنه کړیده چەدهغه پە خلاف د غه فیصله دیوی اختصاصی محکمی لخوا شویده حال دا چە اختصاصی محکمی دحکومت تر فشار لاندی کارکوی نوځکه نشی کولای چە دده پەباب بیطر فه قضاوت وکړی۰

هغه ویلی دی چە باید دده محاکمه پەیوه داسی محکمه کی وشی چە هغەدحکومت لـــه فشارنه آزاده وی ۰ پە خبرو نوکیویلشویدی چە دخپلو سیاسی مخالفانو پە خلاف دپاکستان دحکومت پەناوړه زور زیاتی کښی نو ره چټکتیا هم پیداشویده ۰

**دسلواغی ٤ـ٥٤**

دپښتونستان دپیښور ښخه پە رارسیدلی یو خبر کی ویل شویدی چە دجمعیدوز ښی دلمانځه پەموقع غونډی ته دوینا کو لو پـــه وخت ښاغلی مولا نا مفتی محمود وو یـــل چەپە پاکستان کی هروخت واکمنیډلی اسلام دخپلوشخصی مفادوپە خاطراستعمال کړیدی . مګرتر اوسەهیچاهم داسلام واقعی خدمـــت ندیکړی ۰

مفتی صاحب زیاته کړه چەموجوده واکمن ډولی کوښښ کوی چە پە عوامو کښی دشعور دبیداری مخەونیسیهغەوویل چە د١٩٤٧ کال نەمخکی هممو نږ داولسدحقوقو ملاتړکولو او هم بەیی کوو۰

پەداسی حال کی چە اکثریت پە مختلفو دسیسو پەاقلیت اړول کیږی دجمهوریتدعوی هیـڅ واقعیت نەلری مولانا صاحبزیاته کړه چەمخالف ګوند ونه ښان دحکومت پەغیرقانونی فیصلو دعملی کولو پابند نه بو لی اوټوله دنیاپەدی خبره ده چەدپښتونستان اوبلوچستان حکومتو نه دملی عوامی اوجمعیت العلما ی اسلام ګوندونو ښخەچەاکثریت وو پەغیرقانونی توګه اخیستل شویدی ۰

ده وویل چە دواکمن ډولی پەنزددحق آواز پورته کول یولوی جرم دی هغه پدی مر که کی پەراتلوونکو انتخا باتو کی برخه اخستل دوخت ضایع کول وبلل۰ ۰

**دسلواغی ٤ـ٥٤**

پاکستان پەبلو چستان کی دګریلا یا نو سره دجګړو دپاره دخپل هوایی پو ځدالوتکو ښخه کاراخلی ۰

بلو ښی منابع وایی : هغه الوتکی چەدیوه سویډنی شرکت له خواپاکستان ته ورکو لی کیږی پدغه ځای کښی پەیوفرد ډولەتوغندیو چەپە سویډن کیجوړشویسمبالیږی ۰

دسویډن یوی ورځپاڼیلیـــکـلی دی چـــه وسلەوالی سویډنی الوتکی پەکویټەکی ځا ی پە ځای شویدی ۰

دغه خبر دغی ورځپاڼی پەیوی پاکستا نی الوتکه پەسویډن کی دچر سو دپیدا کیدواود پاکستان دهوایی پو ځ دیوشمیر منصبدارانو او افراد ودنیول کیدو وروسته خپـــو ر کـــړ یـــد ی ۰

نیول شوی کسان چە شل تنه دی او پە هغوی کی دپاکستان دلویی رتبی یو منصبدار هم شته دسباب ډوله الوتکو دفالتو سما مانو

دراوړلو دپاره سويدن ته تللي ؤ .

**دسلواغي ٥ـ٥٤**

دپښتونستان داستادانو داتحاد يى لخوا په يوه ابلاغيه کى ويل شويدى چه که دسلواغي تر٢٢نيټى پورى داستادانو حقوقي غو ښتنى ونه منلى شى نوداعلى تعليمي موسسو ټول ښوونکي او استادان به ددرس ورکولو سره پريکړه وکړى اودغه اعتصاب به تر هغه وخته پورى دوام وکړى تر څو چه داستاد انــو غوښتنى پوره شوى نه وى .

په خبر کى ويلى شويدى چه داستادانوپــه غوښتنو کى پاکستان دحکومت له خوا پــر استادانو دفشار اچو لو اوپه تعليمي موسسو کى دپيپلز ګوند دهمکا رانو پيدا کو لوپه پلان بدويل اوددغه عمل سره مخالفت هم شا مل دى .

**دسلواغي ٥ـ٥٤**

دپښتونستان دبيلو بيلو سيمو نـــه را رسيدلي خبرونه وايى چه دپيپلز ګوند څخه دښاغلي جوهر محمد تر استعفي وروسته په ټول پښتونستان کى دپښتنو محصلينوپـــــه اتحاديه کى دمحصلينو دګډو ن شمير و رځ په ورځ زياتيږى .

راغلي خبرو نه زياتوى چه په تنګي نوښاراو پېښور کى زيات شمير پښتنو محصلينوپه هغه اتحاديه کى خپل ګډون اعلان کړيدى.

همدغه راز دپيښور څخه يوبل خبروايــى چى دنو ښار دمحصلينو په هغه اتحاد کــى رئيس ښاغلي انارخان دپيپلزګوند څخه په جلاکيدو او دپښتنو محصلينو په اتحاديه کى دګډون لهامله ښاغلي جو هر محمد ته دمبارکى ويلو په ترڅ کى دټولو پښتنو محصلينو څخه غوښتنه کړيده چه دهغوى په اتحاديه کـــى ګډو ن وکړى .

يو بل خبروايي چى دپښتنو محصلينو د اتحاديى رئيس ښاغلي محمد اسرار دنو ښار دپښتنو محصلينو داتحاديى درئيس په حيث دښاغلي انارخان دانتخاب په مناسبت هغه ته دمبارکى ويلو په ترڅ کى دهغه څخه هيله وکړه چه خپلو ملي هدفو ته دپر مختګ اوپه پښتنو محصلينو کى دزيات اتحاد دپيداکولو په لاره کى زيار وباسى .

دکوهاټ خبروايى چى دهغي لويى غونډى په ورآندى چى په کوهاټ کى دپښتنومحصلينو په اتحاديه کى په زيات شمير پښتنو محصلينو دګډون په مناسبت شوى وه دپښتنومحصلينو داتحاد يى رئيس ښاغلي اسرار خان سالار خان اواختر علي شاه وينا وى وکړى همدغه راز ښاغلي ظفر چتان اونورو مشرانو دپښتو نستان دستر مشرانو دسمدستي خوشى کيدو غوښتنه وکـړه .

**دسلواغي ٦ـ٥٤**

دکيملپور څخه په رارسيدلي يوه خبرکښى ويل شوى ى چه هلته دجماعت اسلامى په دفتر کى يو ى غونډى ته دوينا په ترڅ کى ښاغلي مولاناشمس الرحمن په بلو چستان کىدسويدنى طيارو داستعمال خبرته دګوتي نيو لو په ترڅ کى وويل چه دپاکستان دمسؤلو کسانو لخوا دچرسو دتجارت په علت سويدن مجبور شوچه دغه راز ښکاره کړى. مولاناشمس الر حمن

وویل چه ددی هر څه مسؤل موجوده حکومت دی او زیاته یې کړه چه حکومت د خپل اقتدار ددوام لپاره دملك دنظامي قواوو په نظامي وقارهم بند نشو او نظامي ځوانان یې په‌داسې ناوړه فعالیتو نو بوخت کړل نومو ړی ۱٤٤ مادی دلری کولو او سمدستیانتخاباتو غوښتنه وکړه .

**دسلواغی ۷ـ٥٤**

دملي دیموکراتیك گوند یوغړی ښاغلی غازی خان په‌خپله یوه ویناکی دپاکستان له حکومت نه‌غوښتنې دی چه ټول سیاسی‌بند یان دی سمدستی خوشی کړی‌شی .

غازی خان مطالبه وکړ ه چه‌دپښتونستان ستر مشرخان عبدالغفار خان دی‌سمدستی د بند نه خوشی کړای شی او پښتنو تـه‌دی دسیاسی مبارزی لاره خلاصه کړی شی هغه‌د پاکستان حکومت ته اخطار ورکړ چه که‌هغه حکومت دبندیزونو او مظالمو له‌لاری اقتدار ټینگولو دپلان دتطبیق نه‌لاس وانخلی‌نودناوړو نتیجو سره به مخامخ شی .

**دسلواغی ۱۱ـ٥٤**

دپاکستان دحکومت په‌خلاف دپښتنواوبلوڅو ملی مبارزی سختی شوی اوورځ‌په‌ورځ شخړی دزیاتیدو خواته روانی دی .

دپاکستان دنظامی قواؤ دعسکرو هغه ډلی چی هغه حکومت دوزیر ستان دگوملی پـه سیمه کی ځای په ځای کړیدی دملی‌مبارزینو لخوا دسختو ډزو اومقابلی سره مخامـخ دی اوداسی وخت به‌نه‌وی چه پاکستانی عسکر د مبارزینو له‌حملو او ډزو نه‌په کراره‌شی.

دبلوچستان له لورلایی څخه یو خبر وایی چی په هغه سیمه کی دبلو څلو او پښتنوملی مبارزینو دیوی حملی په اثریوتن پاکستا نی عسکر وژل شوی اویو شمیر یی ټپیا ن شویدی .

په‌خبرکی ویل شویدی چی ملی مبارزین په‌خپلو وسلو سره که څه‌هم دپاکستانی اردو دوسایلو سره به برابر نښت ونه‌لری بیا هم کلکه مقابله کوی اوپاکستانی عسکر یی په خپلو سیمو کی دزیات پر مختگ نه بنـــد کړیدی .

**دسلواغی ۱۲ـ٥٤**

په راولپنډی‌کښی پخپله ویناکی دجما عت اسلامی گوند امیر مولاناجان محمد عبا ســی دبلو چستان په‌باب وویل چی په بلوچستان کی حکومت په‌خپلی ناکامی‌اعتراف کړ ید ی. ده وویل چی تراوسه په‌بلو چستان کی پــه کروړ ونو روپۍ مصرف شوی دی خودودانۍ هیـــخ نښه نښانه نه‌ښکاری .

ده‌زیاته کړه‌چی بلوچستان په‌سیاسی ډول په‌هم هغه رنگ دی چی په ۱۹٦۰ کال‌کی ؤ اووی ویل چی دمو جوده حکومت دنا و ړ ه پالیسیو له‌امله‌خلك په‌سندکی‌خپل جایداد ونه خرڅوی اوهجرت کوی .

مولانا زیاته کړه چی دمو جوده حکو مت پالیسی دا‌ده چی په‌پنجاب کی پښتنو ته د ملك دښمنان وایی اوپه سند کی پنجاب ته دسند یانو دښمن وایی خو چی پنجاب ته راشی نودپاکستان دسلامتیا په‌نوم دخلکو نه سیاسی مرسته غواړی .

بندیز سره داولس دحقه حقوقو دغوښتنې اواز بند کړی خوپه دغه لاره بهدحکومت او اولس ترمنځ تا و تریخو ا لی نور هـــم زیات شي .

هغه وویل دپښتونستان اولس دپاکستان دحکومت دحالونو پهوسیله دخپلو حقوقو څخه لاس نهاخلي اودحکومت دغه عمل به داولس اوحکومت مخالفت نور هم پراخهکړي .

هغه وویل حکومت داحوصله هم نه لري چهداولس حقي مطالبې واوري نوځکه یې پــه مطبوعاتو باندې بندیز لګو لی دی خودو ی باید تاریــخ تهنظر وکړي چه ظالم قوتونو چه هرڅومره داولس پهستوني پنجې ټینګۍکړیدي هغومره داولس جـذبات لاپسې زیاتپاریدلي دي او زور ګیر وقوتوپه خلاف یې خپلهمبارزه زیاته سخته کړې .

ښاغلي مولانا حقاني پهپایکيوویلد پښتون اوبلو څ اولس آزادي او حقوق هیڅوك نشي غصبولي البته دخپلو حقوقو دترلاسه کولــو دپاره دزیاتي مبارزې ضرورت او اړتیاشته چه ټول اولس پهیوه حرکت اویوه اتحاد سر ه دخپل حق دپاره ملاوتړي اوله غاصب حکومت نهدخپل حق ترلاسه کولو دپاره دهیڅ ډول قرباني ورکولو پهلاره کي دهر راز ظلم او زور زیاتي پهمقابل کي کلك قیاموکړي .

**دسلواغې ۱۳ـ٥٤**

دپښتونستان دوزیر ستان نهرا رسیدلــي خبروایي چي پهدې ور څو کي دبیټنو اومروتو قومونو علماؤ مشرانو او ځوانانو الحاج علي محمد بیټني په مشر ی یوه ستره قو مي غونډه کړې ده.

جرګه دښاغلي مولوي عبدالمنان له خـــوا دقرآن عظیم الشان پهتلاوت پیــــل شوه او وروسته قومي مشرانو اوعالمانو دپاکستا ن دحکومت پهضد جـذابي وینا وی کړ یده ی اوپه یوه اتفاق یې ویلي دي چي دوزیرستان ټول قومو نه باید دپاکستان دحکومت پالیسي وپیژني اودهغه دولت دهر ناوړه پلانشندولو پهلار کي دملي مرام اومبارزې له پاره میدان تهورو دانګي جرګې پهیوه اتفاق پریکړیــده چي هرپښتون دخپلي خاورې دساتنې دپارهد کاملي ارادې پهقوت دسر او مال قر بانۍته حاضر دی.

جرګې د پاکستان حکومت تهخبر دا ری ورکړیدی چي دوزیر ستان پهخاوره کيدهر راز مداخلې نه باید ډډه وکړي .

* * *

دپښتونستان په پیښور کي پخپله یو ه ویناکي دملي عوامي ګوند یومشر ښاغلــي الحاج غلام احمد بلور غوښتنه کړ یده چي دپښتونستان ستر مشرخان عبدالغفار خا ن دپاکستان پهجیلکي ناروغه دی. او هغـــه ته دی دعلاج کولو پوره پوره اسانتیا و ی برابرې کړی شي او که حکومت دغه نهشي کولای نوباید دپښتنو دغهلوی ملي‌مشرتــه د پاکستان نه دباندې دخپل علاج کولو اجـازه ور کــړي .

ښاغلي بلور وویل چي دپاچاخان صحـت خراب شویدی اوددغې مسؤلیت د پاکستان د حکومت پهغاړه دی ځکه چي هغه حکومتدعمر

پەدغه خطرنا کو لحظو کی هغه په ظالمانه توگه په جیل کښی اچو لی دی ۰

هغه زیا ته کړه باید حکومت دهغو نتیجو احساس وکړی چی دباچاخان د بند ی ساتلو سره خا مخامنخ ته راځی۰

## دسلواغی ۱۵ـ۵٤

دراولپنډۍ ته پەیوخبر کی ویل شوید ی چه دجماعت اسلامی گوند مو لانا جان محمد عباسی پەیوه غونډه کی ویلی دی چەدپاکستان حکومت دپښتونستان بلو چستان اودپاکستان پەسیمو کی پەسیاسی او اداری چارو کی ناکام شویدی اودهغه دحکومت کولو مو د ه هم پای ته رسیدلی دەنوځکه باید سمدستی انتخا بات وشی ۰

دپاکستان دپولیسو لەخوا پەولس با ندی مظالمو ته دگوتی نیولو په ترځ کی مولاناوویل چەپه پاکستان کی پخوا دپولیسو لگښت دری ملیونه روپۍ وو خودپاکستان پەاوسنـــی حکومت کی دغه لگښت څلور سوه اوپنځوس ملیونو روپوته رسیدلی دی او پولیس یـــی دولس سره لاس اوگریوان کړیدی۰

مولانا عباسی پەبلو چستان کیدپاکستان دحکومت مظالمو ته داشاری په تر ځ کی وویل پەهغه سیمه کی دپاکستان دحکومت نظـا می عملیاتو دپاکستان پەاقتصاد زیات فشارراوړی اواقتصاد ورځ‌په ورځ‌کمزوی کیږی خو بیاهم حکومت پەهغه سیمه کی خپل دغه ناو ړ ه عمل ته دوام ورکوی ۰

په دغه غونـــډه کی چودری رحمت الهـــی پەخپله وینا کښی وویل چەپه چوك یادگارکی دشیر بازخان مزار ی اومیرمن نسیم و لـــی ولی‌بوی غونډی دپاکستان حکومت دو مر ه وار خطا کړ چەپه کو هاټ اودیره اسمیل‌خان کی‌یی هغوی دغونډی کولونه منع‌کړ ل اوپـــه میرمن نسیم ولی یی‌دبیان بندیزلگولی‌دی۰

## دسلواغی ۱٦ـ۵٤

دپښتونستان دبیلو بیلو سیمو نەدارسیدلی خبرو نەوایی چەپه دغو سیمو کی‌دپاکستان دحکومت دغیر جمهوری اعمالو اوپەاولس‌باندی داستبداد ی فشارله امله په ټولو سیمو کی دحکومت پەخلاف تاوتریخوالی زیات شو ی او داولس داحتجاجی مظاهرو اوملی مبارزو د مخنیوی دپاره دپاکستان حکومت د پښتونستان پەډیرو سیمو کی دبند یزونو لگولو په لړکی ۱٤٤ ماده نافـذ ه کړی اوهری خواته پـــه سیاسی وینا وو اوخبرو اترو دبندیزله امله یوه بی اطمینانه فضا پیداشوی‌ده۰

پەخبر کی ویل شویدی چەسره دټولـــو بندیزونوچه هغه حکومت نافـذکړیـــــدی د پښتونستان پەدیره اسمیل‌خان بنو، کو هاټ اونورو سیموکی ځای په ځای دپـــاکستان د حکومت پەخلاف اولسی‌باریدنی زیاتی‌شویدی۰ هغه دولتی غونډه چه دپښتونستان په مردان کی دپاکستان واکمن گوند دهغی جو ړ ید ل غوښتل داولسی خلکو لخوا نا کامه کړ ی شوه اودپښتونستان‌پەسیمه کی‌دحـــکو مت لخوا په ناکراری پیدا کولو دبدو یلو په لړ کی دواکمن گوند دمشرانو په وړانـــدی د پاکستان دحکومت پالسی وغند له شوه چـه هغوی دغونډی له ځای شخەپەناکامی‌ووتل۰

**دسلواغی ۱۸ـ۵٤**

دپښتونستان په پیښو رکی دملیدیموکراتیک گوند مشر ښاغلی غلام احمد بلور په پیښور کی په خپله ویناکښی دپاکستان دحکومت پدغه اقدام ډیر بدویلی دی چه دهغه حکومت پولیسو دملی عوامی گونددرئیس خان عبدالو لی خان ماندینه میرمن نسیم ولی بندیخانی ته دهغه سره دملاقات شخه‌منع کړه۰

هغه وویل خان عبدالو لی خان چه پدی وختو کی په راولپنډی کښی په پاکستا نی بندیخانه کی دی هغه ته دماشو مانو پەورتګ بندیز لګول دهغه حکومت غیر قانونی اوغیر جمهوری عمل دی چه خامخا دغندنی وړ دی۰

ښاغلی بلور وویل دغه وخت دپښتون ملت دازمایښت ډیر نازك وخت دی خو تاریخ به یوځل بیاهم داخبره ثابته کړی چه دپښتون اوبلوڅ ملت حقه حقوق هیڅ زور ګیروقوتونو هضم نه‌کړی شول۰

دپښتونستان دهزاری سیمی دبتګرام‌نه‌یوبل خبروایی چه دالایی پەسیمه کی‌دجمعیت‌العلمای اسلام ګوند رئیس‌ښاغلی ممحدنور اوسکرتر ښاغلی مختار رحمان پەیوه ګډه ابلاغیه‌کښی دپاکستان دحکومت لخوا دپښتنو او بلو څو دمشرانو په بی موجبه ګرفتار یو اوبند ی کولو سخت بدویلی دی اوغوښتنه یی کړیده چه‌په مردان کی دجمعیت العلمای اسلام‌ګوند رئیس اودښون حافظ محمد سعید دی سمدستی دبندنه خوشی کړی شی ۰

پەګډه ابلاغیه کی‌ویل شویدی چه‌دپاکستان حکومت غواړی خپل مخالفان په بندیخانو کی واچوی اوپه غیرقانونی اوغیر جمهوری‌دول‌خپل اقتدار تەدوام ورکړی ۰

هغوی ویلی‌دی‌چه حکومت باید دپښتونستان داولس پەمقابل کی پەخپله ناکامی اعتراف وکړی اوپه دغه اثرباید‌استعفی وکړی ۰

**دسلواغی ۱۹ـ۵٤**

دتحریك استقلال ګوند یو مشر ګو هر ایوب پەپیښور کی ویلی دی چی پەباندنیو هیوادونو کی لەمیشته شویو پاکستانیا نـو شخه مالیات اخیستل‌هیڅ جوازنلری ۰

ده وویل چی دپښتونستان دکوهاټ‌مینګوری نورو سیمو نه چی کوم پښتانه دروز ګاردپاره دباندنیو هیوادو ته تللی دی هغوی په ډیر مشکل سره خپل بال‌بچ پاللی شی اودهغوی نەمالیات اخیستل بیخی غلطه خبره ده ۰ هغه وویل چی باید دمالیاتو اخیستلو دپاره دعایداتو یوه خاصه اندازه وټاکلی شی او غریب خلك ددغه مالیاتونه آزادکړی شی۰

ګوهر ایوب وویل چی په غریب او مالدار باندی یوشان مالیات لګول بی انصافی ده دغه مالیات دپاسپورټ‌نه علاوه لەهغو کسانو نـه اخیستل کیږی چی په باندنیو هیوادو کـی کارکوی ۰

دیوبل خبرله مخی دپښتونستان د هزاری سیمی یو فعال ولسی مشر ښاغلی حکیـم فیروز الدین ویلی چی او سنی قیمتـی دحکومت دغلطو پالیسیو لەامله پیداشویده۰

دەویلی دی چی حکومت پەټوله دنیا کی دقیمتی دلیل وړاندی کوی خودا نه ګو ر ی چی په ټوله دنیـاکی دولس عا یـدا ت

خومره دی .

ده وویل چی دقمتی ختمو لو دپاره لازمه ده چی حکومت دبلو چستان حکومت حقدارانو ته ورکړی اوددغه سیمی دفتح کولو دپاره مخصوص شوی پانګی دتر قی اونر خونو د کنترولو لوپه پلانو ولګوی .

لکه چی معلومه شویده . په پاکستان کښی دبلوچستان دنظامی لګښتونو دزیاتوا لـی له امله نرخو نه ډیر جګ شوی اوو لس د ضروری او ارتزاقی مواد و لهقیمتی نهدمشکلاتو سره مخامخ شویدی .

دفرانسپرس آژانس پهیوه خبر کی ریو ټ ورکوی یو فرانسوی پرو فیسور چی دتیـر سپتامبر پهمیاشت کی په بلو چستان کـی تریتم شوی ؤ دپاکستان امنیتی لښکـر و وژلی دی .

پهلندن کی دبلو څو یوه ملی سرتیـری ویلی دی چی دپاکستان نه درارسیدلوریوټونو لهمخی فرانسوی پروفیسور ژان پی یروینـو دپاکستان دامنیتیلښکرواوافرادونیو لیاودجسمی زورو نووروسته یی وژلی دی.

وینو چی پهپاریس کښی دختیځو ژبو او تمدن دانستیتوت پروفیسور دی بلو چستان ته دیولنیز سفر پهوخت کی ورکشوی ؤ په خارج کی دبلو څـو دملی سر تیرو یو تنغړی ویـلی دی چی وینوددی له پاره وژلشویدی چی دپښتنو اوبلو څو دولسو نو دملینهضت چی پاکستان دهغه دځپهکولو په لټه کی دی مسلا تړ کاوه .

### دسلواغی ۲۰ــ۵٤

دپښتونستان دسځاکو ټ خبردیچیپههغه ځای کی دجمعیت العلمای اسلام ګو نـد سکرترجنرال ښاغلی عبدالهاشم خان په یوه ویناکی پهمردانکښی دپاکستان دحکومتلخوا دجمعیت العلما ی اسلامګوند دسکرتر حا فظ ګلرحیم ګرفتاری غندلیده.

هاشم خان ویلی دی چی هغه حکو مت غواړی هرهغه سړی پهبند یخانه کیواچویچه حقوایی اودحق ویلو جرات په تولو پښتنو کی شته او که دحکومت سره دو مرهبندیخانی وی چی ټول پښتانه او بلو څ پکی بندیان کړی نوبیا دخوتنو مشرانو پهبندی کولو هغه مقصد نشی حاصلیدای چی حکومت یـــی حاصلول غواړی .

هغه وویل دپاکستان حکومت باید پد ی خبری هم وپو هیږی چی هیڅ قوت نـــد ی بریالی شوی چه دپښتون ملت دملیمبارزو نهضت دبندیخانـــو په و سیله له پښو وغورځوی .

### دسلواغی ۲۰ــ۵٤

کراچی څخه درویتر دخبر له مخی څوتنو وسله والو افرادو دبلو چستان دپخوا نـی اعلی وزیر عطاء الله مینګل زوی اسد اللـه مینګل چه د۱۹۷۳ کالونه راهیسی پهبنـد ی خانه کیؤ دوی شپی مخکی ژوبل کـړ ی او تښتولی دی .

عطاء الله مینګل څهناڅه دری کاله مخکی دایالتی صدارت له مقام نه بر طرف او دغـه کار ددی سبب شو چه دمینګل دقبیلی افراد

په باــو چستان کی پهٔ له کو له لا س پوری کړی·

ویل کیږی اسدالله مینگل هغه وخت تښتول شوی چه دخپل یوه دوست سره دکور نــه دباندی په موټرکی ناست ؤ اوبر غل کوونکو کسا نــو د ی دموټــر څخــه کو ز کړ او وتښتیده ·

دغه راز ویل کیږی چه داسدالله مینگــل او ده تښتــــو و نکـــو تر منځ ډزی هــم شوی دی ·

## دسلواغی ۲۱ ــ۵٤

دپښتونستان له پیښور څخه یو خبروایی دپیښور پهٔ پوهنتون کی کم رتبه مامو ر ینو غوښتنی کړیدی چه دهغوی غوښتنی دیوی اونۍ پهٔ موده کی ومنل شی او کــه نــه دپوهنتون کم رتبه مامورین به دپښتو نستان دوړو مامورینو له اتحادیی څخه وغواړی چه دحکــو مت په خــلاف په مظاهرو لا س پوری کړی ·

خبروایی دپیښور پوهنتون دکم ر تبــه مامورینو په غوښتنو کی یوه دا غوښتنه هم شامله ده چه دپیښور په پوهنتون کی دی دسند اوپنجاب اوسیدو نکو ته ماموریت نــه ورکول کیږی ·

## دسلواغی ۲۲ــ۵٤

پښتنو او بلوڅــو ته دسند اوپنجاب پــه پوهنتون کی دماموریت اجازه نشته دپیښورد پوهنتون کم رتبه مامورینو ویلــی د ی د پیښور پوهنتون پهٔ کدرکی یوازی پهٔ سلو کی شل کسه پښتانه دی پداسی حال کی چه دسند اوپنجاب پهٔ پوهنتونو اوتعلیمی موسسو کــی یو پښتون اوبلو څ هم نشته ·

دپښتونستان په مانسیره کی دغر یبــو ناروغانو پهٔ روغتون کی زیات شمیر ناروغانو لدی امله دوډۍ اودوانه خوړلو په اعتصاب لاس پوری کړیدی چه پهٔ هغه روغتون کــی ځینی شتمن ناروغان شاملیږی اوهغوی تــه دروغتون دادار ی لخوا ډیر امتیاز و نه ورکول کیــږ ی ·

ناروغانو ویلی دی دروغتون اداره دغریبو ناروغانوسره لازمه همدردی نلری اوتر هغــه وخته پوری پهٔ خپل اعتصاب تهٔ دوام و ر کړی ترڅو ددوی سره ناوړه رویه پای تهٔ ورسی او غوښتنی یی ومنل شی·

## دسلواغی ۲۸ــ۵٤

دپښتونستان له پیښور څخه یو خبروایی چی دپاکستان پولیسو دحکومتی مقاماتو په امرد پښتنو محصلیو گران مشر اودپیښورپوهنتون دپښتنو محصلینو داتحادیی پخوانــی ر ئیس افراسیاب خټک نیولی اوبندی کړی دی·

پهٔ خبر کی ویل شویدی چی ښاغلــی افراسیاب خټک څو ورځی دمخه په اسلا میــه کالــج کی دمحصلینو یوی غونډی ته پهٔ وینا کی دپاکستان حکومت دشیر پاو پهٔ وژلو تورن کړی ؤ ·

دپښتونستان لهٔ دیره اسمعیل خان څخــه پهٔ یوخبر کی ویل شویدی چی دجمعیت العلمای اسلام گوند مشر مولانا مفتی محمود د هغه ځای په جامع جومات کی پهٔ یوه وینا کی ویلی دی چی مونږ یواسلامی نظــــام اوسا لمــی

دیموکراسی دپاره مبارزه کوو اوپدی باورلرو چی زمونږ دغه مبارزه به بریالیتوب ته رسیږی ۰

مولانامفتی محمود دچشمی دکانال پهبا ب پخپله ویناکی وویل چه زمونږ په وړا ندی اوس دامساله نشته چی دچشمی و یا له بهځهوخت جوړه شی بلکه لویه مساله دادهچی داباسین پهاوبو کی به دپښتنو بر خــه څومره وی۰

هغه ویلی دی چی مونږداباسین پهاوبوکی دلس زره اوه مکعبه متره اوبو څخه یوځاځکی کمی اوبههم منو څکه چی دازمو نږیوه روا او قانونی برخه ده ۰

نباغلی مفتی محمود زیاته کړ یده چی په اساسی قانون کی دهر وګړی دحقوقودساتنی ضمانت شویدی خومونږ وینو چی دبندیزونود ۱٤٤ مادی اوپه اساسی قانون کی دترمیمولو پهوسیله دولس ټول حقوق حکو مت غـصب کړیدی ۰

**دسلواغی ۲۹ـ٥٤**

دپاکستان لهکراچی څخه پهیوه خبر کی ویل شویدی چی په هغه ځای کی د ملی دیمو کراتیك ګوند په یوه غونډه کیدګو ند رئیس نباغلی شیر باز مزاری پهیوه ویناکی غوښتنه کړیده چی دسردار عطاء الله خا ن مینګل زوی دراپیدا کو لو دپاره دی حکومتی مقامات سمدستی اقدام وکړی ۰

مزاری ویلی دی چی داسدالله خـانمینګل پهدوستانو باندی بی ځایه ظلم او زور هیڅ ګټه نلری اوباید حکومت دبی ګناه کسا نو دڅورولو په ځای هغه مجرمان ونیسی چــی پخپله حکومت تهمعلوم دی ۰

شیرباز خان مزاری پهمیرمن نسیم و لـی باندی دحکومت له خوا په عامه غونډه کی دوینا کولو بندیز غندلی او غوښتنهیی کړیده چی دغه امرانه او ظالمانه حکم دیسمدستی بیرته واخیستل شی۰

دملی دیمو کراتیك ګوند رئیس دبلوچستان دمسالی دحل لپاره دسیاسی لاری په میند لو زور اچولی اوویلی یی دی چیدمسالیدحل یوازینی لار داده چیبلوڅ مشران لهبند څخه خوشی کړی شی او ددوی سره خـبـر ی اتری وشی ۰

**دکب ۳ـ٥٤**

دپښتونستان په بیلوبیلو سیمو کـــی د پاکستان حکومت پهخلاف دمحصلینو د تا و تریـــخوالی خبرونه دارسیــدلـــی دی ۰ پهیوه وروستی خبر کی ویل شو یدی چهپه پیښور کی دګورنمنت کالجمحصلینودحکومت په خـلاف یوه لویه مظاهره کړی اودمحصلینو پهخلاف می دپاکستان دپولیسو دتشدد سخته غندنه کړیده ۰ پهاسلامیه کالجکیدمحصلینو پهیوه لویه غونډه کی دنباغلی افراسیـــاب خټك دسمدستی پرېښودلو کلکه غوښتنـه شویده ۰

**دکب۳ـ٥٤**

دباندنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مد یریت خبر ورکړ چه افغانستان ته دپناه راوړونکـو بلوڅانو دراتګ په لړ کی پدی وروستیووختو کی څلور اتیا تنونو روبلو ځانو چهښځی او

ماشومان پکی دی دپاکستان دحکومت اوعسکرو دظلم اوتعدیدلاسه افغانستان ته پناه راوړیده .

دافغانی سری میاشتی ټولنی دبلو ځوپناه راوړونکو ددغی نوی ډلی دخوراك اواستوګنی دپاره هم لازم ترتیبات نیولی دی .

**دکب ٤ـ٥٤**

دپښتونستان له پیښور څخه په یوخبر کی ویل شویدی چی دپاکستان پولیسو د ملی دیموکراتیک ګوند هغه غونډه ګډه وډه کړه چه په چوك یاد ګار کی یی جوړه کړی وه ملی دیمو کراتیك ګوند ځوورځی دمخه اعلان کړی وچی په چوك یادګار کی به یوه لویه غو نډه جوړه کړ ی خو پو لیسو دغونډی دترتیبو لو څخه مخکی دچوك یادګار کنترول په خپل لاس کی ونیو او پښتنو ته په خپله مینه کی دغونډی کولو اجازه نه ورکول کیږی .

ښاغلی بلوزویل چی مونږ غواړو دقانون په چوکاټ کی خپله سیاسی مبارزه جاری وساتو خوکه حکومتی مقامات زمونږ دقانونی مبارزی مخنیوی کوی نوبیا په مونږ هم هیڅوك قانون ته په اطاعت کواومجبور نکړیشی.

**دکب ٤ـ٥٤**

دپاکستان دتحریك استقلال ګو ند مشر مارشال اصغرخان دملی عوامی ګو ندد مشرخان عبدالولی خان دبند په باب و یلی دی که چیری دملی عوامی ګوند رئیس دپیپلز ګوند سره همکاری کولی نو په مرکزکښی ورته دوزارت دچوکی پیشنهاد کیده خودنه همکاری په صورت کی دهغه په خلاف دعوا جوړیږی اودسیاسی مبارزی لاره پری بندیزی .

په پښتونستان کی دجمعیت العلما ی اسلام ګوند سکرتر جنرال ښاغلی عبدالباری خا ن په یوه وینا کی ویلی دی که چیری دپاکستان حکومت دآزاد واوبیطرفو انتخاباتو اراده لرلی نو دمخالفو ګوند ونو په سیاسی فعالیت به یی بندیزونه نه لګولی .

ده ویلی دی چه واکمن ګوند په مخالفو ګوند ونو څکه بندیزونه لګوی اودسیاسی مبارزی لار ه یی پر مخ تړی چه غواړی دخپلی خوښی سره سم په غیر دیمو کراتیك ډ و ل اقتدار ته دوام ورکړی .

**دکب ٦ـ٥٤**

دپښتونستان له پیښور څخه په یوه خبر کی ویل شویدی چی دپښتنو محصلینو داتحادیی دزئیس مرستیال ښاغلی سید اختر علی شاه په پښتو ژبه دپښتنو در اوایتو په خلا ف دلو څو اوبرینډ وفلمونو دخپرو لو سخته غندنه کړی اوپه راډیو او تلویزیون کی یی دپښتون قام په سپکاوی بدویلی دی .

اختر علی شاه غوښتنه کړیده چی دفلمونو دسانسور ولو دهیات له ډلی څخه دی هغه کسان وویستل شی چی په پښتون دښمنی مشهور دی .

له پیښور څخه یوبل خبروایی چه دپیښور پوهنتون دمحصلینو داتحادیی په انتخا باتو کښی دریاست کاندید ښاغلی صفدرخان لـه محصلینو څخه غوښتنی دی چی هغوکسانو ته رای ورکړی څوك چی پښتنو محصلینو تـه دخدمت کولو جذبه لری .

په پېښور کې دبېلوبېلو سیاسي ګوندونو په یوه ګډه غونډه کې دحکومت له خوا په غیر دیمو کراتیك ډول دفعالیت دمخنیوی په عمل بدو یل شویدی ۰

دملي دیمو کراتیك تحريك استقلال ا و جماعت اسلامي ګوندونو په غونډه کې خواشیني څرګنده شویده چې حکومت غواړي د خپلو سیاسي مخالفینو په بندی کولو سره خپل اقتدار ته دوام ورکړي ۰

په غونډه کې دملي عوامي ګوند دمشرانو دبندی کیدو غندنه هم شویده ۰

**دکب ٦ـ٥٤**

دپښتونستان دپېښور څخه یوخبروايي چه په هغه ځای کې قبایلي محصلینو دپاکستان دحکومت تورن کړیدی چې دپښتنو محصلینو سره بده رویه کوی اوله دی امله یی داحتجاج په توګه دلو ړی په اعتصاب لا س پـو ر ی کــړ یدی ۰

دپاکستان حکومتي مقاماتو دقبایلي اعتصاب کوونکو محصلینو له ډلي څخه دری تنه نیولی اوبندیان کړي یی دی ۰

له پېښور څخه په یوبل خبر کې ویل شویدی چه دپېښور پو هنتو ن محصلینو دنباغلی ظفر الله په مشر ی په یوه غـو نډه کـــی دپاکستان دحکومت څخه غو ښتنې دی چـــه دپښتنو محصیلنو مشر افراسیاب خټك سمدستي خوشي کړي اودهغه په خلاف جوړې شوی دعواوی بیرته واخلي ۰

په غونډه کې محصلینو خپلو وینا وو کې له خپلو ملګرو دپښتنو محصلینو داتحاد یې لخوا کاندید شو نمایندګانو ته را یــــی ور کـــړ ی ۰

**دکب ١٠ـ٥٤**

درویتر او رادیو بي‌بي‌سي نمایندګانو له اسلام آباد څخه خبر ورکړ یدی چه‌دمخالفو ګوندو نو نمایندګان دپاکستان داسامبلي او سناګډ ی غونډی څخه ددی دپاره وو تـــل چه‌دوی ته‌اجازه ورنکړ ی شوه چه‌په‌بلوچستان کی دفدرالي حکومت داوږدیدود مربوطي‌لايحی په‌باب‌خپلی‌نظریی څرګندی کړی ۰

دمخالفو ګوند ونودغړیو درئیس کفیـــــل ښاغلي مفتي محمود ورروسته له هغه چـــه دمخالفو ګوندو نو دپنځلسو تنو غړیو پـــه مشری له دغو غونډو څخه ووت اخبارو‌الاو ته وویل حکومت دده دوینا مخه نیو لی ا ود پاکستان پارلمان دشخړو ډګه‌بڼه‌غوره‌کړیده۰

مولانامفتي محمود وویل چه دمخالفوګوندونو په‌نظریه بلو چستان کښی دمر کزی حکو مت له‌خوا دفدرالي حکومت تپل دديمو کـــــراسي مخالف اوداياالتي کو رني خود مخـــــتاری د پرنسيپ خلاف کاردی اودنظامي حکومت تپل بلل کیږی درویتر اوبي‌بي‌سي نمایندګا نـــو څرګند ه کړیده چه‌په بلوچستان کی‌دفدرالي حکومت داوږدیدودلايحی دطرحه کیدو په‌وخت کی دپیپلز پارټۍ دنما یندګانو اودمخالفـــو ګوندو نو دنمایندګانو تر منـځ سختی‌ناندری ووهل شوی او دغونډ و فضابیخي ګډ و ډه شوه ۰

څنګه چه دپیپلز پارټۍ نماینده او حتی د کابینی وزیران دمخالفو ګوندو نو دنمایندګانو

دنظر دخر گندو لو مخه نیسی‌نو **مولانا مفتی** محمود اودهغه ملگری دغو ندی **دتالار څخه** ووتل ۰

دمخالفینو دوتلو وروسته **دپیپلز پار ټی** غړیو په‌بلو **چستان کی دحکومتی مقرراتو د** دوو میاشتو داوږدیدو **په طر فداری را یـه** ور کـړ ه ۰

دروېتر نمایده **ویلی‌دی چه له‌دریو کالـو** راهیسی په بلو **چستان کی دپاکستان دوسله** والپوځ اوبلوځ‌قبایلوترمنځ‌جګړه **روانه ده او** څه موده مخکی **دپاکستان صدر اعظم‌ذوالفقار** علی بوتو پدغه ایالت کی **دپیپلز پارتـــی** حکومت دبی لیاقتی اوبی **کفایتی په تـــور** برطرف کړ اوپدغه ځای کی یی **دنظامی حکومت** مقررات نافـــذ **کړل** ۰

دروېتر دنماینده **په‌قول په‌اسلام آبادکښی** سیاسی منابعو **ویلی دی چه بنبایی مخا لف** گوند ونه دپاکستان **داسامبلی اوسنا لـــه** پسرلنیو غونډوسره **چه تاکل شوی وه‌پیل‌شی** هم پریکړه‌وکړی۰

دمخالفو گوندو نو **نمایندگانو له‌یو کـال** را هیسی دپاکستان **دپارلمان دزیاتر وغونډو** سره دپاکستان **دحکومت ددغی پالیسی پــه** خــلاف داعتراض **په‌نامه چه دپارلمان پــه** چارو کی‌**دمخالفینوداغیزمنی غو ندی مخـه** دی ونیسی پریکړه‌کړی وه اوپه‌گډه غونډه‌کی یی یوازی ددی دپاره برخه **اخستی‌وه چــه** خلك دبلو چستان دحالا تو په **حقایقو باندی** خبر کړی ۰

پدغه ایالت کی **دنـظامی حکومت د تېـل** کیدو سره مخالفت وکړی ۰ **کټونکو ویلی‌دی** چه‌مخالف گوندونه **دبلوچستان په‌ایالتی‌پارلمان** کی اکثریت لری اوتر **۱۹۷٤ کال پو ر ی** ددغه ایالت حکومت ددوی په‌لاس‌کی‌ؤ۰

په همدغه کال کی **دپاکستان** صدراعظم د اکثریت حکو مت **په‌خپله بر طر ف کړاو څه** مـو ده و ر و سته یی پــد غــه سیمه‌کی دپیپلز پارتی حکومت جوړ کړ خو دخپل **گوند** حکومت یی هم پدی وروستیووختو کی یی بلوچستان کی دفدرالی حکو مت‌مقررات نافذ کړل ۰

**دکب ۱۱ـ٥٤**

په پیښور کی دجمعیت العلمای اسلام‌گوند امیر مولانامحمد ایوب بنوری اوایالتی سکرتر جنرال سیدزاده عبدالباری **خان** په یو گـډ بیان کی **دپاکستان** له‌حکومت څخه غوښتنی‌دی چی دراتلو نکو عمومی انتخا باتو دسر تـــه رسولو دپاره **دمخالفو گوندو** نو مقدما تـــی شرایط **ومنی** ۰

په گډبیان **کی‌ویل شویدی چی په‌مخا لفو** گوندونو باندی دسیاسی‌مبارزی **لاره** تړل به خطرناکی نتیجی **ولری په‌بیان کی غو ښتنه** شویده چی داسامبلو **تول بندیان شوی غړی** خوشی کړی شی **اوله تولو سیمو څخه د ی** دبند یزونو **۱٤٤ ماده سمدستی لیری‌شی۰**

دپښتونستان **دملا کنډ** دسیمی **په‌سخاکوټ** کی دجمعیت العلمای اسلام **گوند په‌یوه‌غونډه** کی دپاکستان **دحکومت په‌ناوړو پالیسیوسخت** بدویل **شویدی** ۰

په‌غونډه کی دپاکستان له‌حکومت‌څخه په‌کلکه غوښتنه شویده چی دبندیزونو ۱۴٤ ماده‌لیری کړی په‌اساسی قانون کی په‌یوه اړخیز ډول شوی ترمیمونه بیرته واخلی ټول سیاسی بندیان خوشی کړی اودعمومی انتخاباتو د سرته رسولودپاره حکومت استعفی‌وکړی.

دپاکستان له‌اسلام آباد څخه په‌یوه خبرکی ویل شویدی چه دسنا اومرکزی اسامبلی په ګډه غونډه کښی دمخالف ګوند و کیـلان‌له‌دی امله له غونډی سره پریکړ ی کولوته اړشول چه دمداخیلواومحمود خیلو وزیر و تر مینځ نښو د چی خپله بشپړه‌وینا واوروی.

هغه وخت چه‌مولانامفتی محمود په‌بلوچستان کی دپاکستان دنظامی قواوو دبیرحمانه عملیاتو یادونه وکړه اوغوښتل یی چه ددغو عملیاتو څخه پرده پورته کړی دواکمن ګوند غړو له هغه څخه وغوښتل چه چه‌په بلوچستان کی دپوځی عملیاتوپه باب خبری ونکړی اودهغه وینایی ګډه وډه‌کړه .

دپاکستان دسنا اومر کزی اسامبلی‌په‌غونډه دحکومتونو په بدلولو انتقاد کړی اوویلی‌یی دی چه په هغه ایالت کی داکثریت‌دیوداسی حکومت رنګول چه‌ټول غړی یی دولس‌منتخب نمایندګان وواوپه‌ځای‌یی دپرله پسی‌فیوډالانو ټاکل چه دولس سره هیڅ ډول اړیکی‌نلری لویه اشتباه وه .

شوکت حیات په‌خپله ویناکی ویلی دی چه دپاکستان حکومت باید دبلو چستان دمسئلی دحل یوازینی لاره داده چه‌په‌بلو چستان کی داکثریت منتخب حکومت بیا جوړشی.

**دکب ۱۲ــ ٥٤**

دپښتونستان په نوښار کی دپـاکستان پولیسو هغه محصلین په کوتکو و هلـی دی چه دځپلو استادانو دغوښتنو په‌ملاتړ یی په‌مظاهرو لاس پوری کړی و.

خبروایی چی دپاکستان پولیسو دمحصلینو یوتن مشر بندی کړی اوسختی شکنجی یی ورکړیدی . په نوښار کی استادانو دمحصلینو سره دپولیسو بده رویه غندلی او له‌حکومتی مقاماتو څخه یی غوښتی دی چه هغه پولیس محاکمه کړی چه‌په محصلینو یی ظلم‌او‌تیری کړیدی .

دپاکستان داسلام آباد څخه یو خبر وایی چه‌په مرکزی اسامبله کی دمخالف ګوند مشر مولانامفتی محمود داسامبلی دغونـډی سر ه دپریکړی اعلانولو نه دمخه په‌خپله وینا کی ویلی دی‌چه په بلو چستان کی دحکو مت چاری غیر قانونی دی .

په خبر کی ویل شویدی چه‌په مر کز ی اسامبله کی دواکمن ګوند غړو دمولانا مفتی محمود وینا ګډه وډه کړی اوهغه ته‌یی‌اجازه نده ورکړی‌چه‌خپلی خبری پای ته‌ورسوی.

داسامبلی سره دمخالف‌ګوند مشرانوښاغلو شوکت حیات خان ،خورشید علی خان اواحمد رضا قصوری هم په‌بلوچستان کی‌دپاکستان دحکومت ناوړه اقدامات غندلی اوویلی‌یی‌دی چه‌په بلو چستان کی دپاکستان‌دحکومت‌دټولو اقداماتو مقصد داوو چه هلته ایالتی‌حکو مت ختم کړی اودچار وواك په خپل لا س‌کـی ونیسی.

**دکب ۱۶ـ۵٤**

دپښتونستان له وزیرستان څخه په یوخبر کی ویل شویدی چه دمداخیلووزیرو اومحمود خیلو په‌سیمه کی ټول سرکونه دپاکستاند ترافیکو په‌مخ تړل شوی اودهغه‌حکومت په خلاف ولسی فعالت روان دی ٠

خبروایی دپاکستان حکومت کو ښښ کاوه چه دمداخیلو اومحمود خیلو وزیرو تر مینځ کورنی شخړی پیداکړی او پښتانه‌دپښتنوسره وجنگوی خودهغی سیمی مشران او ځوانانډ پاکستان دحکومت په‌دسیسه پوهیدلی اودهغه حکومت په ضد یی سخته مبارزه پیـــل کــړیده ٠

خبر زیاتوی چه تیره ورځ په‌سپین‌کلی کی ملی مبارزینو دپاکستان دملیشاوو په کمپ بریدکړی اوزیات مالی اودسر تاوان یـــی وراړولی دی٠

**دکب ۱۶ـ۵٤**

دپښتونستان له پیښور څخه یو خبروایـی چه داد وارد کالج داداری له‌خواله کالج‌څخه دمحصلینو داتحادیی درئیس ښاغلی محمدخالد خان په‌ایستلو په محصلینو کی تاوتریخوالی زیات شویدی ٠

په‌خبر کی ویل شویدی چه‌کالـج داداری له‌دغه عمل سره دمخالفت په اثردمحصلینود اتحادیی ټولو غړو احتجاج په‌توگه‌استعفا وی کړیدی ٠

دپیښور پوهنتون دمحصلینو داتحادیی‌نوی منتخب رئیس ښاغلی صفدرخان په‌یوه ویناکی له‌ادوارد کالـج څخه دمحصلینو داتحاد یـی درئیس په‌ایستلو خواشینی څرگنده کړی‌او په‌کالج کی‌یی دهغه دبیا شاملو لوغوښتنـه کــړیده ٠

دپښتونستان له‌دیره اسمعیل خان څخـــه دیورا رسیدلی خبر له مخی دهغه ځای‌دکالج محصلینو دحکومت په‌خلاف په‌اعتصاب لاس پوری کړی ٠

دمحصلینو داتحادیی لخوا په یو خپورشوی بیان کی دنورو سیمو دمحصلینو څخه غوښتنه شویدی چه دحکومت دناوړو چارو په خلاف سخته مبارزه وکړی٠

**دکب ۱۷ـ۵٤**

دپښتونستان دباجوړ څخه په‌یوه‌خبر کی ویل شویدی چی دسالارزو دبرسدین،لرسدین برامدك، لرامدك اودماموند و وریازو، بروزواو برمکازو ولس دوړ و ماموند وپه خړکمرنومی ځای کی یوه درنده ولسی غونډه کړی وه‌اوپه هغی کی دپښتنو اوبلو څو دملی حقوقو په‌باب جذابی ویناوی شویدی٠

ولسی مشرانو غونډی ته‌په خپلو ویناووکی سپارښتنی وکړی چی باید دهغه ځای و لس ټولی خپل مینځی بی اتفاقی شاته وغورځوی اودپاکستانی حکومت په‌مقابل کی سره‌یوموټی شی ٠ له‌باجوړ څخه په‌یوبل خبر کی ویل شویدی چی په‌پالنگ نومی ځای کی‌دماموندو او سالارزوولس یوه بله درنده ولسی غونډه هم کړی وه چی په‌هغی کی‌ولسی‌مشرانو د پښتنو اوبلو څو په‌سیمو کی دپاکستان د حکومت په دسیسو رڼا اچولی اوولس یـــی یووالی او اتحادته رابللی دی ٠

خبروایی دپالنگت پهولسی غونډه کې په زرونو خلکو ګډون کړی وواودپاکستان پهحکومت باندی داحتجاج پهعنوان یی توربیرغونهپورته کړی وو.

**دکب ۱۸ـ۵٤**

دملی دیمو کراتیك ګوند مشر ښاغلـــی شیر بازخان مزاری دمدافع وکیلانو پهغونډه کې چیزیات شمیر و لسی خلکو هم پکـی ګډونکړی ؤ دبلوچستان دمسئلی په باب پهخپله وینا کی ویلی دی ددی په ځایچی دپاکستان حکومت دبلوچستان مسئله پـــه دیمو کراتیك ډول حل کړی وایله قـــوی ځخه یی کار واخیست اوپه بلو چستان کییی دپنجاب خلاف کرکه زیاته کړه چی دغه کاریی په بنګله دیش کی همکړی وو.

**دکب ۱۹ـ۵٤**

دپښتونستان له باجوړ ځخه را رسیدلـی خبروایی چیداتمانخیلو دو لس ملی مبارزینو پههغه پاکستانی تحصیلدار ډزی کړ یدیچی غوښتل یی داتمانخیلو دسیمی ماڼودیرینومی ځای تهلاړشی .

پهخبر کیویل شویدی چی دملی مبارزینو ډزو په اثر پاکستانی تحصیلدار او د هغـــه ملګری پهشا تګ تهاړ کړی شویدی. خبـــر زیاتوی په پاکستانی تحصیلدار باندی له ډزو کولو ځخه وروسته داتمانخیلو ولس یوهدرنه ولسی غونډه کی دپاکستان لهحکومت ځخـــه وغوښتل چی دپښتنو اوبلو ځوپهسیمو کیله هرډول مداخلی ځخهډډه وکړ ی اوپښتانهبلوځ سیاسی بندیان خوشیکړی .

**دکب ۲۰ـ۵٤**

دپښتونستان لهمردان ځخه پهیو خبر کی ویل شویدی چهدملی دیمو کراتیك ګو ند یوتن مشر ښاغلی غلام محمد بلور یویغونډی تهپه ویناکی ویلی دی چه باید پښتانه د دیمو کراسی دمنځ ته راوړلو اودخپلو حقـه حقوقو دګټلو دپاره فعاله مبارزه وکړی.

بلور ویلی دی دملی دیمو کراتیك ګوند دریـځ روښانه او ځرګند دی اوهغه داچه دپاکستان دحکومت دغیر جمهوری و لسدښمنه چارو مقابلهکوی او دولسی حقوقوګټلودپاره بهپهمیړانه مبارزه وکړی .

بلور زیاته کړیده چه دپاکستان حکومت د جمهور یت له اواز ځخه سخت ویریږی نـو ځکه په ټو لو هغو خلکـــو مـظـــا لـم کویچه دجمهوریت ټینګو لودپاره هلی ځلـی کو ی .

ښاغلی بلور دپیښور پوهنتون دمحصلینو داتحادیی پهانتخا باتو کی دپښتنو محصلینو بریالیتوب ته اشاره کړی او ویلی یی دی چه دپښتنو محصلینو دغه بریالیتوب دد ی ښبه دهچه دپښتون ځوان نسل دپـا کستان دواکدارانو پهدرو غجنو وعدونه تیروزی او دخپلو حقوقو دګټلو دپاره هرډول قر بانی تهتیاردی .

**دکب ۲۵ـ۵٤**

دباندنیو چارو دوزارت داطلاعاتو مدیریت خبر راکړی چی افغانستان ته دبلو ځـــودپناه راوړونکو درارسیدو په لړکی پهدی وروستیو وختو کی اوه ځلو پینځ تنو تورو بلو ځو

چه نارینه او ښځې پکښې شاملې دي دپاکستان دحکومت دظلم او تیری له امله دافغانستان خاوری ته پناه راوړی دی د افغانی سرې میاشتې ټولنې د بلوڅو دپناه راوړونکو ددغی نوی ډلې داعاشې او اباتې له پاره هم لازم ترتیبات نیولی دی .

**دکب ۲۶ـ۵۴**

دپښتونستان په کوهاټ کې دملی دیموکراتیک گوند رئیس نذیرخان شینواری په یوه وینا کې ویلی دی چه دملی دیموکراتیک گوند به ددیمو کراسی دمینځ ته راوړلو په لاره کې دهرډول ظلم اوزور مقابله وکړی .

ښاغلی نذیرخان ویلی دی دپاکستان حکومت په هیڅ ډول نشی کولی چه دملی دیموکراتیک گوند غړی دولس دحقوقو دلاس ته راوړلو دپاره له مبارزی څخه واوړی.

دپښتونستان ددیره اسمعیل خان دگومل پوهنتون دمحصلینو داتحادیی یو تن مشر محمد خورشید په یوه وینا کښی ویلی دی چه دپښتنو پوهنتون دمحصلینو داتحادیی په انتخاباتو کې دپښتنو محصلینو بریالیتوب یوه مهمه پیښه ده .

ده ویلی دی دانتخاباتو له نتیجی څخه څرگنده شویده چه پښتنانه اوس ویښ او بیدار دی اود پاکستان حکمرانی ټولی باید دپښتنو ملی حقوق ومنی .

**دکب ۲۸ـ۵۴**

دپوهنی دوزارت دوهم معین او په پاکستان کې دسیرت النبی (ص) په جرگه کې دافغانی هیات رئیس ښاغلی وفی الله سمیعی ددغی جرگی په غونډه وکی دبرخی اخیستو وروسته کابل ته راورسید .

ښاغلی سمیعی دباختر آژانس له نماینده سره دیوی مرکی په ترځ کې دپاکستان دمطبوعاتو او رادیو ددغو رپوټونو په باب چه دپاکستان صدراعظم ښاغلی بوټو په جرگه کې دبرخه والو په ویاړ په یوی میلمستیا کې ویلی ؤ چه پاکستان دافغانستان سره دښمنی نلری بلکه افغانستان له پاکستان سره خصومت لری ی پداسی حال کې چه پاکستان دافغانستان دپاره زیاتی ترانزیتی اسانتیا وی برابری کړیدی وویل . له بده مرغه دپاکستان صدر اعظم دغه شان خبره کړیده خو تعجب کوی چه د پاکستان مطبوعاتو اوراډیو افغانی هیات د رئیس وینا دخپرو لو څخه چه په همغه مجلس کې یی دجرگی دټولو برخه والو په وړاندې د پاکستان دصدراعظم دوینا وروسته وکړه ډډه کړیده .

ښاغلی سمیعی څرگنده کړه چه دافغانی هیأت رئیس دپاکستان دصدراعظم دوینا دختمیدو وروسته سملاسی داسی ځواب ورکړ.

خواشینی یم چه مجبور شوی یم دافغانستان په باب دپاکستان دښاغلی محترم صدر اعظم

وينا بيخي رده كړم اوبى اساسه يى وبولم. افغانستان دتاريخ پهشهادت يوسولهدو ست هيواد دى اوتل يى په روغه جوړه كى دګډژوند اودخبر ودلارى داختلافونو دلرى كيدو داصول سره پوره پابندى اواحترام ښودلى دى لكهچه دافغانستان اوپاكستان تر منځ ديوا ځينى سياسى اختلاف دحل پهباب يى هم تل نظر اوتيارى څرګند كړى چهدغه اختلاف دخبرواو دورانديشى دلارى اوپه پراخ نظـرحل شى خوله بده مرغه دپاكستان حكومت دافغانستان دغه دريځ اونظرته هيڅ وخت مثبت ځـواب ندى ويلى .

دپاكستان ښاغلى محترم صدراعظم ! تاسى پخوا پهكانګرس كى پخپله ويناكى وويل : چه دسيرت النبى كانګرس دهيڅ ډول سياسى ګټى اخيستلو دپاره ندى جوړ شوى څومره بهپه ځاى اومو زونهواى كهچيرى پخپلهتاسى پخپلى دغى خبرى باندى عمل كړى واىاو له هرډول سياسى څرګندونى مو ډډه كړىواى اوياځه ناځه داسلامى ورورګلو ى اوميـنـى دروحيى سره موسم ويلى واى چه غـواړى دافغانستان اوپاكستان ترمينځ يوا ځينـى سياسى اختلاف دواقع بينى او دورانديشى دلارى او ددوستانه او ورورګلو ى دخبرو په وسيله دىحلشى .

زماپهعقيده پدغهوخت كىچهداسلامى نړ ى سترعالمان دحضرت محمدصلى الله عليهوسلم دسيرت دنمانځنى دپاره دلته راټولشوىلازمه نهوه ددغهشان سياسى مسالو او هغه هـــم دسياسى ګټى اخيستو پهمقصد څهويلشوى واى . زه ددغهكانګرسددرناوى پهخاطرنهغواړم تردى زيات ددغى موضوع پهباب څه ووايـم اوښاغلى صدراعظم ستاسى ددغىميلمه پالنى څخه تشكركوم .

ښاغلىسميعى زياته كړه : چهدپاكستاند صدراعظم ويناته دافغانى هيات درئيسځوا ب پهغوږنيوه كى دټولو حاضرو عالمانو پهاوږدو چكچكو سره بدرګهشو اودبيلو بيلو هيا تو نو رئيسانو دافغانى هيأت دريځ وستايهلههغه كانګرس څخه يىسياسى ګټهاخيستل چـه د حضرت سرور كائناتمحمد صلىاللهعليهوسلم دسيرت دنمانځنى اودرناوى دپاره جوړشوىؤ وغندل اوبديى پرى وويل .

ديوهنى دوزار ت د و هـــم معيـــن دباختر نماينده ددغى پوښتنى په ځواب كى چهلكه څنګه چهاوريدلى شوى داسلام پهباب دښاغلى بوتو دوينا پهيرى برخى باندى انتقاد وشووويل : دپاكستان ښاغلى صدر ا عـظم پخپله ويناكى داسلام دسپيڅلى دين دمربوطو ټكوسره تماس ونيواو پخپلو تفصيلاتو كى يى زياتى اشتباه ګانى وكړى چه په همغهمجلس كى دكويټ ددولت دشئونو وزير ښا غلـــى يوسف هاشم الرفاعى له خواپه ډاګه پـــرى انتقاد وشو اورديى كړل .

دښاغلی الرفاعی ویناداسلام دنورو عالمانو له خواپه اوږدو چکچکو سره بدرګه شوه .

ښاغلی سمیعی وویل چه ښاغلی بوتودافغانی هیات درئیس په ځواب اودکویټ ددولت دښئونو دوزیرپه تبصره کی بی ځوابه پاتی شو .

**دکب ۳۰ـ۵٤**

دپښتونستان له پیښور څخه یوخبر وایی چی په پښتونستان کی دملی دیموکراتیک ګوند مشر ښاغلی غلام احمد بلورپه یوه وینا کیویلی دی دپیښور پوهنتون دمحصلینو د اتحادیی په انتخاباتوکی د پښتنو محصلینو بریالیتوب وښودله چی پښتانه اوس بیداردی اودخپلو حقوقو دلاس ته راوړلو دپاره کلکه مبارزه کوی .

ده ویلی دی کـــه څـوتنه د شخصـــی غرضونو خاوندان دمبارزینو له قطار څخـــه ووځی داځه دناامیدۍ وړخبره نده بلکه‌دغسی خلکو یوخواته کیدل اوپیژندنه دملی‌مبارزینو په ګټه ده .

بلور دپاکستان دحکومت له خوا دمخالفو ګوندونو په خلاف له تبلیغاتی وسیلو څخه په بوارخیزتوګه استفاده کول هم غندلی دی .

دپښتونستان له دیره اسماعیل خان څخه په یو خبرکی ویل شویدی چی دپښتونستان په بندیخانوکی دپیپلز ګوند هغو غړوداوړی په اعتصاب لاس پوری کړیدی چی له‌مرکزی قیادت سره دمخالفت په‌وجه بندیان شوی وو.

**دوری ۲ـ۱۳۵۵**

د پښتونستان په مانسیره کــی دتحریـک استقلال ګوندیو مشر فیاض حسین په یوه ویناکی ویلی دی چه‌په پښتونستان کـــــی دپاکستان دمرکزی حکومت نماینده حکو مت دمرکزپه لارښوونه غواړی چه‌په اری پور کی دتیلفون کارخانه له هغه ځای څخه لیـری کړی .

ده ویلی دی دپاکستان حکومتی مقامات دتیلفون کارخانه دپروژی دناکامی په پلمه بل ځای ته انتقالوی اوزیانه کړی یی ده چــــه حکومت ټول پروپاګند ونه غولوونکی دی .

**دوری ۲ـ۵۵**

په هغو پیغامونوکی چی دپښتونستان ا و بلوچستان دمشرانو لــــــه خوارارسیدلی دی دپښتونستان‌دباجوړ،سلارزو،ماموندو، چارمنګ،او اتمانخیلو مشرانو دخیبرشینوارو ، اپریـدو

ورکزیواو پروخمکنو مشرانو دمومندو دټولو قبیلو مشرانو دوزیرستان وزیرو، مسیدو ، بیټنو اودکورمی دسیمی مشرانو همدغه شان دبلوچستان بلوڅو اوپښتنو مشرانو د خپلو خلکو په نمایندګی اوهمدارنګه په افغانستان کی دپښتونستان اوبلوچستان اوسیدونکــــو پښتنو اوبلوڅو مشرانو دنیکمرغه نوی کال په مناسبت ددولت درئیس او صدراعظم‌ښاغلی محمدداؤد حضور دکابینی اومرکزی کمیټـــی غړیو دافغان جمهوری اردوجنرالانو افغا نــی ورونوته دزړه له اخلاصه مبارکی ویلی او‌له پاك خدای نه یی زمونږ دستر ملی لارښود ښاغلی محمدداؤد ترقیادت لاندی دافغانستان دزیاتی لوړتیا اودافغان ولس دزیاتی هوساینی هیله کړیده .

## دوری ٤ـ٥٥

دجمعیت العلمای اسلام گوندمشرمولانامفتی محمود دپښتونستان په بنوکی یوی غونډی ته ویلی دی چه دپاکستان اوسنی حکـــومت د جمهوریت اواسلام له نومو څخه خپلوناوړو سیاسی غرضونو ته درسیدلو دپاره ګټه‌اخلی اوپه‌حقیقت کی هغه حکومت له جمهوریـــت اواسلام سره څه مینه نه‌لری .

ښاغلی مفتی محمودویلی دی دپاکستا ن واکداران نشی‌کولی چه‌په نمایشی کنفرانسو باندی ولس تیرباسی اوپه خپلو ناوړوچارو پرده واچوی . مفتی محمود دبندیزونو د١٤٤ مادی په انفاذ باندی دانتقاد په ترڅ کی ویلی دی چه‌په ټولو سیموکی دابندیزونو دمادی نافذول دا ثابتوی چه ولس دپاکستان دحکومت څخه کرکه کوی اوهغه حکومت غواړی چه‌په زوراو جبرخپل اقتدارته دوام ورکړی .

مولانامفتی محمود په خپله ویناکی له‌ولس څخه غوښتی دی چه دحکمران گوند دغیـــر دیموکراتیکو چارو دمخنیوی دپاره دمخالفـو گوندونو دمبارزی کلک ملاتړ وکړی .

## دوری ٥ـ٥٥

ښاغلی محمدداؤد ددولت رئیس اوصدراعظم په‌هغه مرکه چه‌په اسلام آبادکی درویترخبر رسوونکی آژانس له خبریال ښاغلی گراهام ستیوارت سره دوری په پنځمه ١٣٥٥ په‌کابل کښی وکړه دافغانستان اوپاکستان تر مینځ دیواخښی سیاسی‌اختلاف په باب درویترخبریال سوالونه ته داسی ځواب ورکړ :

پوښتنه ـ ددولت ښاغلی‌رئیس ! دپاکستان صدراعظم ښاغلی بوتوپه‌دی وروستیو وختوکی وویل چه پاکستان له افغانستان سره کـوم اختلاف نلری اودافغانستان دی چه‌دپاکستان سره اختلاف لری ـ په دقیق ډول دپاکستان سره ستاسی اختلاف څه دی ؟

**ځواب ـ لکه څنګه چه تاسی خبر یاست دپاکستان ښاغلی صدراعظم دغه ادعاپه‌کراچۍ کی دسیرت النبی (ص) دکانګرس دجوړیدو په مناسبت په یوه ټولنه کی کړی او ښــه معلومه ده چه له‌دغه شان بی ځایه اوبی‌ساسه ادعا څخه دهغه مقصدله دغی ټولنــی څخـه سیاسی استفاده کول دی . چه‌هغه دافغانستان نماینده په همغه ټولنه‌کی رده کړیده .**

**ستاسی دپوښتنی دوروستی برخی په باب کی باید ووایم چه‌په دقیق ډول دپاکستان‌سره زمونږ اختلاف دپښتنو اوبلو څو خلکو له‌حقه حقوقو څخه ملاتړ دی داختلاف اصلی جرړی څه په‌هغه کی دبرتانوی استعمار په‌وخت‌کی له‌انګلیس اوځه‌نن دپاکستان سره همدغه‌قضیه وه اوده •**

پوښتنه ـ **دغه اختلاف څنګه حل کیدی‌شی** چه‌هم ددواړو هیواد دورضایت حاصل شی‌اوهم دسیمی سوله تضمین‌شی ؟

**ځواب ـ افغانستان عقیده لری اوخپل دغه نظریی بیابیا څرګندکړی دی چه دحل‌د لاری دلټولو ډیره ښه لار ددغه سیاسی اختلاف په باب ددواړو هیواد وتر منځ‌خبری دی•**

**زمونږپه نظر ، دنظرپه پراخوالی‌اوواقعبینی‌او دور اندیشی سره دحل دغه شان‌رضائیت‌سبب وی پیدا کیدی شی•**

پوښتنه ـ څه‌ډول ابتکارکولی‌شی‌چه‌دغه‌پنډو سکه په‌حرکت راولی ؟

ځواب ـ یوازی ددواړو خواواخلاقی جرأت اودیو بل‌په نسبت دهر ډول شك اوتردیدلری کیدل اوپه‌پای کی ددواړوخواشه‌نیت•

پوښتنه ـ اوسنی وچ کلك شرایط یودوه اړخیز ابتکار غواړی په‌اسلام آباد کی و یل کیږی چه‌په فضا کی‌یو ابتکار شته ؟

ځواب ـ مونږ‌هم هغه اورو •

پوښتنه ـ کمان‌کوم که‌چیری نوی ابتکار په‌منځ کی وی امکان شته په‌هغه باندی خبر شوی یاست اواحتمال لری دغه ابتکار دکوم دوست له خوا شوی وی مهربانی وکړی‌پدغه باره کی‌رڼاواچوی ؟

ځواب ـ ځنګه چه تاسی په‌زیات مناسب موقعیت کی یاست اوپه اسلام آبادکی‌اوسیږی کولی‌شی چه‌مونږ هم په‌هغه باندی‌خبرکړی•

پوښتنه ـ دابه دحیرانتیا وړنه‌وی‌چه پاکستان ته‌چه دایران دشاه دسفر څخه وروسته‌دغه‌شان اوازه خپره‌شی اوزمونږ سره یی دغه نظرپیدا کړ یدی چه‌بنایی دهغی هیلی له‌مخی چه‌دایران پاچایی دسیمی دسو لی دپاره لری دغه شان ابتکار تر لاس لاندی وی ؟

ځواب ـ که په‌خپلوکښی‌یی خبری‌کړی وی مونږ پری خبرنه یو لکه ځنګه چه موتل ویلی دی‌یوځل بیاټینګارکووچه‌مونږدخبروڅخه انکار نلرو البته داچه خبری نتیجه ورکو ی او که‌نه ؟ دخبرو په‌طرز ددواړو خواو په‌سلوك اوښه نظرپوری اړه‌لری•

پوښتنه ـ ښاغلی بوتو پخوا ویلی ودی ته‌چمتو دی دخبرو دپاره افغانستان ته‌راشی پدغه برخه کی ستاسی نظر څه‌دی ؟

ځواب ـ افغانستان ته‌دسفر دپاره دښاغلی بوتو دتمایل په‌صورت کی هیڅ مانع‌نه‌وینو•

پوښتنه ـ آیاکوم بلنلیك استول‌شویدی؟

ځواب ـ نه دالو مړی ځل دی چه دغه شان مطلب اورم خوکه چیری ښاغلی بوتوغوښتی وی‌په‌منځ‌کی هیڅ خنډ نشته •

## دوری ۷ـ۵۵

دپښتونستان له‌وزیرستان څخه په‌یوخبر کی ویل شویدی چه‌تیره اوونۍ بیټنو ولس دښاغلی الحاج علی محمد بیټنی په‌مشری‌یوه درنه ولسی غونډه کړی اوپه هغی‌کښی ولسی مشرانو په‌خپلوجذابو وینا وو کی په‌پښتنو اوبلو څو باندی دپاکستانی حکومت په‌مظالمو رڼا اچولی اودملی یووالی سپار ښتنی یی کړیدی غونډه دمولانا جمیل خان له‌خوادقرآن پاك دمبارکو آیتو نوپه تلاوت پیل شوی او وروسته ښاغلو قطب خان ، ملك سرورجان ملك شیراز خان ملك ستانه محمد خان ملك امل خان، ملك زرولی خان ،میرزاخان ،ملك خان میرخان، ملك‌میرات خان، ملك حبیب‌الله خان، خلیفه ذکیم خان، ملك شیومخان، کاظم خان، ډاکترګل جانان، شیخ خدر خان اونورو په‌خپل وار اوږدی ویناوی کړیدی •

دغونډی په‌پای کی‌دغه پریکړه‌درایو په‌اتفاق تصویب شوه•

۱ـ مونږ په‌یواتفاق داتعهد کووچه په‌هره ذریعه وی خپله حقه حقوق‌کټو•

۲ـ دپاکستان دحکومت له‌خواچه‌دپښتونستان

اوبلوچستان پەخاوره باندی خومره حملــــی شویدی ــدا ثابتوی چەدپاکستان او سنـــی حکومت مونږ حقیقی اویقینی دښمن دی او زمونږ دتباهی اوبربادی‌لەپاره یی ملاتړلی‌ده.

۳ــدپاکستان دحکومت داتجاوز کارانه او ددښمنی نەډك حرکات زمونږ دټولو ولسونو دډیر ژور خفگان سبب گرزیدلی ،پەهــمدی اساس دپاکستان حکومت ددغو تجاوزونو او دبدو نتیجو مسؤل‌گڼو.

٤ــ دپاکستانی حکومت دفضایی او ځمکنیو وسایلو پەذریعه چه زمونږ دمقدسومقاماتو وړانول ـــدملی مجاهدینو شهادت او ددینی کتابونو بی حرمتی دهر پښتون دپارەدشرم پولوی پیغور دی او داموږ پەهیــــڅ ډول نشو منلی .

٥ــمونږ یو ځل بیادپاکستان حکومت تـــه اخطار ورکوو چه دپښتنو اوبلوڅو خاوره کی دمداخلی نه ډډه وکړی اوکنەدهری‌بدی‌نتیجی مسؤل بەپه خپله پاکستانی حکومت‌وی.

دوری ۷ــ۵۵

دپښتونستان‌دسوات لەمینگوری څخه پەیو خبرکی ویل شوی دی چەپه هغه ځای کـــی دپاکستان پولیسو زیات شمیر محصلین‌نیولی اوبندیان کړی یی دی چەپه هغو کی‌دمحصلینو داتحادیی یو رئیس ښاغلی علی حیدردملـــی دیموکراتیك گوند غړی شاکربونیری اوملاکنډ دکالجونو داتحادیی رئیس مظفر له څوورځو راهیسی دلوږی پەاعـــتصاب لاس پوری کړیدی .

خبروایی پەمینگوره کی ټول دکانونه تړلی دی اوپولیس پەلارو اوکوڅو کی دمحصلینو دمظاهرو دمــخ نیوی دپاره درول شویدی دخبر له مخی دمینگوری ولسی مشرانـو د پاکستان لەحکومت څخه‌کلکه غوښتنه‌کړیده‌چه باید بنــدیان محصلین سمدستی خـوشی کړی .

له پیښور څخه هم دحکومت پەخــلاف د محصلینو دکرکی شرگندولو خبرونه رارسیدلی دی اوحکومتی مقاماتو په پیښور ښار کـــی دبندیزونو ۱٤٤ ماده نافذه کړی ده .

دوری ۸ــ۵۵

دپښتونستان لەسوات څخه پەیو خبر کی ویل شویدی چی‌په مینگوره کی پەمحصلینو باندی دپولیسو دناروا ظلم اوتیری سره د مخالفت ښکاره کولو پەلړ کی دهغه ځای ټول دکانونه داحتجاج پەتوگه تـړل شوی او دسینما گانو پە شمول یوشمیر نوری موسسی هم‌بندی شویدی .

دسوات دجینکودکالج دمحصلانوله خوا پـه خپره‌شوی ابلاغیه کی ویل شویدی چی‌ترهغه وخته پوری بەلەدرس سره پریکره‌وکړی‌ترڅو پەسیدوشریف کی دمحصلینوسره دناوړی‌رویی کولو مسؤل‌کسان محاکمه نکړی‌شی اودسوات دمتی کالــج محصلینو هم دپاکستانی حکومت پەخــلاف پەمظاهرو لاس پوری کړیدی.

خبروایی دسوات دمحصلینو دعاملی‌جرگی دفیصلی سره سم دمحصلینو لەډلی‌څخه‌دووتنو محصلینو ښاغلوظاهرشاه اوگل واحدخان‌دلوږی اعتصاب پیل کړیدی .

خبرزیاتوی چی دپښتونستان په بیلوبیلو

**سیمو کښې محصلین دپاکستانی حکومت په خلاف دیو منظم تحریك په‌پیل کو لوبانده ی غورکوی اوښایی ډیرژر دغه ډول تحر یـك شروع شی .**

**دوری ۱۰ـ۵۵**

دپښتونستان له پېښور څخه په یوه خبر کی ویل شویدی چه تیره اونی په هغه‌ځای کی دپښتنو محصلینو داتحادیی په یوه‌غونډه کښې داسلامیه کالج دمحصلینوداتحادیی‌رئیس ښاغلی تاج محمد اسرار دپاکستان له حکومت څخه په‌کلکه غوښتی دی چه دملی عوامی گوند درئیس خان عبدالولیخان په شمول ټـو ل سیاسی بندیان خوشی کړی اود سیا ســی فعالیت دمخنیوی له‌کوښښ څخه لاس‌واخلی .

محمداسرار په خپله اورده وینا کی دپښتنو محصلینو دمشر ښاغلی افراسیاب خټك پـه بلوچستان کی دمحصلینو دیوتن مشرښاغلی یارمحمد خان اوزبلوڅومحصلینو داتحادیـی دمشرانو دسمدستی خوشی کولو کلکه مطالبه کړیده .

ښاغلی محمد اسرار ویلی دی دپاکستان حکومت نشی کولی چه دبندیزونو د۱٤٤مادی په‌ذریعه دپښتنو اوبلوڅو دمبارزی مخنیو ی وکړی اواخطار یی ورکړی دی چه که حکومتی مقاماتو خپلوناوړو چاروته دوام ورکــړی خطرناکی نتیجی به ولری .

دپښتنو محصلینو داتحادیی په غونډه کی دپښتنو دکلتور په خلاف دتلویـزیـون او سینمایی فلمونو په ذریعه دتخریب کولوغندنه هم شویده .

**دوری ۱۰ـ۵۵**

دپښتونستان له تیرا څخه په یوخبرکـی ویل شویدی چی تیره اونی دپرو‌څمکنو په کوکنی کلی‌کی په یوه درنه ولسی غونډه‌کی دپښتنو اوبلوڅوسره دپاکستانی حکو مـت دظالمانه رویی سخته غندنه شویده .

غونډه دمولانا وزیرگل له خوادقرآن پـاك دمبارکو آیتونو په تلاوت پیل او وروستـــه ښاغلو میرخان، زله جان وریښمن خان. گل نرگس خان. غلام نبی خان، گل احمد خان ، لعل جان. میرمت خان، شهاب الدین خــان، اقبال خان. کاظم شاه خان، سبزعلی خا ن سیدجان نادرخان، ملك خان، محمدداؤدخان، فیض الله خان اونورو مشرانو او ځوانانــو دپښتنو او بلوڅو دملی حقوقو په باب ویناوی کړیدی .

په غونډه کی دپښتنواو بلوڅو بند یانــو مشرانو دخوشی کولو کلکه غوښتنه شویده .

**دوری ۱۱ـ۵۵**

دپاکستان دتحریك استقلال گوند رئیس مارشال اصغرخان په پېښور کی یوی غونډی ته‌په یوه ویناکښې ویلی دی چه دپاکستا ن حکومت څکه دبندیزونو د۱٤٤ مادی په‌ذریعه دولس او مخالفو گوندونو ارتباط شلو لـی دی چی دهغه حکومت ټولی چاری خلکو پــه ضد اونه غواړی چی مخالف گوندونه عـــوام دحکومت په ناوړه پالیسیو خبر کړی .

غونډی ته په وینا کی دتحریك استقـــلال گوندیوتن غړی په پښتونستان کی دپاکستان دمرکز نماینده حکومت داسی حکومت بللی ـی چی دمرکز له گوډاګی څخــه پرتــه بـل

حیثیت نلري، ده ویلي‌دي هغه پانګه چې دپښتونستان دودانو لو په نوم منظورېږي هغه بیرته مرکزته لیږل کیږي اود پاکستان‌حکومت دپښتونستان دودانولوبې ځایه پروپاګند کوي.

**دوری ۱۲ــ۵۵**

دپښتونستان له‌پېښور څخه په یوخبرکې ویل شویدي چې دچارسدې په پړانګ نومي ځای‌کې دملي دیموکراتیك ګوند یوتن مشر ښاغلي رحیم الله یوې غونډې ته په ویناکې ویلي‌دي چې دپاکستان حکومت له ایالتونو څخه په اساسي قانون‌کې منل شوي حقو ق هم بیرته اخیستي دي .

ښاغلي رحیم الله دپاکستان حکومت تورن کړیدي چې داساسي قانون په هغو موادوعمل نکوي چې ولس ته ورڅخه ګټه رسیږي .

په غونډه کې دپښتو نستان دستر مشر خان عبدالغفار خان دسمدستي خوشې کیدو غوښتنه شویده .

**دوری ۱۵ــ۵۵**

دپښتونستان په هزاره‌کې دتحریك استقلال اوجمعیت العلمای اسلام ګوندونو اومحصلینو دمشرانو له خواپه یوګډغونډه‌کې هغوی په ویناکې ویل شوي دي دپاکستان اوسنی حکومت له خپلو ټولو وعدو څخه مخ اړولی اوتردې زیات دحکومت کولو حق نه لري .

په‌ګډ بیان کې په پښتونستان‌کې دپاکستان حکومت دیوایالتي وزیر اقبال جدون دتیرې ورځې هغې ویناته، اشاره شوي چه پکښې ویلي یي وو پیپلز ګوند دکالواو ګورشعار دانتخاباتو ګټلودپاره پورته کړي وو .

په ګډبیان‌کې زیاته شوي ده چه دیوایالتي وزیر لخواداسې اعتراف په بشپړ ډول ثابتوي چه دپیپلز ګوند، دحکومت پالیسي دمکر او فریب پالیسي ده .

دپاکستان له لاهور څخه یوخبروایي چه دپاکستان یوپخواني وزیرایس، ایم ظفر په یوه ویناکې ویلي دي چه په لیك اووینابانديې دبندیزپه وجه ولس له اصلي حالاتو څخه بیخي بې خبره دي .

ده ویلي دي حکمران ټولي ددې دپاره د مطبوعاتو آزادي غصب کړې ده چه خلك ددوی په ناوړو چارو خبر نشي او خپل اقتدار ته په آمرانه ډول دوام ورکړي .

**دوری ۱۶ــ۵۵**

دپښتونستان دمومندو دسیمې یوتن مشر ښاغلي محمد اقبال په یوه وینا کې ولس ته خبرداري ورکړیدي چه دپاکستان حکومت غواړي دخپلو ایجنټانو په ذریعه د ولس ترمنځ نفاق اوبې اتفاقي پیدا کړي .

ده دمومندو په سیمه‌کې دپاکستاني پولیټکل ایجنټ ناوړه رویه غندلې اوویلي یې دي دپاکستان حکومت غواړي دسیاسي رشوتونو په ذریعه ناوړه‌سیاسي مقصدونه حاصل کړي .

ده پاکستاني حکومت ته اخطار ورکړیدي چې دولس په خلاف له دسیسو جوړولو څخه لاس واخلي .

دپښتونستان له نوښار څخه یوخبروایي چې دهغه ځای دکالج د محصلینو اتحادیــه دحکومتي مقاماتو په آمرېنګـه شویده او د محصلینو په هرډول فعالیت د بندیز حکــم شویدی .

پــه پښتونستان کــې د پښتنو محصلینو

داتحادیی یوتن مشر ښاغلی اختر علی شاه دنوښار دمحصلینو داتحادیی ړنګول غندلی او اخطاریی ورکړیدی چی‌که داتحادیی دړنګولو آمر بیرته وانخیستل شی دناوړو نتیجو مسؤل به‌یی دپاکستان حکومتی مقامات وی .

دپښتونستان دادم خیلودری دکالج دمحصلینو داتحادیی رئیس په یوه ویناکی دپاکستان له حکومت څخه غوښتنی دی چی د پښتونستان سترمشر خان عبدالغفار خان خوشی کړی او هغه ته اجازه ورکړی چی د خپلی ناروغـی علاج وکړی .

ده په پښتونستان کښی دمحصلینو دمشر ښاغلی افراسیاب خټك دخوشی کولو کلکه غوښتنه هم کړیدی .

**دوری ۱۷ـ۵۵**

دپښتونستان له مانسیری څخه په یوخبر کښی ویل شویدی چی په هغه ځـای کـی دتحریك، استقلال ګوندیو تن مشر او دهغه ګوند سکرتر جنرال ښاغلو صادق خـان او اعجاز عالم په یوه ګډ بیان کی په هزاره کی داسامبلو هغه غړی غندلی دی چی دولسی رایو په خلاف یی عمل کړی خپل ګوندونه یی بدل کړی اوپه پیپلزګوندکی شامل شویدی .

په ګډبیان کی ویل شویدی چی دغه ډول نمایندګانو خپل ګوندونه ولس په‌ګټه نه بلکه دخپلو شخصی ګټو دپاره کوی .

پرېښی دی اوددوی داخیال بیخی غلط دی چی په پیپلز ګوندکی دهغوی په شاملیدوسره دسیمی ټول ولس هم په هغه‌ګوندکی شامل شویدی .

په ګډبیان‌کی زیاته شویده چی دهـزاری ولس له پیپلز ګوندڅخه کرکه کوی اود ۱۹۷۰ کال په انتخاباتو کی‌یی هغه‌ګوند ردکړیدی، نوکه چیری اوس داسامبلو غړی پداسی ګوند کی شاملیږی چی نمایندګان نشی بلل کیدی بلکی په خپل دغه عمل دولس سره سترخیانت کوی .

**دوری ۱۸ـ۵۵**

دجمعیت العلمای اسلام ګوند یوتن مشراو دپاکستان دمرکزی اسامبلی غړ ی مـولانا صدرالشهید دپښتو نستان په بنوکـی یوی ولسی غونډی ته په ویناکی ویلی دی چه‌په پاکستان‌کی له اسلام اوجمهوریت دواړو څخه دیوی خاصی طبقی په ګټه کار اخیستل کیږی .

ده ویلی دی دپاکستان واکداران داسلام له پاك نامه څخه دخپل اقتدار ساتـلو او ټینګولو دپاره کاراخلی خو په عمل کی یـی ټولی چاری داسلام اوجمهوریت په ضد دی.

مولانا صدرالشهید زیاته کړیده پـــه بلوچستان کی چه په جمهوریت پوری څـــه ملنډی شویدی، دهغومثال دنړی په تاریـخ کی نشته .

دپښتونستان له بنوڅخه په یوبل خبرکی ویل شویدی چه‌په هغه ځای‌کی د ملـــی دیموکراتیك ګوند په یوه لویه غونډه کـــی دګوند مشرانو دپښتنو او بلوڅو په مقابـل کی دپاکستانی حکومت ظالمانه پالیسی غندلی اوله ولس‌څخه یی غوښتی‌دی چه ددیموکراسی دژوندی کولودپاره کلکه مبارزه وکړی .

دملی دیموکراتیك گوندپه یولویه غونډه کی دپاکستان له حکومت څخه غوښتنه شویده چه دسیاسی مبارزی لاره خلاصه کړی ، دبندیزونو ۱٤٤ ماده لیری کړی اود ورځپاڼو اوراډیوپه ذریعه دمخالفو گوندونو په خلاف لهیو اړخیز پروپاگند څخه لاس واخلی .

لویی غونډی ته په ویناکی پهپښتونستان کی دملی دیموکراتیك گوند مشر ښاغلی غلام احمد بلور ویلی دی چه په دیره اسماعیلخان کی په زرونو جریبه ځمکه شاړه پرته ده خو دپاکستان حکومت دخپلو سیاسی مقصدونو د پاره پدغه ځمکه باندی اوبه بندی کړی .

**دوری ۱۹ــ۵۵**

دپښتونستان په نوښارکی دملیدیموکراتیك گوند مشرانو په یوه غونډه کی دپاکستانی حکومت دپالیسی دغندنی په ترڅ کښی غوښتنه کړیده چی دپښتنو او بلوڅودسیاسی مبارزی په لارهکی پیدا کړی شوی خنډونه دی لیری شی .

په غونډهکی ویل شویدیچی بایددپاکستان اوسنی حکومت دتیرو حکومتونو له عملونو څخه درس واخلی اودپښتنو او بلوڅو سره له ناوړی رویی نه ډډه وکړی .

دپښتونستان په پیښورکی دجمعیت العلمای اسلام گوند ایالتی رئیس مولانا محمد ایوب بنوری او سکرتر جنرال صاحبزاده عبدالباری په یوگډبیان کی دپاکستان دحکومت په اقتصادی پالیسی باندی دانتقاد په ترڅکښی ویلی دی چی دپارلمان له تصویب څخه پرته دمالیاتو زیاتوالی یوغیر دیموکراتیك عمل اودپارلمان په حیثیت پوری ملنډی کول دی.

پهگډبیانکی دپاکستان دحکومت له خوا دغیر ضروری لگښتونو دکموالی غوښتنه همشویده.

**دوری ۲۲ــ۵۵**

په پښتونستان کی دملی دیموکراتیك گوند مشرغلام احمد بلور په پیښورکی په یوه ویناکښی ویلی دی چه دولس دښیگڼی دپاره یومترقی اوعادلانه نظام ته ډیرزیات ضرورت دی

ده ویلی دی دپاکستان واکدارانو دخپل اقتدار ساتلو دپاره دولس په گټو سترگی پټیکړی دی اودعادلانه سیاسی نظامدنشتوالی په وجه ولس دغټانو اوفیوډالانو دظلم او استبداد په پنجوکی ښکیل دی .

ده زیاته کړیده چه ټول فیوډالان او غټان ددی دپاره په پیپلز گوندکی شاملیږی چه دهغه گوندپه سیوری کی خپل امتیازات وساتی .

ښاغلی بلور ویلی دی ولس یو داسی دیموکراتیك نظام ته ضرورت لری چه په هغه کی دهیچا په جمهوری حقوقو تیری ونشی .

دپښتونستان دجمعیت العلمای اسلام گوند سکرترجنرال صاحبزاده عبدالباری دپاکستان له حکومت څخه غوښتنی دی چه ټول سیاسی بندیان خوشی کړی دمحصلینو مسئلی حل کړی اودیوداسی نظام دمنځ ته راتلو دپاره لاره آواره کړی چه دخلکو داساسی حقوقو دساتنی ضمانت وکړی .

ده ویلی دی چه په غیردیموکراتیك ډول دسیاسی فعالیت مخنیوی یوډیر ناوړه عملدی اودحکومتی مقاماتو غیر قانونی چاری دولس سره خرگنده دښمنی ده .

دپښتونستان له باجوړخخه په یوه خبرکی ویل شویدی چه تیره ورځ دچمرکند په مخ جوړنومی ځای کی دالینګار، چمرکند، شیخ بابا اوکوهی خانزاده ګانو ولس په یوه درنه‌ولسی غونډه‌کی دپښتنو اوبلوڅو د ملی مبـــارزی دبریالیتوب دپاره‌دټینګوولسی‌اتحادپه ضرورت ټینګار کړیدی اودپاکستان واکدارانو ته یی اخطار ورکړی دی .

**دوری ۲۳ـ۵۵**

دلاهور نه په یوخبر کی ویل شویدی چه په هغه ځای‌کی دجماعت اسلامی ګوند رئیس مولانا جان محمد عباسی په یوه اخباری مرکه کی دپاکستان حکومت پدی خبره زیات پسړ کړیدی چه دجمهوری عمل مخه‌یی نیولی ده اوپه هیڅ ډول آزادی غوښتونکی نه پریږدی چه دخپلوحقوقو دپاره په جمهوری لاروچارو مبارزه وکړی .

ښاغلی مولانا جان محمد عباسی وویل چه دسند ولایت ته دهغوی دسفرپه وختو کــی حکومت اجازه نه‌ده ورکړی چه په جماتونوکی لمونځونه وکړی اوولس په خپلو مشکلاتـــو خبرکړی هغه وویل په‌کوچنیو کلیوکی هم دوی دپولیس ترسخت مراقبت او نظـــار ت لاندی ګرځیدل او دولس سره یـــی ارتباط ټینګولوته اجازه نه ورکوله .

هغه وویل دپاکستان حکومت د۱٤٤مادی په ذریعه دجمهوری عمل مخه نیولی ده اوپه خپله یی په سر کاری خرڅ باندی انتخابــی دوری پیل کړیدی .

ښاغلی عباسی وویل هغه حکومت غواړی دپاکستان دتیری ظالمانه دوری په توګه په پلمه یوځل بیادبنیادی جمهوریتونو په نامه دپاکستان او پښتونستان ولسونه تیرباســی نوځکه مخالفو ګوندونو مشران او کارکوونکی نه‌پریږی چه حقایق څرګند کړی .

**دوری ۲٦ـ۵۵**

دفرانسپرس دخبرسره سم د پـــاکستان دمشرانو په جرګه کی دمخالف ګوند غـړی سناتور هاشم غلزی باندی لګیدلی توررونه‌چه مخکی دملی عوامی ګوند غړی ؤ او پـــدی وروستیو وختونوکی دملی دیموکراتیك ګوند دسکرترجنرال په توګه ټاکل شوی ؤ تراوسه پوری نه‌دی څرګند شوی .

دمخالف ګوند غړیو وویل ددوی مشر هغه وخت پولیسو ونیوچه پارلمان تـــه‌روان ؤ چه‌په غونډوکی یی ګډون وکړی، دغه غـړی ددغه سناتور دنیول کیدو په ضد داعتراض په نامه له مجلس نه ووتل .

دیوخبر سره سم چه دالمان غږراډیو خپور کړیدی. دپاکستان حکومت دښاغلی هاشـم غلزی دبندنه وروسته دمخالفو ګوندونوپه تیره بیادملی دیموکرات ګوندیی شمیره نمایندګان هم توقیف کړیدی خوتر اوسه پوری یـــی دمخالفو ګوندونو دپیروانو ددغه عمومی بند سبب نه‌دی څرګند کړی .

**دوری ۲۸ـ۵۵**

له راولپنډی نه دوریتردخبر سره ســـم دپاکستان په مشرانو جرګه‌کی دمخالفوګوندونو دمشر ښاغلی هاشم غلزی له بندنه وروسته ورمه ورځ دمخالفو ګوندونو یو شمیر نـــور

مشران چه پخوا دنیشنل عوامی گوند غـړی وونیول شویدی زیاتره بندیان شوی په ملی دیموکراتیك نوی جوړشوی گوند کی شامل وو او په دغه گوندکی یی بیل بیل منصبونه درلودل .

لکه چه معلومه شویده په هغو خلکوکی چه نیول شویدی سناتور حاجی غلام احمدبلور سناتور سیدحسین شاه، ښاغلی قسورگردیزی اونومیالی شاعرښاغلی حبیب جالب شامل‌دی.

دغه رازدایالتی‌اسامبلی‌وکیل اودپښتونستان په‌مردان کی دملی دیموکراتیك گوند مشـر ښاغلی امیرزاده خان اود پښتونستان پخوانی گورنر ارباب سکندر خلیل داطلاعاتو پخوانی وزیر ښاغلی محمدافضل هم بندیان شوی او حیدرآباد ته لیږدول شویدی .

**دغویی ٤ــ٥٥**

دپښتونستان له پیښور څخه په یو خبرکی ویل شویدی چه دپیښور پوهنتون دمحصلینو داتحادیی په یوه غونډه کی دحقوقو دپوهنځی دمحصلینو داتحادیی رئیس اسدالله خــان اپریدی دپاکستان له حکومت څخه غوښتنـه کړیده چه دپښتنو محصلینو مشر افراسیاب خټك سمدستی خوشی کړی .

ده ویلی دی پښتانه محصلین دافراسیاب خټك په گرفتاری او دحیدرآباد په بندیخانه کښی اودهغه په بندیتوب خواشینی شویدی .

ده اخطار ورکړیدی چه‌که افراسیاب خټك خوشی نکړی شی په‌ټول پښتونستان کی به دمحصلینو عمومی مظاهری پیل شی .

**دغویی ٦ــ٥٥**

دپښتونستان له پیښور څخه په یوخبرکی ویل شویدی چه وړمه ورځ په هغه ځای‌کی دقصه خوانی دشهیدانو ورځ دلویو غونډو په ترځ‌کی نمانځل شویده .

خبروایی په غونډوکښی دگډون کوونکوپه ډله کښی میرمن نسیم ولی هم دشهیدانــو یادگار ته ورغلی اوگلونه یی پری شیندلی دی .

دپښتونستان دملی دیموکراتیك گوندرئیس ښاغلی عبدالخالق خان دشهیدانو دورځی پــه مناسبت په یوه وینا کی ویلی دی پښتنوچه دپښتونستان دستر مشرخان عبدالغفار خان په لار ښوونه کومی قربانی ورکړیدی هغه به دتاریخ په پاڼو کی په طلایی رنگ‌ولیکل شی .

عبدالخالق ویلی دی دیــــوی آزادی او دیموکراتیکی ټولنی دجوړولو دپاره دپښتنـو ملی مبارزه روانه ده اوهدف ته درسیـــدو تروخته پوری به دوام وکړی .

**دغویی ٦ــ٥٥**

دپښتونستان له پیښور څخه یو خبروایی چی په‌هغه ځای‌کی دپښتنودمحصلینوداتحادیی په‌یوه غونډه‌کی دپیپلز گوندیو شمیر غـړو محصلینو په هغه اتحادیه کی دشاملیدواعلان کړیدی چی ښاغلو امجدحسین شاه، اورنگ زیب اوجاوید خان یکی شامل دی .

دوی دپښتنو محصلینو په اتحادیه کــی دشمول په وخت کی ویلی دی چی هغه‌اتحادیه دپښتنو دمحصلینو نماینده سازمان دی اوباید

په اوسني حساسه مرحله‌کي پښتانه محصلين ډيرزر يومرکز ته راټول شي .

دپښتونستان په حسن آبدال کي دجمعيت‌ـ العلماى اسلام‌گوند په يوه غونډه‌کي په پاکستان کي په روانو حالاتو اودحکومت په ظالمانــه پاليسي باندي له غوزنه وروسته انديښنــه ښکاره شويده چي دحکومت‌له‌خوا دديموکراسي دودي مخنيوي اودولس په اساسي حقوقوتيري حالات زيات کړکيچن کړيدي .

په غونډه کي په سياسي مخالفينو باندي دپاکستاني حکومت دمظالمو دغندني په ترڅ کي دپښتونستان دستر مشر خان عبدالغفار خان اودملي عوامي گوند درئيس عبدالولي‌خان په شمول دټولو سياسي بنديانو دخوشـــي کيدوغوښتنه شويده .

**دغويي ۸ـ۵۵**

**دپښتو نستان له کوهاټ څخه په‌يو خبـر کښي ويل شويدي چه‌په هغه ځاى کي‌دملي ديموکراتيک گوند رئيس په‌يوه ويناکي‌ويلي‌دي چه‌که دپاکستان حکومت دملي ديمو کرا تيک گوند دسياسي په‌لاره هر څومره خنډو نه‌پيدا کړي بياهم هغه گوندخپلي اصولي مبارزي ته ترهغه وخته پوري دوام ورکوي‌چه‌ولس‌ته‌دډوي بشري اوديمو کراتيک حقو ق و ر کــړه شي.**

**ده‌ويلي دي په مخالفو گوندو نو باندي دسياسي فعاليت لاره بندول دامعني لري‌چــه پيپلز گوند په‌ولس اوپه تيره بيا په پښتنو اوبلو څو کي هيڅ‌گرانښت نلري او غواړي‌چه په‌يواړخيز ډول انتخا باتي مبارزي ته دوام ور کړي .**

**له‌کوهاټ‌څخه په‌يوبل خبرکي ويل شويدي چه‌په هغه ځاى کي دمدافع وکيلانو په‌يوه‌غونډه کي دپاکستان له‌حکومت څخه غوښتنه شوي ده چه بايد دديمو کراسي او قانوني‌حکومت په‌لاره کي پيدا کړي شوي خنډونه ليري‌شي اودخلکو اساسي حقوق ومنل‌شي .**

**مدافع وکيلانو غوښتنه کړيده چه دپنديزونو ۱۴۴ ماده دي ليري کړی شي اودراتلونکـو انتخاباتو دپاره دي يوه ديمو کراتيکه فضــا برابره شي.**

**دمدافع وکيلانو په‌غونډه کي چه‌دمخالفــو گوندونو مهم غړي اومشران په بنديخانو کي پراته دي دپاکستان دحکومت لخوا په يــو اړخيز ډول دانتخا باتي مبارزي پيل يوډير ناوړه عمل دی .**

# دخارجي خبرونوکرونولوژی

**دچنګاښ ۲۹ ـ ۵٤**

په‌لووا ندا اوودغه ځای په‌ځینو نوروسمو کی دانګولا سیالو نهضتونو دافراد و ترمنځ نښتی روانی دی .

**دزمری لمړی ۵٤**

**دهند دملی شورا مجلس هغه اضطراری** حالت چی څلور اوونۍ دمخه دهند دحکومت له خوا په ټول هندکی نافذ شوی ؤ تصویب کړ .

* * *

دمصر دباندنیو چاروو‌زیر اسماعیل فهمی **وویل چه‌دد‌غه هیواد حکومت فیصله کړی‌ده** چه دری میاشتی نور دسینا په محاذ کـــی دملګرو ملتو دموسسی دسولی دپوځـــونو د افراد و دخدمت موده اوږه کړی .

* * *

مصری مقاماتو ددغه هیواد او اسرائیلـو ترمنځ دمخامخ خبروپه بـاب دسرائیلـو د صدراعظم په وینا باندی انتقاد کړیدی .

**داسرائیلو صدراعظم ویلی وو، دسینا پـه محاذ کی دسولی دټینګیدو دپاره دمؤقتـــی موفقی دلاسلیك په مقصد باید دمصـــر او اسرائیلو ترمنځ مخامخ خبری وشی .**

**دزمری ۳ـ۵٤**

**دترکیی کابینی فیصله وکړه چه له هغی اډی پرته چه داتلس ټرون تری استفـــاده کوی، په ترکیه کی ندی ټولی امریکایی اډی وتړل شی .**

**دزمری ٤ـ۵٤**

ترکیه به دهغوټولوامریکایی اډوقوماندانی په غاړه واخلی چه په ترکیه کی شته‌دی .

دترکیی دحکومت دغه اقدام به داتـــلس دټرون یوی پوځی اډی ته چه په هغه‌هیواد کی شته متوجه نه وی .

دترکیی حکومت دیوی ویناپه ترڅ کښی **وویل دغه هیواد دامریکایی وسلی پر یکړی** ددوام په خلاف پدغه اقدام لاس پوری کړ .

* * *

دامریکا حکومت په ترکیی کی دامریکاپه پوځی اډوکی دفعالیتونو دبندیدو په باره کی دترکیی دحکومت فیصله ترمطالعی لانـــدی نیولی ده .

* * *

دانګلستان اوامریکا حکومتونو فیصله کړیده چه په انګولاکی دحالاتو دخرابتیا له مخـی خپل اتباع له لواندا څخه وباسی .

برتانوی مقامات غواړی دخپلی قونسلګری غړی اودغه راز دکامنویلیتھ اتباع له لواندا څخه وباسی‌اوهم امریکایی مقاماتوددغه هیواد اتباعوته هدایت ورکړیدی چه ځان له دغـه ښارڅخه دوتلو دپاره چمتو کړی .

**دزمری ۵ـ۵٤**

دمصر جمهور رئیس انورالسادات و ویل که چیری دمنځنی ختیځ دکشالو دحل دپاره سیاسی هلی ځلی ناکامه شی له اسرائیلـو سره دیوی بلی جګړی دپیښیدو پرته بلـه

چاره نشته .

**دزمری ٦ــ٥٤**

دلواندا دکړکیچن ښارنه‌دانګلستان داتباعو دورروستی تن دو یستلو وروسته دهغه هیواد جنرال قنسل په لواندا‌کی خپله قونسلګری وتړله .

* * *

دیوګندا جمهور رئیس عیدی امین دافریقا دیووالی دجرګی دپرانستل کیدوپه غونډه کی په کمپالاکی وویل چه باید اسرائیـــــل دملګروملتو دمؤسسی څخه وویستل شی .

**دزمری ٧ــ٥٤**

دهند اوایالتی اسامبلو دهغه هیواد پـــه اساسی قانون کی بدلون تصویب کړچه دهغه په اساس په هندکی اوسنی اضطراری حالت دمحکموله قدرت نه‌جګ ګڼل کیدای شی .

* * *

**دامریکا ،کانادا اودری دیرشو اروپایـــی** هیوادو مشرانوجرګه دفنلند په مرکزهلسنګی کی پیل شوه .

**په یوسلوپنځوس وروستیو کلونوکښی‌دا** ځل دی چه په اروپا کی دغه شان یوه جرګه جوړیږی .

دهلسنګی جرګه دهغو دوه کلنوخبرونتیجه ده چه دپنځه دیرشو هیوادو نماینده‌ګانو په ژنیوکی کړیدی .

په هغه اعلامیه کی چه دهلسنګی په جرګه کی دپنځه دیرشو هیوادو دمشرانوله خـــوا لاسلیك کیږی اساسی ټکی لکه داو سنیـــو سرحدونومنل کیدل، دمربوطو هیوادو ترمنځ سوداګری اوعلمی همکاری، آزاد سفـــر او مخابرات اوپدی خبره نوی‌کتنه شامله ده چه ددووکلونوورروسته ددغی اعلامیی موادترکومی اندازی عملی شویدی .

* * *

ترکیی ویلی دی چه پنځه امریکایی اډی چه له هغوڅخه داطلاعاتی مقصدونو د پاره کاراخیستل‌کیده ترخپلی اداری‌لاندی راوستی اوهم په‌نږدی راتلونکی وخت‌کی پدی لټه‌کی ده چه دشپږو نوروامریکایی اډو چاری پـــه لاس کی ونیسی .

**دزمری ٨ــ ٥٤**

درودیشیا دغیرقانونی حکومت دباندنیـــو چارو وزیر دغه آوازی دروغ بللی دی چـــه درودیشیا یوملی مشر سیتولی ددغه حکومت په لارښوونه مسموم شویدی .

* * *

دترکیی وسله والوپوځونو دکارابرن پـــه سیمه کی دامریکا دمتحدوایالاتو یوه بلـــه پوځی اډه ونیوله .

دغه مطلب داستانبول له دوهم‌پوځی مرکز څخه خپور شویدی .

په اعلامیه کی ویل شویدی چه دترکیی بیرغ پدغی اډی باندی رپول شویدی .

**دزمری ١٠ــ٥٤**

داروپا دامنیت اوهمکاری عالي جرګـــه دافغانستان په وخت دشپی په اووبجو پـــه اروپاکی دامنیت اوهمکاری دمربوطی موافقی په لاسلیك کولوسره پای ته ورسیده .

**دزمری ۱۱-۵٤**

دقبرس دترکی اویونانی ټولنو دمشرانـو ترمنځ خبرودریم پړاوچه دملګروملتودموسسسی دسرمنشی ډاکټر کورت والدهایم په مشری په ویانا کی پیل شوی ؤ پای ته ورسید .

**دزمری ۱۲-۵٤**

په انګولاکی دسیالو نهضتو نو تر منـځ دانګولاپه ختیځ کی دلوسوپه ښارکی دمتارکی دکیدوپه باب موافقه شویده خوددغه خـای په جنوبی سیمو کښی اوس هم د دغـــو نهضتونو دافرادو ترمنځ نښتی روانی دی .

* * *

دنه انسلاک دنهضت دپراختیا هیوادونوپه ژنیوکی دهغی موافقی مسوده برابره کـړیده چه دهغی له مخی دمهمو تولیداتو دلس قلمه احتیاطی زیرمی دپاره دری ملیارده ډالــره بیل شویدی .

**دزمری ۱۳-۵٤**

دمصر عربی جمهوریت دسیناپه محاذ کــی داسرائیلی عسکرو لاپه ښه تلوپه باب دخپل دریځ دخرګندولوپه ترځ کی وویل مصردسینا دګودرونو اودابور دیس دتیل لرونکی سیمی څخه داسرائیلو عسکروتل غواړی .

**دزمری ۱۳-۵٤**

دویانا په خبروکی دقبرس دیـونانیانو د دهیات مشر ګلاف کوس کلیریدس په آتن کی وویل دهغه هواد ترکانوڅه کړیده چــه دقبرس دستونزی دټولو اړخونو داوزولــو د پاره یوبشپړ پلان جوړکړی .

* * *

دترکیی دخلکو ددیموکرات ګوند مشــر پولنت ایجیویت وویل چه په ترکیه کــی به امریکایی اډی وتړل شی.

**دزمری ١٤-٥٤**

دهندولسی جرګی ددغه هیواد په انتخاباتـی قوانینوکی اونښتون تصویب کړچه دهغولـه مخی دهند صدراعظمه میرمن اندرا ګـــاندی دهغو تورونو څخه ژغورل کیږی چه په هغی باندی دانتخاباتی فعالیتونو په نسبت لګول شویدی .

* * *

دملګــرو ملتو موسسی دامنیت شورا ۱۵ نمایندګانوته دملګروملتوپه موسسه‌کی دغړی توب دپاره دویتنام ددیموکراتیك جمهوریت جنوبی ویتنام اودکوریادجمهوریت دحکومتونو دغوښتنوپه باب خپلی غیررسمی خبری اتری پیل کړی دی .

**دزمری ۱۵-۵٤**

دانګلستان صدراعظم هرالد ویلسن وویل باید په هلسنګی‌کی داروپا دامنیت اوهمکاری په جرګه کی دلاس ته راغلو موافقو دتطبیق پرله پسی څارنه وشی .

* * *

دانګلستان صدراعظم هرالدویلسن وویل اوس باید دختیز اولویدیز دروابطو دپرمختیا په برخه کښی په مرکزی اروپا کی دپوځونو دمتقابل کموالی په باره‌کی دوارسا او اتلس دتړونونو دغړوترمنځ دویانا خبروته دلوموړی توب حق ورکړ شی .

**دزمری ۱۷ـ۵٤**

دهند دانتخاباتو دقانون د اړولو مـــربوط لایحه ددغه هیواد په عالی محکمو او ستـره محکمه کی قانونی بڼه غوره کړه .

دهند جمهور رئیس فخرالدین علی احمـد وروسته له هغه چه دغه لایحه دهغه هیـواد پارلمان تصویب کړه په هغی باندی لاسلیك وکړ .

*　*　*

دهند صدراعظمی میرمن اندراګاندی یوځل بیاټینګار وکړ چه پدغه هیواد کی داضطراری حالت اعلام دامعنی نلری چه هندددیموکراسی څخه لاس اخیستنی دی .

*　*　*

دقبرس له جنوبی سیموڅخه شما لـــــی سیموته ددغه هیوادنهه زره ترکانو دزیاتری برخی لیږدپیل شو .

**دزمری ۱۸ـ۵٤**

په انګولا کی دپرتګال عالی کمشنروویل چه دانګولا دآزادی دری نهضتونه داوسنیـو لانجواوپدغه ځای کی داقتصادی اواجتماعـی رکود مسئول دی .

*　*　*

دانګولا دانتقالی حکومت یوشمیر وزیران ددوی له کورونو څخه خوندی ځایونوته بیول شویدی .

**دزمری ۲۰ـ۵٤**

دهندستری محکمی پهدی باب دهغه هیواد دصدراعظمی میرمن اندراګاندی غوښتنه رده کړه چه محکمه دی دپرژردهغو تورونو پـــه بارهکی غونډه وکړی چه پدی باندی دآلهآباد دیوی محکمی له خواوارد شوی وو .

*　*　*

دترکیی صدراعظم سلیمان دیمیریل تائیده کړه هغه ټول دفاعی ګډ تاسیسات چه پـــه ترکیهکی یی دترکیی اوامریکا متحدو ایالاتو دخپل منځی موافقی له مخی په ترکیه کـــی فعالیت کاوه دترکیی دحکومت د زمــــری دمیاشتی ددریمی نیټی دفیصلی له مخــــی تړل شوی دی .

*　*　*

دیوه راډیویی پیغام له مخی چیدآستر الیا ددارووین په ښارکی دپرتګالی تیمور له تاپو څخه لاس تهراغلی دی پهدغه تاپوکی رژیـم بدلون کړی دی .

دغه پیغام په لومړی وختکی دپرتګالـی تیمور دهوایی ډګردکنترولولو دبرج پهواسطه چی دآزادی په پراوکی وومخابری شوی دی اوپه هغهکی دنوموړی هوایی ډګر دتړلو اود کودتادپیښیدلو په باره کی یادونی اوخبـری شوی دی .

*　*　*

په ریاض کی خبری ټولنی وایی چـــه دعراق اوسوریی ترمنځ دفرات دسیند داوبو دعالادنهویش په سرددوی داختلاف دلریکیدو په باره کیورو ستی موافقه شویده .

**دزمری ۲۱ـ۵٤**

دروډیشیا دنوی اساسی قانون پهباره کی دخبرودپیل کیدو دپاره په سالزبری کـــی هلی ځلی روانی دی هلی ځلی دهغو موافقو

په اساس کیږی چه درودیشیا دغیر قانونی حکومت دصدراعظم ایبان سمیت اود جنوبی افریقا دصدراعظم جان فورستر ترمنځ پــه پریتوریا کی شویدی .

**دزری ۲۱ــ۵٤**

دچین ولسی جمهوریت به دملګروملتو پــه عمومی ټولنه‌کی دهغی موسسی‌څخه داسرائیلو دایستلوپه باب دعربی هیواد و دپریکـړی ملاتړ وکړی .

* * *

دهند ستری **محکمه دهغه هیواد صدراعظمی** میرمن اندراګاندی په خلاف داله آباددمحکمی له خوا دلګول شویو تورونوپه مقابل کـــی دهغی دمرافعه غوښتنی‌اوریدل دوړی دمیاشتی تردریمی نیټی پوری وځنډول .

**دزمری ۲۲ــ٥٤**

دتروریستی یوه پټه موسسه پدی وروستیو وختوکی دمصر په عربی جمهوریت کی پیدا کړی شوی اودهغی شل تنه غړی نیـــو ل شویدی .

**دزمری ۲٤ــ٥٤**

په بنګله دیش کی په یوه نظامی کودتاکی خنده کار مشتاق احمدقدرت واګی په لاس کی ونیولی .

دبنګله دیش رادیوددغه خبر دخپریدو د پاره خپل عادی پروګرام بندکړ اودنظامـــی **مقرراتو اوپه‌ګرځیدو راګرځیدو باندی دبندیز** دلګولو په باب یی دنوی حکومت ابلاغیه خپره کړه .

* * *

دملګرو ملتو دموسسی سر منشی **ډاکتر** کورت والدهایم دملګروملتود ټولو مربوطــو هیوادو اوموسسونه وغوښتل چه د نـــژادی توبیردمینځه وړلوپه خلاف دمبارزی په‌لسیزه کی فعاله ونډه واخلی .

* * *

جاپان ددایمی سولی دبیاغوښتنی ســـره دنـړی ددوهمی عمومـی جګړی دوه دیرشم تلین ونمانځه .

**دهغو دریو ملیونو جاپانیا نود یادونی په** وياړچه په دوهمه عمومی جګړه کی وژل شوی وو دهغه هیوادپه بیلوبیلو ښارونو کـــی مراسم په ځای شول .

**دزمری ۲٦ــ٥٤**

دبنګله دیش کابینی دیوی غونډی په ترخ کی ددغه هیوادپه اوسنیو حالاتو باندی‌خبری وکړی .

په عین حال کی دبنګله دیش راډیووویل : چه دشیخ مجیب‌الرحمن جنازه دمراسمو پــه ترخ کی ډاکی ته نژدی ددوی په پلارنیء هدیره کښی خاوروته سپارل شوی ده .

* * *

پداسی حال چه دمصر عربی جمهوریـت دسینا په محاذکی داسرائیلی عسکرو پــــه لاځښ کیدوپه باب دمؤقتی موافقی دلاس‌لیك دپاره چانس ښه بللی اسرائیلی مقاماتوویلی دی چه اوس هم ځینی مطالب شته چه دهغو په باب موافقه نده شوی .

**دزمری ۲۷ــ٥٤**

په بنګله دیش‌کی حالات مخ په عادی‌کیدو

دی او په گرځیدو باندی بندیزلږ شوی دی .

همدغه راز دبنگله دیش نوی جمهوررئیس خنده کارمشتاق احمد لاربښودنه کړی ده چی خلک دډیپلورسمی اوشخصی وظیفو ته لاړشی .

**دزمری ۲۷ــ٥٤**

داندونیزیا مشرانو اخطا ر ورکړ چی په پرتگالی تیمورکی وروستی ناکراری به په اندونیزیا اوهمدا رنگه دآسیایه جنوب ختیځ کی سوله اوامنیت له خطر سره مخامخ کړی .

* * *

دلومړی ځل دپاره پرتگال ته بلنه ورکړل شوی چه دناپییلوهیوادو دباندنیو چارو د وزیرانو په جرگه‌کی چه دپیرو په مرکزلیما کی به جوړه شی گډون وکړی .

**دزمری ۲۸ــ٥٤**

په ملگروملتوکی وویل شول چه عـراق دلومړی ځل دپاره په قبرس کی دملگروملتو دسولی دقواء په لگښت ورکولو سره برخه اخیستی ده .

● ● ●

په بنگله دیش کښی دحالاتوله عادی‌کیدو اودحکومت دبدلیدو وروسته دلومړی ځل‌دپاره په ډاکه کښی دورځپاڼو چاپ بیا پیل‌شویدی.

**دزمری ۲۹ــ٥٤**

دفلسطین دآزادی‌دموسسی مشر یاسرعرفات وویل : چه اسرائیل غواړی دمصر سره دیوی مؤقتی موافقی دلاسلیك نه وروسته دعربـی هیوادوبه خلاف په پولږجدی جگړو لاس‌پوری کړی .

* * *

دکمبودیا دملی یووالی د حکـومت رئیس نورودوم سهانوك اودغه حکومت دصدراعظم مرستیال کیوسامپان کمبودیاته د سهـــانوك دبیرته راتگ په باب اصولاموافقی ته‌رسیدلی دی دغه خبره دیپلوماتیکو باخبرو منابعو په پیکنگ کښی کړیده .

**دزمری ۳۰ــ٥٤**

په واشنگټن کی دامریکا دباندنیو چـارو دوزارت یوه نطاق دامریکا دمتحدو ایالاتو له خوادبنگله دیش دنوی حکومت پیژندنه اعلام کړه .

**دوږی لومړی ٥٤**

دبنگله دیش نوی حکومت ټینگار وکړ چه دهیوادپه چاروکی به سوسیالیزم دیموکراسی اوناسیونالیزم خپله کړن لاره وگرځوی .

دغه راز دبنگله دیش دباندنیو چاروورارت ویلی دی دهیواد اساسی قانون له منځه‌ندی تللی اوپارلمان هم په خپل حال پاتی دی .

* * *

درودیشیا دغیر قانونی حکومت صدراعظم ایان سمیت ویلی‌دی ترکومه ځایه پوری چه پده پوری اړه لری ددغه ځای چارو واگی به تورپوستو ته ورپری نږدی .

**دوږی ۲ــ٥٤**

دهغو نویو مقرراتوله مخی چه دبنگله‌دیش دنوی جمهور رئیس خنده‌کارمشتاق احمد په هدایت نافذشول دبنگله دیش یو شمیـــر

پخوانی حکومتی شخصیتونه نیول شویدی .

* * *

دزیاترو ناپییلو هیوادو دباندنیو چــارو وزیران لیماته رسیدلی دی .

ددوی مقصد دناپییلو هیوادو دباندنیـــو چارو وزیرانوپه جرگه‌کی برخه اخیستل دی .

دغه جرگه په لیماکی پیل شوه اوپه هغی کی دمربوطو هیوادودمشرانو پواسطه دهغی جرگی کړنلاره برابریږی چه‌په‌راتلونکی کال کی دسریلانکا په مرکز کولمبوکی کیږی .

**دوږی ۳ــ٥٤**

واشنگتن دامریکا کانگرس دپنځوسو تنو غړیو دهرډول داسی اقدام په نسبت خپلــه زیانه اندیښنه څرگنده کړی چه مقصد یــی دملگروملتو په موسسه‌کی داسرائیلودغړیتوب ځنډول وی اوله دغه کارسره یی خپل‌مخالفت ښودلی دی .

* * *

په لیماکی دناپییلو هیوادو په جرگه کی دبنگله دیش گډون دبنگله دیش دنوی‌حکومت له خوادبیخی نه انسلاک دسیاست ددوام ښه گڼل کیږی .

* * *

نوی زیلند چمتودی چه خپل یوه ډلـــه عسکرپه پرتگالی تیمورکی دسولی دساتنـی دپاره دملگروملتو دسولی دپوځـونو په واك کښی ورکړی .

**دوږی ٤ــ٥٤**

دکمبودیا دباندنیو چارو وزیر سارین شاك په لیماکی دناپییلو هیوادوپه ډله کی دگډون دپاره دکوریا دجمهوریت په کو ښښ باندی انتقاد کړی دی .

* * *

**دسوریی داطلاعاتو دوزیرله خولی په‌کویټ** کښی وویل شول سوریه داسرائیلو ســره دسولی دیوی برخی دهرډول موافقی ســره مخالفه ده .

**دوږی ٥ــ٥٤**

په سل گونوانگولایانو په هغه سیمه کی دکورنیو جگړوله امله خپل کورونه خوښــی کړی اوساوتومی اوپرنسیپی صدراعظم چه دعاج ساحل دتگ له پاره ابی‌جان ته‌رسیدلی ددغی خبری په‌کولوسره وویل چه دغوکډوالو دساوتومی اوپرنسیپی اقتصادی حالت خړپړ کړیدی .

**دوږی ۹ــ٥٤**

دپیرو دجنگ وزیر اوپخوانی صدراعظـم جنرال فرانسسکو مورالیس برمدیزپه هفــه هیوادکی دچارو‌واکی په لاس کی واخیستی . دپیرو جمهوررئیس‌جنرال ژان‌ولاسکوالوردوله وظیفی لری‌کړی شوی اووسله وال پوځونه دنوی مشر ملاتړکوی .

**دوږی ۱۰ــ٥٤**

دبین المللی وجهی صندوق او جهانـــی بانك کالنۍ جرگه په واشنگتن کی پرانستل شوه اود وینزویلانماینده اخطار ورکړ چــه دشتمنو اونیستمنو هیوادو دژوندانه دسطحی ترمنځ اوسنی تش ددغو دواړو ډلوترمنځ په روغه جوړه‌کی گډژوند په خطرکی اچولی دی.

***

دسينا په محاذکی داسرائیلي عسکرو په شتو کيدو مربوطو مؤقتي موافقه مصر او اسرائیلو په نبنه کړيده .

دامريکا دبانديو چارو وزير ډاکټر هنري کينسنجر ترټولو دمخه په تل ابيب کــــې داسرائیلو له خوادغې موافقې دپه نبنه کيدو په مراسمو کی برخه واخیستله .

**دوړی ۱۲ــ٥٤**

په پرتگالي تيمور کی دنبنتوپه اثرخه‌ناخه يوزرودوه سوه کډوالو له هغه ځای څخــــه داندونيزيايی تيمور سيمی ته پناه وړيده .

**دوړی ١٥ــ٥٤**

دسوډان اردوپه دريو ساعتو کی هغـــــه کوښښ چه دقدرت درلاسه کولوله پـــاره يوی ډلی مخالفوعناصرو له خواپه هغه هيواد کی‌پيل شوی ؤ شنډه کړ .

**دوړی ۱۸ــ٥٤**

دسوډان جمهور رئيس جعفرالنميری پـــه خرطوم کی په يوه لويه ټو لنه کی وويــــل ښايی چه دليبيا مشر معمرالقذافی دده پـــه ضد دسوډان دنظامی ناکامې توطئې کوښښ تمويل کړی وی .

* * *

دامريکا دبانديو چاروزير ډاکتر هنـری کيسنجر وويل هغه نوی مؤقتي موافقه چـــه پدی وروستيو وختوکی دمصراو اسرائيلـو ترمنځ لاسليک شوی دشوروی اتحاد د ګټوپه خلاف نده .

**دوړی ١٩ــ٥٤**

دانګلستان حکومت دغه آوازی دروغ بللی دی چه ددغه هيواد د مربوطـــــو مقاماتـــو دديګوګارسيادټاپوڅه ناڅه يوزرتنه‌اوسيدونکی په زورله خپلوکوروڼو څخه ويستلي دی .

**دوړی ۲۱ــ٥٤**

شوروی اتحاد پيشنهاد کړيدی چه بايد داټومی وسلی هرډول آزمويني بندی شی .

دغه راز شوروی اتحاد پيشنهاد وکړ چه دهرډول اټومی آزموينو دمنعه کولو په باره کی ديوه تړون دلاسليک موضوع دملګروملتو دعمومی ټولنی دراتلونکی دیرشمی اجلاسیی دوری په کړنلاره‌کی شامله کړای شی .

**دوړی ۲۲ــ٥٤**

دپرتګال منتخب صدراعظم وويل چه ددغه هيواد له دريو مهمو ګوندونو سره دنـوی کابينې دجوړولو موافقی ته رسيدلی دی .

* * *

دامريکا د متحدو ايالاتـــو جمهور رئيس جرالد فورد د يوی مرکی په تـرڅ کی ويــــل دسيناپه سيمه کی دمصر دعربی جمهوريـت اواسرائيلو ترمنځ وروستي مـــوافقه بـه د ملګروملتو په موسسه کی داسرائيلودغړيتوب دختمولواو ياله دغی موسسی څخه دهغو د ويستلو غوښتنه کمه کړی .

**دوړی ٢٤ــ٥٤**

**بالاخره دپرتګال دټاپوګانو څخه آزوروزهم** داتلانتيک دسمندر په منځ بــرخه کــــی دآزادی غوښتني غړ پورته کړ .

دآزادی غوښتنې يوی نوی جوړی شـوی جبهی رسما دپرتګال څخه دخپلواکی ورکولو

حق وغوښت .

**دوړی ۲۴ــ ٥٤**

**فلسطینی وسلهوالو سرتیرو دکویټعراق** اوالجزایر دسفیرانودزیارپه اثر موافقهکړیده چه دمصرله سفیراودمصرلهدوونورودیپلوماتانو سره چه په مادریدکی یی یرغمل نیولی دی الجزایر ته لاړشی .

* * *

پاپوانیوگینی دیوه خپلواك هیواد او دغــه راز دکامنویلت دپنځه دیرشم غړی په توگه اعلام شو .

**دوړی ۲٦ــ٥٤**

دمسکو پراودا ورځپاڼی لیکلی دی چـــه دامریکایی زیاتی وسلی دپیرودلو د پــاره داسرائیلو د پلانــونو شخه معلومیږی چـــه اسرائیلی مشران غـــواړی د منځنی ختیځ دموضوع سوله ایزحل غیرممکن کړی .

**دوړی ۲۸ــ٥٤**

دملگروملتو دعمومی ټولنی اداری جرگــه کی ددغی ټولنی د دیرشمی اجـلاسیه دوری کړنلاره چه یوسلو پنځه ویشت موضوع گانی لری اوپدغه برخه کی یوریکارډ بلل کیږی تصویب کړه .

**دوړی ۲۹ــ٥٤**

داتلس دتړون دموسسی دایمی نمایندگانو په بروسل کی داخبره تائید کړه چه داتلس دتړون دنظامی قوماندانۍ شخهدیونان دایستل کیدوپه باب دیونان په نظریه غوروکړی .

**دوړی ۳۰ــ٥٤**

**په توکیو کی د فلسطین دآزادۍ موسسی** نماینده قادر منصور دفرانســپرس د آژانس دخبریال سره په مرکه کی وویل ښنا یــــی دسنا موافقه چه په دی وروستیو وختو کــی دمصر اواسرائیلو ترمینځ لاسلیك شوی ده پهمنځنی ختیځ کښیبل ویتنام جوړکړی .

* * *

دافریقا دیووالی موسسی دیوی فرانسوی پوهی ښځی تبنتوونکوته دیوملیون سترلنگ پونډ وانډول تاوان له ورکولو سره دفرانسی دحکومت دموافقی له امله دفرانسی پهحکومت احتجاج کړیدی .

**دوړی ۳۱ــ٥٤**

دسوریی دباندنیو چارو وزیر عبدالحلیم **خـدام پهمغه مرکه کی چهپه کویټکی خپره** شوی دمصر دعربی جمهوریت او داسرائیلو ترمنځ یی مؤقتی موافقه غندلی ده .

**دتلی ۲ــ٥٤**

**پهنیویارك کی ویل شویـــدی چـــه دسیتو د** تړون شورافیصلهوکړه چه ددغه تړون دپوځی حالت دبدلون اودحالاتو دتحول له مخی کرار **کراردهغه لهمنځه وړلو دپاره موافقه شویده.**

* * *

**دایټالیا دباندنیو چارو وزیر ماریا نورومور** په یوی ویناکی دملگروملتو دموسسی دعمومی ټولنی په غونډه کی وویل دعربی ټولو نیول شووسیمو نه داسرائیلو وتل په منځنی ختیځ کی دپرله پسی سولی دټینگیدو یواځنی لاره ده .

**دتلی ۳ــ٥٤**

دتیلو دصادرونکـــو هیواد و د موسسی

(اوپك) دیارلسو غړیو هیوادو دتیلو د چارو وزیرانو خپله‌لومړی‌غونډه چه‌دهغه‌په‌باب‌خبری کیږی په ویانا کی پایته ورسوله .

**دتلی ٤ـ٥٤**

دنظامی مامورینو په قوماندانی دلبنان دوه زره تنه عسکر ددیارلس ورځنیو نښتو څخه وروسته دنظم دساتلو په غرض دبیروت پــه واټونوکی ځای په ځای شویدی .

*　*　*

دنفتو دصادرونکو هیوادو دموسسی دغړیو دیارلسو هیوادو دوزیرانو خبری دخوساعته ځنډنه وروسته یوځل بیا پیل شوی اودنفتو دبیی په باب یوی وروستی فیصلی تــــه دډرسیدو دپاره دهغوی هاندروان دی .

**دتلی ٥ـ٥٤**

دلویدیځی نړی ستر و صنعتی هیـــوادو دتیلو دبیی په سلوکی دلس زیاتوالی دپاره داوپك دتیلو دصادروونکو هیواد دموسسی دغړیو هیوادو داقدام په نسبت اندیښنـــه څرګنده کړیده .

**دتلی ٥ـ٥٤**

درودیشیا دیاغی‌حکومت صدراعظم ایبان‌سمیت له ټولورودیشیا یانونه وغوښتل چه دهغـی خاوری داساسی قانون په باب یوی لاری ته درسیدو دپاره دی دده دهاندزیار ملاتړوکړی.

**دتلی ٦ـ٥٤**

دهند صدراعظمی میرمن اندراګاندی وویل: هغه اضطراری حالت بهچه‌دتیرجون په‌میاشت کی په‌هغه هیوادکی نافذشوی دی دحالاتــو دبدلون تروخته پوری به‌دوام ولری .

*　*　*

دامریکا ددفاع وزیر جیمز شلی سنجــر وویل : چه ددوهمی عمومی جګړی دپای نه رسیدو وروسته دلومړی ځل دپاره یوه ډلــه امریکایی عسکر دالمان داتحادی جمهوریت شمالی سیموته استول شویدی .

**دتلی ٧ـ٥٤**

دپرتګال صدراعظم د لارښوونی له مخــی پدغه هیواد کی درادیو اوتلویزیون ټــو ل ستیشنونه نظامی افرادو نیولی دی .

*　*　*

د انګلستان نماینده دملګروملتو دموسسی په امنیت شورا باندی په دغه موسسه کــی دکوریا دجمهوریت دغړیتوب موضوع تــــه دپام نه‌ساتلو په‌نسبت انتقاد کړی دی .

**دتلی ٩ـ٥٤**

دامریکا دمتحدو ایالاتو ددفاع وزیــــــر جیمزشلی سنجرپه پاریس کی په یوه وینا کی وویل په اوسنی وختکی به‌په اسرائیلو باندی دپرشنګ ګولیو پلورل په منځنــی ختیځ کی دحالاتو ټینګښت تهدید کړی .

**دتلی ٩ـ٥٤**

په ملګروملتو کی د اسلامی څلـــویښتــو هیوادونوپه جرګه‌کی موافقه وشوه چـــــه د ملګروملتو دموسسی څخه چه دملګروملتو د موسسی نه دی داسرائیلو دویستلو په باب په جده کی داسلامی څلویښتو هیوادونو په جرګی غوښتنه ددی موسسی څخه بیاوکړی .

**دتلی ۱۲ـ٥٤**

دامریکا دمتحدو ایالاتو دمشرانو دجرگی دخارجی روابطو جرگه‌گی هغه لایحه تصویب کړیده چی دهغی له مخی حکومت ته واك ورکړل شوی چه په راتلوونکو دووکالوکښی دوه ملیارده اواته سوه ملیونه ډالره دخارجی اقتصادی مرستوپه نامه ولګوی .

**دتلی ۱۳ـ٥٤**

دشوروی اتحاد اوقبرس حکومتونو په مسکوکی داقتصادی اوتخنیکی همکار یو یوه لس کلنه موافقه لاس لیك کړه .

**دتلی ۱۸ـ٥٤**

داسرائیلوصدراعظم اسحاق رابین وویل : دمصر دعربی جمهوریت او اسرائیلو ترمنځ دوروستی مؤقتی موافقی په لاس لیك کـــی داسرائیلو په خلاف دمصر دعربی جمهوریت له خوالوی رسمی بندیزونه شته .

**دتلی ۱۹ـ٥٤**

دپر تګال دباندنیو چارو وزیر میلوانتوش وویل که چیری دانګولا سیال نهضتونه‌دخپلی خاوری دآزادی ـ شخه دمخه دخپلو اختلافونو دحل په باب موافقـی تــه و نه رسیږی . دپر تګال حکومت به مجبور شی ددغه مقصد دپاره دملګروملتو له موسسی شخه مرستـه وغواړی .

**دتلی ۲۰ـ٥٤**

دپر تګالی تیمور دازادی جبهی دفری‌تیلین دویل چه دپر تګالی تیمور دیاتوګادی دښارپه شاوخواکی دتوپچی پوځ او غربین جګړ ی پیل شویدی .

**دتلی ۲۱ـ٥٤**

هغی مقدماتی جرګی چه دانرژی په باره کی په پاریس کی پیل شوی موافقه کـړی چــه دانرژی اونورو مربوطو مسالو دروستی جرګه دی‌ددسمبر دمیاشتی په‌نیمایـی کـــی په پاریس کښی وشی .

**دتلی ۲۵ـ٥٤**

دلیبیاحکومت پخوا دخپلو نفتی تاسیساتو خارجی کاریګروته چه په دغه ډلـه کـــی اوکسیدنتال شرکت کاریګر هم شته هدایت ورکړی چه له لیبیا شخه ونه وځی .

* * *

سعودی عربستان دنفتووزیر شیخ احمدذکی یمانی وویل : شوروی اتحاد اودچین ولسی جمهوریت به ونه‌کړای شی دنفتو هغه بیــه ټیټه کړی چه دنفتو دصادرونکـــو هیوادو د موسسی له خوانټاکل شویده .

**دتلی ۲٦ـ٥٤**

شوروی اتحاد اوفرانسی داتومی تولـــــو وسله والو هیوادوپه ګډون داتومی وسلو د خطر شخه دبشریت دژغورولوله پاره دیو ی جرګی دجوړیدو غوښتنه کړیده .

* * *

دمصر جمهور رئیس انورالسادات وویل : چه اسرائیلو ته دعصری وسلو د برابرولو دپاره دامریکا تیاری دامریکا دقوانینواوهغه زول سره سم کارندی چه امریکایی په‌منځنی ختیځ کی لوبوی .

**دتلی ۲۷ـ٥٤**

دامریکا دباندنیو چارو وزیر ډاکترهنری

کیسنجر ویلی دی امریکادیته چمتوده چه دکوریا دیموکراتیك جمهوریت په رسمیت و پیژنی .

**دتلی ۲۸-۵٤**

**بلژیك ، هالند اولوکسمبورگ دلویدیزی** نړۍ دشپږو مهمو صنعتی هیوادو مشرانو دجرګی دجوړیدو په نسبت چه تاکل شویده دنوامبر دمیاشتی په نیما یی کښی پاریس ته نږدی وشی خپل نه رضائیت څرګند کړی دی .

* * *

دملګروملتو په موسسه کښی دهسپانیی نماینده دامنیت شورا څخه غوښتی دی چه دلویدیزی صحراپه لوردالمغرب د اتباعو دروغی جوړی دمارش دمخنیوی دپاره لازم اقدامات وکړی .

**دتلی ۲۹-۵٤**

دفلسطین دآزادی موسسی دملګرو ملتو داجتماعی جرګه‌ګۍ دهغه فیصله لیك هر کلی کړیدی چه صهیونیزم یی دنژادی توپیرسره برابرګڼلی دی .

**دتلی ۳۰-۵٤**

دمالتا اولیبیا ترمنځ درادیویی خپرونو یو تړون لاسلیك شوی دی . دمالتا صدراعظم منتوف وویل : چه لیبیا اومالتا دکلتوری او رادیویی خپرونو په باره کی یوه موافقه لاسلیك کړیده .

**دلیرم ۳-۵٤**

دهسپانیی صدراعظم دلویدیزی صحرا په باره‌کی دالمغرب باندنیو چارو له وزیر احمدالراقی سره خپلی خبری پای ته‌ورسولی.

**دلیرم ۵-۵٤**

که چیری دملګرو ملتو عمومی ټولنه صهیونیزم ضد اقداماتو په طرفداری رایه ورکړی داامریکامتحده ایالاتبه دغه موسسه مهمه ونه بولی .

* * *

په بیروت کی ولسی روغتونونو ویلی دی چه تردی زیات ټپیان نشی منلی .

دبیروت زیاتره واټونه اوس هم خطرناك بلل شویدی اوهم ویل کیږی چه لاتراوسه **پوری په‌سلو ګونوتنه په‌خپلوکورونو او** هوټلونو کی بندپاتی دی .

**دلیرم ٦-٥٤**

دترکیی اودامریکا دمتحدو أیالاتو هیاتونو په ترکیه کی دامریکایی اډودبیافعالیت په‌باره کی خپلی خبری پیل کړی .

* * *

دالمغرب باچا دوهم ملك‌حسن وویل : اویدیځی صحرا ته به دالمغرب ددری‌سوه پنځوس زره تنوسوله ایزمارش په راتلونکو دیارلسوورځو کی وشی اوزه به‌په خپله‌ددغه مارش مشریم .

* * *

اندونیزیا دلومړی ځل له پاره اعتراف کړیدی چه ددغه هیواد عسکری قوتونه د پرتګالی تیموز په خاوره کی دتیموردانقلابی جبهی یعنی(فرتیلین) دقواووسره داندونیزیا په‌سی کیلو متری کی دلیبوس په‌سیمه کی په‌اخ‌ودب بوخت دی .

**دلړم ۷ـ۵٤**

په لبنان کی ددښمنوډلو ترمینځ یوه بله متارکه شوی ده .

ویل کیږی چه دغه متارکه په هغو خبرو کی شوی چه دلبنان دصدراعظم رشید کرامی اوددغه هیواد دسیاسی او مذهبی مشرانـــو ترمینځ په بیروت کی وشوی .

*　*　*

دخبروټولنوپه عقیده اوس داسی نښــی نښانی لاس ته راغلی دی چه امکان شتــه دهغو له مخی دلویدیځی صحرا دموضوع دحل په باره کی دالمغرب اوهسپانیی ترمینځ یـــوه موافقه لاسلیك شی .

**دلړم ۹ـ۵٤**

دنفتو هغه ټولی خارجی شرکتونه چه په وینزویلاکی فعالیت لری دخپلو شتمنیو دملی کولوپه مقابل کی دتاوان دورکولو په بـاب دهغه هیواد دحکومت پیشنهاد منلی دی .

*　*　*

دامریکا دباندنیو چارو وزارت دغه اوازی دروغ بللی دی چه ددغه هیواد حکومت دلبنان په کورنیو چاروکی دلاس وهلوامکان ترمطالعی لاندی نیولی دی .

**دلړم ۱۰ـ۵٤**

دامریکا جمهور رئیس جرالد فورد ددغــه هیواد دکانگرس غړیوته ډاډورکړی دی چه په اروپاکی به دخپلو پوځونو دکموالی دپــاره ترهغه وخته پوری اقدام ونکړی ترڅوشوروی اتحاد هم پدغه شان کارلاس پوری نکړی .

**دلړم ۱۱ـ۵٤**

دتیلو مهمو تولیدوونکو هیوادواودلویدیځو مترقی هیوادوپه گډون د نهه شپیتو هیوادو نمایندگان دنړی له نیستمنو هیوادو ســـره دمرستی په مقصد دیو ملیارد اودوه ســوه ملیونو ډالرو دیوه وجهی صندوق دجوړیدو په باره کی موافقی ته رسیدلی دی .

*　*　*

په لبنان کی ددښمنوډلو مشرانو موافقــه کړیده چه خپل وسله وال افراد دشپی پــه ترڅ کی له خپلو سنگرونو څخه په ځــپ وتمبوی .

**دلړم ۱۲ـ۵٤**

عسکر وډلو دبنگله دیش دجمهور رئیس رسمی استوگنځی کلابند کړ اودبنگله دیش په مرکز ډاکه کی یی مهم ځایونه ونیــول تراوسه پوری دخنده کار مشتاق احمددحکومت دسرنوشت په باب چی په تیراگست کی یی دبنگله دیش د پخوانی جمـــهور رئیس شیخ مجیب الرحمن له وژل کیدو وروسته په یونظامی کودتاکی دچارواکی په لا س کـــی واخیستی کوم خبرندی ورکړ شوی .

*　*　*

دانگولا دآزادی دپاره دخلکو نهضت دغـه اوازی دروغ بللی چه په دغه سیمه کـــی ددریو سیالو نهضتونو ترمنځ متارکه شوی .

*　*　*

دکویټ دتیلووزیر عبدا لمطلب الکاظمــی اخطار ورکړیدی که چیری خارجی شرکتونه دمربوطو مسئلو په باره کی دکویټ لەحکومت سره دخبرودپاره چمتو نشی دکویټ حکومت به ددغو شرکتونوپاتی ونډی هم ملی کاندی .

### دلړم ۱۳–٥٤

په بنګله دیش کی دکودتا نه وروسته دپرله پسی دوهمی ورځی دپاره دډاکی هوایی میدان تړلی دی اوهمداراز دبهرنی نړی‌سره دبنګله‌دیش مخابراتی ارتباط بنددی .

### دلړم ١٤–٥٤

دبنګله دیش دځمکنی پو خ دری تنه منصبداران چه دتیراګست په میاشت کی‌یی دشیخ مجیب الرحمن په خلاف دیوی کودتا مشرتوب په‌غاړه درلوده دقدرت څخه‌وغورځول شول اوس تایلندته تللی دی .

* * *

په لویدیځه صحراکی دهسپانیی عسکرو پدغه سیمه‌کی دځان لپاره نوی دفاعی کرښی جوړی کړیدی .

دغه دفاعی کرښی دلویدیځی صحـــرا او المغرب له سرحدی پولوڅخه یوولس کیلو متره لری دی اوهلته دموتریزه قواؤ ټانکونه اوهیلی کوپترونه اچول شویدی .

### دلړم ١٦–٥٤

جنرال ضیاء الرحمن چه دبنګله دیش په خلورورځی دمخه انکشافاتو کی دلوی درستیز په حیث دخپلی وظیفی څخه برطرف کـړ ی شوی ؤ په هغه هیواد کی قدرت په لاس کی ونیو .

ده دبنګله دیش درادیو له لاری په یوه ویناکی وویل چه دخلکو اودوسله والو قواو په‌غوښتنه‌یی په مؤقتی توګه دچارو‌واکی پـه لاس کی نیولی دی .

* * *

په واشنګتن کی دامریکا د جمهور رئیس جرالد فورد سره دمصر د جمهـــور رئیس انورالسادات دخبرو دوروستنی پړاونه‌وروسته اعلام شویدی چه امریکا مصرته دوسلـــی دبرابرولو په باب کومه وعده نده ورکړی .

### دلړم ۱۷–٥٤

دالمغرب دمارش کوونکو یوه بله ډلـــه له ختیځی برخی څخه لویدیځی صحراتـــه ننوتی ده . ویل کیږی چه دغه‌کسان غواړی له بلی لاری څخه ځان دلویدیځی صحـــــرا مرکز العیون ته ورسوی .

دمارش کوونکو یوه ډله چـــه‌سل زره‌تنه دی له خپلو پخوانیو ځایونو څخه دلویدیځی صحراپه لورروانه شوی چه له هغو پنځوس زره تنوسره یوځای شی چه پخواددغه مارش دپاره لویدیځی صحراته تللی دی .

* * *

دبنګله دیش نوی جمهور رئیس ابوسادات محمدصایم وویل : چه پدغه هیوادکی دپوځی حکومت دناظم په توګه هم وظیفه اجراکوی .

* * *

دهند حکومت یوفرمان صادر کړچه دهغه له مخی به دهغو کسانو شتمنی چه‌دخارجی اسعارو د راکړی ورکړی د مقرراتو څخـــه دسرغړولو اویاقاچاق له لاری یی پداکړی‌وی ضبطه شی .

* * *

دبنګله دیش پخوانی جمهوررئیس خنداکار مشتاق احمد ددغه هیواد له خلکو څخه‌دهغو اشتباه‌ګانوپه نسبت چه امکان شته له هغه

شخه دخومیاشتی جمهوری ریاست په مو ده کی شوی وی بخښنه غوښتی ده اوضمنا یی داغوښتنه کړیده چه ددغه هیواد اوسنی جمهوز رئیس ابوسادات محمد صایم چه دده په خوله یوبیطرف سړی اودکوم گوند غړی ندی ملاتړ وکړی .

**دلړم ۱۷ـ٥٤**

داپرله پسی پنځمه ورځوه چه په بنگله دیش کی دقدرت دنیولو دپاره ددغه هیواد دپوځی مشرانو ترمنځ سیاسی کړکیچ روان دی .

**دلړم ۱۸ـ٥٤**

دیوگندا جمهوررئیس عیدی امین ویلی دی دانگولا دآزادی غوښتنی دریو نهضتونو موافقه کړی ده چه دملی یووالی یوحکومت جوړ او جنگی بندیان مبادله کړی .

*    *    *

دملگروملتو دموسسی مخصوصی سیاسی جرگه گی یوه فیصله تصویب کړیده چه په مغی کی له بین المللی ټولنی څخه غوښتنه شویده چه ددغی موسسی دعمومی ټولنی دفیصلی په اساس چه دجنوبی افریقا دتوپیر غوښتونکی رژیم د غندنی په با ب شـوی داپارتاید اونژادی توپیر په خلاف پراخـه مبارزه پیل کړی .

**دلړم ۱۹ـ٥٤**

داله آباد دمحکمی له فیصلی نه دهند صدراعظمی میرمن اندراگاندی دبرائت په باب ددغه هیواد دستری محکمی دفیصلی ډیربښه هرکلی کړیدی .

**دلړم ۱۹ـ٥٤**

دالمغرب پاچادوهم ملك حسن ددغه‌هیواد هغو سل گونوتنو اتباعوته چه دسوله ایزه مارش په مقصد لویدیځی صحراته ننو تـی اوهدایت ورکړیدی چه دصحراله سیمی څخه ووځی اوهغو سیموته ستانه شی چه له هغو څخه یی خپل مارش پیل کړی ؤ.

*    *    *

دجاپان حکومت دفلسطین دآزادی موسسی ته خبر ورکړی دی هغه هیواد چمتودی چه‌په توکیوکښی ددغی موسسی داداری دپرانستلو هرکلی وکړی .

*    *    *

داسرائیلو حکومت په ژنیوکی دمنځنـی ختیځ دسولی په راتلونکی جرگی کی‌دفلسطین دآزادی دموسسی دشاملولو په باب دملگرو ملتو دموسسی دعمومی ټولـنی فیصلـه رد کړیده .

**دلړم ۲۰ـ٥٤**

پرتگال، انگولاپداسی حال کی رسما آزاد هیوادپه توگه اعلام کړیده چه په دغه خاوره کی دانگولادچارو داداری دپاره کوم حکومت نشته د انـــگولا دآزادی د دریـو واړو نهضتونو مشران چه باید ددغی خاوری چاری په گډه اداره کړی اوس په خپلوکی پـه خونړیوجگړوبوخت دی .

**دلړم ۲۰ـ۵٤**

دانګولا دخپلواکۍ لپاره دخلکو دنهضت مشرا ګوستینو نیتو دانګولا دجمهور رئیس په توګه دوفاداری لوړه وکړه .

**دلړم ۲۱ـ۵٤**

دآسیادجنوب ختیځی سیمی دهیوادودټولنی دیوهیوادو دلویی رتبی مامورینو په کوالالمپور کی غونډه وکړه چه ددغی سیمی دبیطرفه کولودمربوط پیشنهاد په باره کی خبـــر ی وکړی .

* * *

تایلند نه غواړی چه دبنګله دیش هغــــی ولی منصبدارانوته سیاسی پناه ورکړی چه دبنګله دیش د فقـــید جمــــهور رئیـــس شیخ مجیب الرحمن دوژلوپه نسبت مجرمان دی .

**دلړم ۲۳ـ۵٤**

دالجزایر حکومت په هغو پلانونو بانـدی انتقادکړیدی چه المغرب، موریتانیا اوهسپانیا دلویدیځی صحرا دآیندی په باره کی جوړ کړیدی .

* * *

هسپانیی ، المغرب اوموریتانیا دلویدیځی صحراپه باب په لوړه سویه په مادرید کی یوه موافقه په نښنه کړه .

**دلړم ۲٤ـ۵٤**

دفرانسوی صومال دآزادی د نهضتو نـــو نمایندګانو دملګروملتو دموسسی د استعمار منځه وړلوپه جرګه کی دفرانسوی متصرفی افازاوایساس دخپلواکۍ غوښتنه وکړه .

* * *

یوه ډله امریکایی عسکر دتایلند په اوډون کی دهغه هیواد دیوی ستراتیژیکی اډی ځخه ووتل اودامریکانور پنځه زره تنه عسکر به دجنوری دمیاشتی پوری دهغی اډی نه ووځی.

* * *

دویتنام دیموکراتیك جمهوریت دانګولا د خلکو آزادی ونمانځله اودانګولا دآزادۍ دپاره دخلکو نهضت ته‌یی ددغه هیواد خپلواکـــۍ مبارکی ورکړیده .

* * *

**دلړم ۲۷ـ۵٤**

داوپك دتیلو مهمو صادرونکو هیوادو په راتلونکو پنځو کلونوکی ددریمی نړۍ لـــه هیوادوسره دمرستی دپاره دپنځوملیاردوډالرو دمرستی دوجهی صندوق له جوړ یدو سره موافقه کړیده .

**دلړم ۳۰ـ۵٤**

دهسپانیی ددولت رئیس جنرال فرانسسکو فرانکو ددوه اتیاکلونو په عمر مړشو .

فرانکو څاوه نیم دمخه دزړه دحملی له‌امله بستری شوی ؤ.

ده چه په ۱۹۳۹کال کی په هسپانیا کـی قدرت ترلاسه کړځه ناځه شپږ دیرش کاله دهغه هیواد ددولت مشر ؤ .

دهسپانیی ددولت رئیس په‌خپل ژوند کی دهغه هیواد دپخوانی پاچاماڤونسو مشر زوی خوان کارلوس په خپل ځای ټاکلی دی .

**دلیندۍ لومړی ـ۵٤**

دانګولادولسی جمهوریت‌رئیس اګستینونیتو بیاویلی دی چه دانګولادکورنی ګډوډی دحـل

دپاره دملګروملتو اویا دافریقا دیووالی دموسسی لاس وهل ترهغه وخته پوری ردوم چه‌دغه دوی موسسی په انګولا باندی دپردیو یرغل وغاندی .

### دلیندۍ ۲-۵٤

دنیوزویك مجلی لیکلی دی چه دسوریی مربوطو مقاماتو دنورو شپیتو ورځو دپاره دجولان په لوړوسیموکی دملګروملتو دموسسی دسولی دپوځ دافرادودخدمت دمودی اوږدیدو سره موافقه کړیده .

### دلیندۍ ۳-۵٤

دانګولا دآزادی دپاره ملی جبهی اوددغی خاوری دبشپړی آزادی دپاره ملی اتحادیی یوائتلافی حکومت جوړکړیدی .

دانګولا دآزادی دپاره دملی اتحادیی‌ائتلافی کابینه دیارلس غړی اوهم په کـــــوه دوه صدراعظمان لری .

### دلیندۍ ٤-۵٤

دپرتګال جمهور رئیس ګوستاګومیش او حکومت هغوپوځی افرادو دډلوپه خلاف‌چه‌یاغی شوی اوهوایی ډګرونه اوپه لزبن‌کی یـــی درادیو اوتلویزیون دستګـــا وی نیولی وی کلك اقدامات کړیدی . دغه یاغی توب دلزبن دسیمی دپوځی قوماندان په توګه دیـــو مینځګړی منصبدار دمقرریدو وروسته شویدی دپرتګال دحکومت طرفدار پوځ دیاغی افرادو په‌خلاف فعالیت‌کړی اوهغوی یی تسلیمیدوته مجبور کړل .

دګوستا ګومیش په لاربښوونه په پرتګـــال کی اضطراری حالت اوپه لزبن کی دشپـــی ګرځیدو بندیزونه لګول شوی اوپه لزبن کی هرډول ټولنی منع‌کړی شویدی .

### دلیندۍ ۵-۵٤

په بنګله دیش کی دهندعـــالی کمشنر سمرسن په ډاکه کی ددغی کمشنری په‌اداره کی دننه دیوی وسله والی ډلی دبریدو پـــه نتیجه کی ژوبل شویدی .

دهند امنیتی لښکرواودبنګله دیش پولیسو دبریدکوونکوسره مقابله وکړه چه په نتیجه کی دبریدکوونکو څلورتنه مړ اودوه تنه یی ژوبل شویدی .

په ډاکه کی دبنګله دیش حکومت ته اودغه رازپه نوی ډیلی کی دبنګله دیش د عالـــی کمشنر دلاری هلته دهند دعالی کمشنری د غړیو اودکار کوونکو دکورنیو اوپه‌بنګله‌دیش کی دهندداتاعو په ساتنه‌کی دبنګله دیش د مسئولیت په باب بیاپادونه شویده .

### دلیندۍ ۷-۵٤

په ختیځ تیمورکی دفریتلین نظامی لښکرو دپرتګال ددغی مستعمری خپلواکـــی اعـــلام کړه .

په ختیځ تیمور کی دپرتګال بیرغ‌راښکته شواوپه عوض کی یی هغه بیرغ چه دختیځ تیمور دآزادی شخه نمایندګی کوی ددغـــی مستعمری دپاسه ورپول شو. دفریتلیـــــن لښکرودختیځ تیمور دولس د دیموکراتیـــك جمهوریت جوړیدل اعلام کړل .

### دلیندۍ ۸-۵٤

دملګروملتو دموسسی امنیت شورا دیوی

شپږ میاشتنی دوری دپاره دجولان په لــوړ سیموکی ددغی موسسی دسولی دپوځ دافرادو دخدمت داوږدیدو سره موافقه وکړه .

پدغه باره‌کی دامنیت شورا خبری دسوریی دحکومت دپیشنهاد په سرپیل شوی چه باید دامنیت شوراپه‌راتلونکی میاشت‌کی دفلسطین دآزادی دموسسی دنماینده په گډون دمنځنی ختیځ تولی مربوطی مسئلی ترڅیړنی لاندی ونیسی .

**دلیندی ۱۰ـ۵٤**

دیوه مهم ترمیم له مخی چه دهندپه‌کابینه کی اعلام شوددغه هیواد ددفاع وزیر سوارن سنگهه له خپلی وظیفی څخه گوښه کــړی شو اودهند صدراعظمی میرمن اندراگاندی په مؤقتی توگه ددفاع وزیر وظیفه په خپلــه غاړه اخیستی ده .

**دلندی ۱۱ـ۵٤**

په نیویارك‌کی دفلسطین دآزادی دموسسی نطاق وویل چه‌دغه موسسه به‌هیڅکله لــه اسرائیلو سره دخبرو دپاره چمتو نشی .

ده دغه موضوع دملگروملتو په موسســه کی داسرائیلو دنماینده هغی ویناپه ځــواب کی څرگنده کړی چه ویلی وپه منځنی ختیځ کی به دسولی دټینگیدو دپاره دفلسطیـــن دآزادی له موسسی سره دخبرو دپاره چمتو شی پدی شرط چه دغه موسسه داسرائیلو شتوالی په رسمیت وپیژنی .

**دلیندی ۱۲ـ۵٤**

دلاؤس دباچاساوانگ اتانا ، لری شوی اوپه لاؤس کی دسلطنتی رژیم له منځه وړل اعلام شول .

دوینتیان رادیو وویل چی سیاسی ائتلافی شورا اودلاؤس دملی یووالی مؤقتی حکومت هم ړنگ شوی دی .

دغی رادیو زیاته کړه چی دپاچاهی درژیم په عوض دلاؤس دخلکودیموکراتیك جمهوریت شوی اوددغه هیواد اداره به یو جمهور رئیس په غاړه واخلی .

**دلیندی ۱٤ـ۵٤**

دویتنام د دیموکراتیك جمهوریت خبــر رسوونکی آژانس دلاؤس دپخوانی صدراعظم سواناپوماله خولی خبر ورکړیدی چه ده له‌دی امله دلاؤس دصدارت دڅوکۍ څخه استعفــا وکړه چه‌ددغه هیواد دمهم اوښتون لـــه مخی دده حکومت تردی زیات له حـــالا تو سره جوړښت نه کاوه .

دلاؤس پخوانی صدراعظم دولسی‌دیموکراتیك جمهوریت دجوړیدو دیوه درانده بری په‌توگه هرکلی کړیدی .

پخوانی بیطرف صدراعظم سواناپوما چــه دسوپاناونگ ناسکه وروردی دحکومتی سلاکار په توگه ټاکل شوی .

**دلیندی ۱۵ـ۵٤**

دملی حکومتونو نه لرونکو سیمو د پــاره دملگروملتودموسسی دعمومی ټولنی‌مخصوصی جرگه گی دفرانسی څخه و غوښتل چــه دفرانسی صومال خاوری ته دبی له ځنډه‌دکوم قید اوشرط څخه پرته خپلواکی ورکړی او ددغه قلمرو څخه دی خپل پوځونه وباسی .

دغه فیصله لیك چه دالجزایر اوملغاسی

پهګډون دیوولسوافریقایی هیوادودنمایندګانو له خواوړاندی شوی په خلور نوی موافقـو اواوه ویشتو مستنکفو رایو تصویب شو .

**دلیندی ۲۳ـ٥٤**

دملګروملتو د موسسی د امنیت شـــورا دراتلونکی جون ترمیاشتی پوری په قبرس‌کی ددغی موسسی دسولی دپوځ دافرادو دخدمت داوږیدو سره موافقه وکړه .

**دلیندی ۲٤ـ٥٤**

سره له‌دی چه په لبنان کی ددښمنو ډلو ترمنځ دیوبل اوربند په باب موافقه شو ی بیاهم پدغه هیواد اوپه تیره بیاپه بیروت‌کی حالات ګډوډ دی .

* * *

دکینیا اوزمبیا جمهور رئیسانو جوموکینیاتا اوکیت کاونداغوښتنی دی چی په انګولا کـی دی سمدستی اوربند ټینګ شی .

**دلیندی ۲٦ـ٥٤**

الجزایر دنړی صنعتی هیوادته دشتمنو او نیستمنو هیواد و ترمینځ داقتصادی روابـط په باب دشمال اوجنوب دخبرو په مربوطـو مهمو موضوع ګانو باندی دانرژی مسالی د بدلولو دپاره دهغوی دهرډول کوښښ پـــه نسبت اخطار ورکړیدی .

**دلیندی ۲۸ـ٥٤**

دانګلستان حکومت فیصله کړیده چه پــه هانکانګ کی دخپل پوځ شمیرکم کړی .

اوس اوس په هانکانګ کی دانګلستان د پوځی افرادو شمیر لس زره تنه دی اودهغی فیصلی له مخی به چه دغه حکومت کړیده په هانکانګ کی ددغو افراد و شمیر شپـږ زره پنځه سوه تنوته راکم کړی شی .

* * *

فرانسی په لاؤس‌کی دخپلی پوځی‌نمایندګی تاسیسات دهغه هیواد نوی رژیم ته‌وسپارل.

**دلیندی ۲۹ـ٥٤**

دامریکا مشرانو جرګی موافقه وکړه چــه ددغه هیواد حکومت دکانګرس دموافقی پرته دانګولا دآزادی‌دپاره خلکو نهضت دووومخالفو ګوندونو سره خپلو مرسته ته دوام نشـی ورکولی .

* * *

شوروی اتحاد په ژنیوکی دمنځنی ختیـځ دسولی **دخبرودپراونو اوکړنلاری دبرابرولـو** له پاره دتولو لاس لرونکو مقدماتی جرګـی دجوړیدلو په باب دامریکا دمتحدو ایالتونو پیشنهاد رسما ونه مانه .

**دمرغومی ۲ـ٥٤**

دسوریی حکومت اودغه راز دفلسطیـــن دخپلواکی موسسی دغه موضوع رد کـړ ی چه وسله وال افراد یی دلبنان دختیځ پـــه زحله کی په جګړه لګیادی .

**دمرغومی ٥ـ٥٤**

جنوبی افریقاپه انګولاکی دلاس وهلـــو دزیاتوالی په مقصد په ځینو تدبیرونو لاس پوری کړی اودپوځی لګښتونو دپاره یی‌دیری پیسی بیلی کړیدی .

* * *

دامریکا جمهور ر ئیس جرالد فورد پدغه هیواد کی دمخـدره مـوادو ورځ پـــه ورځ

زیاتیدونکی جریان باندی انتقاد کړیدی .

**دمرغومی ٦-٥٤**

دلبنان دبهمنو اړخونو دیوداسی مهال‌ویش په جوړولو باندی موافقه کړیده چه دهغــه له‌مخی پدغه هیوادکی کورنی جنګونه په ځو ړاتلونکو ورځوکی پای‌ته ورسیږی .

**دمرغومی ٧-٥٤**

له لویدیځی صحراځخه هسپانیوی عسکر دهغی موافقی له مخی وځی چه تیره میاشت دالمغرب، موریتانیا او هسپانیی دحکومتونو ترمینځ په مادریدکی لاسلیك شویده .

**دمرغومی ٨-٥٤**

دبیروت راډیوپه هغه هیوادکی دبهمنوډلو ترمنځ دوروستنیو جګړو وروسته دلومـړی ځل دپاره په ټول لبنان کی دبشپړی کراری ریوټ ورکړی دی .

* * *

دالمغرب عسکرو د لویـدیځـی صحـرا دمرکزالعیون دنظامی او غیر نظامی هوایـی ډګرونو اداره دهسپانیوی مقاماتو ځخه پـه لاس کښی واخیسته .

**دمرغومی ٩-٥٤**

په بن‌کی دالجزایر سفیر دغه آوازی‌دروغ بللی دی چه دالجزایر حکومت هغو شپـږو تنوسله والوته سیاسی پناورکړی چه یـو شمیر وزیران اودلویی رتبی مامورین یـی یرغمل نیولی وو .

* * *

په لاوس کی دبین المللی څارنی اوکنترول کمیسیون پدغه هیواد کی خپل فعالیتونه پای ته رسولی دی .

**دمرغومی ١٠-٥٤**

دوینزویلا حکومت پدغه هیواد کی دتیلو دخارجی شرکتونو دملی‌کولوکار بشپړکړیدی.

* * *

دافریقا دیووالی موسسی دجنوبی افریقا هغه شرایط غندلی دی چه له انګولانه یـی دخپلو عسکرو دایستلـو په باب پیشنهاد کړیدی .

**دمرغومی ١٣-٥٤**

دهند دکانګرس ګوند د١٩٧٥ کال غونډه درایو په اتفاق دیوکال دپاره دانتخاباتو په ځنډولو اوپه اساسی قانون باندی دنوی نظر دمربوطی فیصلی په تصویب پای ته‌ورسیده.

* * *

داسرائیلو صدراعظم اسحاق رابین وویل که چیری امنیت شورا داسی فیصلی تصویب کړی چه هغه اسرائیلی ونه منی نوداسرائیلو حکومت به دمنځنی ختیځ په باره کی دغور د پاره دژنیودجرګی دبیا جوړیدو غونډننه‌وکړی.

**دمرغومی ١٤-٥٤**

داوپك دتیلو دسترو تولید ونکو هیوادو په ګډون دنړی دبیلوبیلو نولسو هیـوادو نمایندګانو پاریس‌کی غونډه وکړه چه‌دانرژی اونوروافتصادی مسئلو په باب دنړی لـــه صنعتی هیوادو سره دمعاملی په باره کی یوه ګډه تګ لاره طرحه کړی .

**دمرغومی ١٥-٥٤**

دیوګندا جمهور رئیس عیدی امین وویل چه باید دانګولا مسئله دروغی جوړی دلاری

حل شي او ټول خارجي عسکر له دغې خاورې څخه ووځي .

* * *

په هندکښې اضطراري حالت ديو شمير هغو ډلو فعاليتونو په نتيجه کې نافذ شوی چه پدغه هيوادکې دخلکو دذهنونو دګډوډولو اونکړکيچ اوبې نظمۍ لپاره هرډول مو قع دپيداکولو په لټه کې دي .

**دمرغومي ١٦ــ٥٤**

دانګولا دشمال دکارمونا اونيګاجي په کليو کې ددغه هيواد ددښمنو نهضتونو د افرادو ترمنځ سخت جنګ روان ؤ .

**دمرغومي ١٧ــ٥٤**

دافريقا ديووالي دموسسې دغړيو هيوادو مشرانو پداسې حال دانګولا دلانجې دحل په باره کې خپلې خبرې پيل کړې چه بايد ډير ژرپه انګولاکې دوينوتوئيدل پايته ورسيږي .

* * *

په رباط کې دشوروي اتحاد سفارت دغه آوازې ردکړيدي ددغه هيواد په يوې بيړۍ کې دالمغرب سواحلوته نژدې شوې وه وسلې اوپوځي مهمات بارؤ .

**دمرغومي ١٨ــ٥٤**

دانګولا دمسالې دحل يواځنۍ لار پرته له قيداو شرطه دآوستنيونيونو په مشرعد دانګولا دولسي جمهوريت دحکومت په رسميت پيژندل دي .

**دمرغومي ١٩ــ٥٤**

دهند صدراعظمې اندراګاندي په هغه هيواد کې داضطراري حالت داوږديدو په باره کې له خپلې فيصله څخه کلکه دفاع وکړه .

**دمرغومي ٢٠ــ٥٤**

دملګروملتو په موسسه کې دشوروي اتحاد نماينده ياکوب مالك وويل دامنيت د شورا زياتروغړيوله دغې موضوع سره موافقه کړيده چه دفلسطين دآزادۍ موسسې ته دې بلنه ورکړې شي چه خپل استازی دامنيت شوراپه نږدې کيدونکو غونډوکې دبرخې اخيستودپاره ورولیږي

**دمرغومي ٢٣ــ٥٤**

دمصر جمهور رئيس انورالسادات په قاهره کې وويل چه بايد دفلسطين دآزادۍ موسسه په ژنيو کې دمنځنې ختيځ په نوي جرګه کې دنورو سره په برابر وحقوقو برخه واخلي .

* * *

ايسلند ګوانښ کړيدی که چيرې دانګلستان جنګې بيړۍ دايسلند اوانګلستان په مربوطو اوبوکې داختلاف وړسيموڅخه و نه وځي ايسلند به داتلس دتړون دغړيتوب څخه ووځي .

**دمرغومي ٢٤ــ٥٤**

دانګولا دبشپړې آزادۍ دپاره ملي يووالي (اونيتا) ويلي دي چه دانګولا دآزادۍ دپاره دخلکو دنهضت عسکرو دلوزودښار لورته چه داونيتا دافرادو په لاس کې دی پسر مختګ کړيدی .

**دمرغومي ٢٦ــ٥٤**

پداسې حال کښې چه دلبنان په بيلوبيلو سيموکې جګړه روانه ده ددغه هيوادمسلمانانو اوصدراعظم رشيد کرامې دفلسطيني ګډ والو

په يوكمپ باندې دهوايي پوځ دالوتكويرغل دوسله وال پوځ الهگوله بللي ده .

**دمرغومي ۲۷ـ٥٤**

پهمسكو ،بلگراد اوهاوانا كې دخبرو شويـو مطبوعاتي رپوټونوله مخې دزاير دهوايي پوځ الوتكي اوعسكرهم دانگولاپه كورنيو جگړوكې برخه لري .

**دمرغومي ۲۹ـ٥٤**

دودې پهحال كې د درويشتو آسيايـــي هيوادو وزيرانوپه جاگارتاكې غونډه وكـړه چه دسوداگرې او پراختياپه باب دملگروملتو دموسسې (انكتاد) دراتلونكې څلورمې غونډې له پاره خپله گډه ستراتيژي چه ټاكل شويده په راتلونكې مي كې په نايروبي كې وشــي طرحه كړي .

**دسلواغې لومړۍ ٥٤**

دسودان حكومت په لبنان كې له دښمنوډلو څخه غوښتې دى چه دوينو دتوئيدو دمخنيوى اولبنان پهكورنيو چاروكې دبهرنيو لاس وهنو دغندنې دپاره پهگډه زيار وباسي .

**دسلواغې ۲ـ٥٤**

دقاهرې دالاخبار ورځپاڼې ليكلي دى كـه چيرې دعربي هيوادوله خوادلبنان د كشالـو دپاى ته رسولو دپاره زيارونه ويستل شي امكان شته اسرائيل په لبنان كې مداخلــه وكړي .

**دسلواغې ۳ـ٥٤**

له بيروت څخه رارسيدلي خبرونه وايي چه په لبنان كې نوى اوربند تريوى اندازې پورې نافذ شوى دى .

دغه اوربند دهغو موافقو له مخې شوى چه دلبنان ددښمنوډلو ترمينځ دسوريې داوه فقره ايزپلان په اساس شويدى .

**دسلواغې ٤ـ٥٤**

دملگروملتو دموسسې مخصو صي كميټــې چه دنژادي توپير په خلاف فعاليت كو ي دانگولاپه ولسې جمهوريتكې دجنوبي افريقا دتوپير غوښتونكې رژيم پوځي مدا خلـــه غندلې ده .

دغې كميټې په هغې ويناكې دجنوبي افريقا دغه لاس وهنه دبين المللي سولې له پـــاره يوتهديد بللي دى چه په نيويارك كې خپره شوه .

**دسلواغې ٦ـ٥٤**

په هغه ليك كې چه دكيوبا لـــه خـــوا دملگروملتو موسسې ته استول شوى ويـــل شويدي چه انگولا هغه وخت له كيوبا څخه غوښتنه وكړه چه دزاير اودانگولا په جنوبي سيمو باندې دجنوبيافريقا لهخوايرغلوشواود كيوبا حكومت دغې غوښتنې ته ځواب وركړ .

**دسلواغې ۷ـ٥٤**

جنوبي افريقا دملگروملتو دموسسې امنيت شوراته پيشنهاد كړيدى چه يوهيأت انگولا ته ولېږي .

دالومړى ځلدى‌چه جنوبي افريقا دامنيت شوراپه خبروكې برخه اخلي اوديوى موضوع په باره كې نظرخرگندوى دجنوبي افريقـــا نماينده دامنيت شوراپه غونډهكې چه دناميبيا موضوع يې څيړله وويل دغه هيأت به پــه انگولاكې دغه موضوع مطالعه كړي چه جنوبي

افریقا په انگولاکی امنیت په خطر کی‌اچولی که نورو .

**دسلواغی ۸ـ٥٤**

دالمغرب حکومت ویلی دی چه دالجزایراو المغرب عسکر په لویدیځه صحراکی په‌سختو جگړو بوخت دی .

په هغه اعلامیه کی چه پدغه منا سبـــت دالمغرب حکومت په رباط کی خپره کـــړ ی ویل شویدی چه دالمغرب اوالجزایر عسکرپه لویدیځه صحراکی سره جنگیږی .

**دسلواغی ۱۲ـ٥٤**

دفلیپین جمهور رئیس فر دیناند مارکوس په مانیلاکی داوه اویایمی ډلی دغړیوهیوادو دوزیرانو ددریمه جرگه پرانستله .

پدغه جرگه‌کی داسیاافریقا اوجنوبی افریقا دټولو پرمختیایی هیوادو نمایندگان دباندنیو چارو تجارت اومالیی دوزیرانو په سویه‌برخه اخلی اوپه هغی کی زیار ویستل کیږی چی گینیا په‌مرکز نایـروبـی تـــی دتجارت او پرمختیا دپاره دملگروملتو دموسسی دخلورمی جرگی دجوړیدو لاره‌آواره شی اوداووه‌اویایمی ډلی هیوادونه به په هغی کی‌گډدریځ غـوره کاندی .

**دسلواغی ۱۳ـ٥٤**

دالجزایر ددولت رئیس هواری بومدیـــن په‌مانیلاکی داووه اویایمی ډلی دجرگی په نامه په یوه پیغام‌کښی ویلی‌دی چه دبین‌المللی اقتصادی نوی نظام دطرحه کـــولو د پاره ضرورت لیدل کیږی .

دبومدین په‌دغه‌پیغام‌کی چه‌دالجزایر‌نماینده پدغه جرگه‌کی ولوست په ۷۷ ډلـه کـــی دفلسطین دخپلواکی‌دموسسی دگډون هرکلی شویدی

**دسلواغی ۱۹ـ٥٤**

په ټول لبنان کی به ملی حاکمیت په یوه میاشت کی ټینگ شی اودفلسطین دخپلواکی دموسسی عسکر به ددیوی هغی موافقی له‌مخی چه دلبنان اوسوریی دمشرانو ترمینځ لاسلیك شوی ده له خپلو سنگرونو ځخه ووزی .

* * *

داوه اویایمی ډلی هیوادو وزیرانو غونډه په مانیلاکی دیوی اعلامیی اودعمل دیـــوه پروگرام په تصویب سره پای ته‌ورسیده .

**دسلواغی ۲۰ـ٥٤**

دملگروملتو دموسسی سر منشی ډاکتـــر کورت والد هایم داسترالیا دمطبوعاتو پـــه کلوپ‌کی وویل چی دختیځ تیمور ددخلکـــو دبشپړی خپلواکی د حاصلولو پـــه لار کی دمرستی له امله په هغه ځای‌کی اوس هـــم دملگروملتو تحقیقات په علاقمندی سره روان دی .

**دسلواغی ۲۱ـ٥٤**

دملگروملتو دموسسی دامنیت شورا‌یوډبل په خلاف دصومال اوفرانسی دشکایت په‌باره کی دغور دپاره غونډه وکړه . دیوډبل خبرله مخی دملگروملتو دموسسی دامنیت شورا غړو اوس یوډبل په خلاف دفرانسی او صومـال دشکایت په باره‌کی یولړ سلا مشوری پیـل کړی دی .

**دسلواغی ۲۲ـ۵٤**

دافریقایی هیوادو دیووالی موسسسی دانګولا دآزادی په باره دخلکو دنهضت حکومت ددغی موسسی دپوره غړی په توګه په رسمیت وپیژاند .

په هغه ابلاغیه کی چه ددغی موسسی دمرکزله خواپه ادیس اباباکی خپره شوه ویل شوی دی دافریقایی هیوادو د یووالی موسسی دانګولاولسی جمهوریت د خپل اووه څلویښتم غړی په توګه منلی دی .

**دسلواغی ۲۳ـ۵٤**

دیوګندا جمهوررئیس اودافریقایی هیوادو دیووالی دموسسی اوسنی رئیس دیوګندا له خوادانګولا دآزادی له پاره دخلکو دنهضت دحکومت په رسمیت پیژندل اعلام کړیدی . دغه راز افریقایی هیواد ټوګو دانګولا دآزادی له پاره دخلکو دنهضت حکومت په رسمیت وپیژاند .

دیوګندا اوټوګو په پیژندلو سره تر اوسه پوری دافریقایی هیوادو دیووالی دموسسی ۲۷ غړیو هیوادو دانګولا دآزادی له پاره دخلکو دنهضت حکومت په رسمیت پیژندلی دی .

* * *

دملګرو ملتو دموسسی سر منشی ډاکتر کورت والدهایم له انګولایی ګډوالو سره دمرستی دپاره چه دنامیبیا په کمپونو کی اچول شوی دجنوبی افریقا غوښتنه نده منلی.

**دسلواغی ۲۵ـ۵٤**

دلبنان جمهور رئیس سلیمان فرانجیه هغه سیاسی اصلاحات اعلام کړل چه پدغه هیواد کی منځ ته راغی .

ده په بیروت کی دیوی وینایه ترڅ کی وویل‌چه مسلمانانو ته‌به‌په پارلمان اودولتی اداروکی زیاتی نمایندګی ورکړی شی .

فرانجیه وویل : دهغو سیاسی اصلاحاتو له مخی به چه دحکومت له خوا تصویب‌شوی او‌ډیرژربه دلبنان دپارلمان له‌خواهم تائیدشی ددغه هیواد جمهور رئیس مسیحی اوصدراعظم به‌چه‌به راتلوونکی وخت‌کښی د پارلمان له خواټاکل کیږی مسلمان وی .

**دسلواغی ۲٦ـ۵٤**

الجزایر دملګروملتو دموسسی له‌سرمنشی ډاکترکورت والدهایم نه غوښتی دی چه په لویدیځه صحراکی دحالاتودلاخرابیدودمخنیوی دپاره هلی ځلی وکړی . الجزایر په هغه پنځلس مخیزلیک‌کی چه دهغه هیوادپه مرکز کی خپورشوی شرګنده کړیده چه دلویدیځی صحرا دلانجی حل یوازی بین المللی قانون ته په غاړه ایښودوسره حل کیدلی شی چه دلویدیځی صحرا دخلکو دخودارادیت حق یی دآزاد ریفراندم له لاری تضمین کړیدی چه انکار تری نشی کیدی .

**دسلواغی ۲۷ـ۵٤**

دملګروملتو دموسسی دسولی پوځ دسینا دټاپووزمی په شمالی‌برخه کی یوه بلمه‌سیمه له اسرائیلی عسکرو څخه ترلاسه کړه .

**دسلواغی ۲۸ـ۵٤**

دقبرس دترکی اویونانی ټولنو دمشرانو د خبرو دوهم پړاو داتریش په مرکز ویاناکی ددواړو خواؤ ترمنځ پیل شو .

دملګروملتو دموسسې سر منشي ډاکتــر کورت والدهايم دخبرو پدغه غونــډه کــي هم دامنيت شورا دتيرکال دهدايت په اثـر دمخکنيو خبرو دخلوروپړاوپه شان بر خــه اخيستي ده .

**دسلواغي ۲۹ـ۵٤**

دانګولا دولسي جمهوريت حکومت لهانګولا څخه دجنوبي افريقا دعسکرو دسملاسي وتلو غوښتنه کړيده دلواندا راديو په يوه وينا کي ويلي دي چه بايد دبې ګناهوکسانو وژل کيدو دمخنيوی دپاره جنوبي افريقاخپل عسکر ديرژرله انګولاڅخه وباسي .

**دکب لومړی ۵٤**

دانګولا ولسي جمهوريت غوښتي دی چــه دهغه هيواددتولي خاوری‌څخه‌دی دجنوبي‌افريقا تيری‌کوونکي پوځونه سملستي ووځي .

دانګولا دخپلواکی دپاره دخلکو دنهضـت په‌يوه اعلاميه‌کي ويل شوی‌دی دانګولادولسي جمهوريت حکومت دانګولاپه کورنيو چاروکي دنورولاس وهل نشي زغملی .

**دکب ۳ـ۵٤**

دافريقا ديووالي دموسسي دغړيو هيوادو باندنيو چارو وزيرانو دحبشي په مرکـــز اديس ابابا کي دمربوطو مسئلو په باب دغور پاره غونډه وکړه .

دالومړی ځل دی چه د انګـــولا دولسي جمهوريت دحکومت نماينده دافريقا ديووالي دموسسي دوزيرانو دشورا په غونډه کــي برخه اخلي .

**دکب ٤ـ۵٤**

داسيا دجنوب ختيځي سيمي دټولني دپنځو غړيو هيوادو دمشرانو لومړی جــر کـــه داندونيزيا دبالي په ټاپوکي پرانستل شوه .

داندونيزيا، ماليزيا، فليپين، سنګاپوز او تايلند مشران چه ددغي ټولني غړی دي په وياناکي يي دهيوادونو ترمنځ داقتصادی‌نژدی همکاری غوښتنه وکړه .

* * *

دافريقا ديووالي دموسسي دوزيرانو د شورا شپږويشتمه غونډه دټولومسئلو په باره کــي دغور دپاره دحبشي په مرکز اديس ابابا کي پيل شوه .

پدغه غونډه‌کي دلومړی ځل دپاره دانګولا دولسي جمهوريت نماينده چه پدی وروستيو وختوکي دافريقا ديووالي دموسسي داووه ـ څلويشتم غړی په توګه منل شوی هم برخه واخلي .

**دکب ۵ـ۵٤**

دانګولادولسي جمهوريت نماينده دا فريقا ديووالي دموسسي دوزيرانو شورا په غونډه کي په زايرباندی سخت انتقاد وکړ اووی‌ويل چه دزاير منظمو عسکرو دانګولا دآزادی دپاره دخلکو دنهضت دافرادوپه خلاف جګړه کـــي برخه اخيستي .

**دکب ۸ـ۵٤**

دالمغرب اوموريتانيا نمايندګانو ګـوا ښې کړيدی چه‌که چيری دافريقا ديووالي موسسه په لويديځه صحراکي دپوليساريو د آزادی نهضت په رسميت وپيژني دغه‌دواړوهيوادونه

به ددغی موسسی له غړی توپ شخه ووځی .

**دکب ۹ـ۵٤**

دانګولا دولسی جمهوریت حکومت دزایر د حکومت له خواپه رسمیت وپیژندل شــــو . ددواړوهیوادو ترمنځ دغه روغه په هغو دوه ساعته خبروکی شوی چه دزایر دجمهوررئیس اودانګولا دآزادی دپاره دخلو دنهضت دمشر ترمینځ دکانګو په مر کز برازاویل کـــــی شویدی .

ضمنا ددواړو هیوادو مشرانو موافقه کړیده چه ددواړو هیوادو ګډوال دسره صلیـــــب دبین‌المللی موسسی په همکاری خپلوکورونو ته راستانه کړی .

**دکب ۱۰ـ۵٤**

دهند صدراعظمی میرمن اندراګاندی پـــه نوی ډیلی‌کی په یوه ویناکی وویل : دانګولا انکشافاتو داثابته کړه چه دیتانت یوازی په یوه سطح‌کی شته اواوس هم داسی زیاتـــی ستونزی شته چه دویش اوسختو ګـــډوډیـــو سبب شوی دی .

**دکب ۱۱ـ۵٤**

امریکایی مقاماتو خپل نورپوځی تاسیسات دتایلند حکومت ته ورپریښودل دغه تاسیسات دتایلند شخه دهغو امریکایی عسکرو دوتلوپه لړکی پریښودل کیږی چی د دواړو هیوادو حکومتونودمخه دهغو په باب موافقه‌کړی وه .

**دکب ۱۲ـ۵٤**

دقبرس دیونانیانو استازی ګلاف کـــوس ـ کلریدس دیونانیانو جمهور رئیس میکاریوس ته ددغه تاپوپه باب په ویاناکی د خبـــرو دوروستنی پړاوپه باب معلومات ورکړی دی .

دغه رازده په اتن کی دیونان له مشرانو سره دخپلو خبروپه نتیجوهم میکاریوس خبر کړی دی .

**دکب ۱۳ـ۵٤**

دملګروملتو په موسسه کی دناپییلوهیوادو استازو دناپییلو هیوادو دیوه اطلاعاتی مرکز داساسنامی تصویب کړیدی . دغه اطلاعاتـــی مرکزچه دکیوباپه هاواناکی مرکز لری پـــه ناپییلو هیوادوکی دځوهیوادو د شرکتونـــو فعالیتونه څیړوی اوخبر ورکوی .

**دکب ١٤ـ۵٤**

دموزمبیق حکومت له رودیشیا سره خپل سرحدونه تړلی دی . په هغه ویناکی چـــی پدغه مناسبت په لوزونزو مارکس کی خپره شوی دموزمبیق حـــکومت د رودیشیا پـــه غیرقانونی حکومت باندی تورلګولی دی چـــی دموزمبیق دسرحدی‌خایونو باندی‌سخت یرغلونه کړیدی .

**دکب ١٦ـ۵٤**

دلویدیځی صحرادآزادی نهضت پولیساریو چه‌څه‌موده پخوایی دصحرادعربی دیموکراتیک جمهوریت په نامه یوحکومت اعلام کـــړی ؤ نوی حکومت جوړکړیدی .

دپولیساریو حکومت اتــه غـــړی لری او محمدالامین اولدا محمد د صحـــرا دعربـــی دیموکراتیک جمهوریت دحکومت صدراعظـــم ټاکل شویدی .

**دکب ۱۷ـ۵٤**

دالجزایر حکومت دصحراعربی دیموکراتیک

جمهوریت چه دلویدیځی صحرادآزادۍ نهضت پولیساریو اعلام کړیدی په رسمیت پیژندلی دی .

په هغه وینا کی چه په دغه مناسبت دالجزایر دباندنیو چاروو وزارت خپره کړی زیاته شوی ده چه ددغه هیواد حکومت به دلویدیځی صحرا دخلکو دهیلو دپوره کیدو دپاره هرډول مادی، معنوی اوسیاسی مرستی د صحـــرا ددیموکراتیك جمهوریت حکومت ته ورکاندی.

موریتانیا دلویدیځی صحراپه سردالجزایر سره خپل روابط وشلول . په هغه وینا کی چه پدغه مناسبت دموریتانیا دلوړو مقاماتـو دفیصلی وروسته په نواك چوټ کی خپـــره شوی ویل شویدی چه دموریتانیا حکـومـت دغه فیصله ددی دپاره کړیده چه دصحراعربی دیموکراتیك جمهوریت دالجزایر دحکو مـت له خواپه رسمیت پیژندل شویدی .

**دکب ۱۸ـ۵٤**

اسرائیلو وویل دامریکا متحده ایالات به دمصر عربی جمهوریت ته دنظامی تجهیزاتو دبرابرولو دمربوط پلان په عملی کولو سره بنایی په منځنی ختیځ کی وسله واله مسابقه چټکه کړی .

دامریکا متحدوایالاتو دباندنیو چارو وزیر ډاکتر هنری کیسنجر د اسرائیلو صدراعظـم اسحاق زابین ته ویلی وُچه واشنګتن غواړی په مصر باندی هرکولیس ډوله سی (۱۳۰) لاك هیدالوتکی وپلوری .

**دکب ۲۰ـ۵٤**

دلبنان صدراعظم رشیدکرامی وویل : چه امکان شته دکشالو شته والی به په تیره بیا ددغه هیوادو پوځی کسانو ترمینځ دلبنـــان دویش سبب شی .

ویل کیږی چه کرامی اودلبنان جمهوررئیس سلیمان فرانجیه ددغو کشالو په باره کـــی دسوریی دباندنیو چارو له وزیر عبدالحلیم خدام سره چه له څه مودی راهیسی زیارباسی دلبنان کورنی کشالی پای ته ورسیږی خبری کړیدی .

**دکب ۲۳ـ۵٤**

په ملګروملتو کی دغړیو اسلامی هیـــوادو ٤٤ کسیزی ډلی په بیـــت المقدس کـــی داسرائیلو دسیاست اودالاقصی په جوماتکی دهغو دسپکاوی په خلاف دسملاسی تدبیرونو غوښتنه وکړه .

دغی ډلی په یوه ګډه ویناکی ویلی د ی داسرائیلی پالیسی هدف په خپـــل سر د بیت المقدس دمذهبی، کلتوری، احصائیوی او سیاسی حالت بدلون دی .

*   *   *

دلبنان‌دنوی پوځی‌ګورنرجنرال عزیزالاحدب له غوښتنی سره سره تراوسه پوری دلبنان جمهور رئیس سلیمان فرانجیه او صدراعظـم رشید کرامی له خپلو وظیفو نه استعفا نه ده کړی فرانجیه ویلی دی چه هغه وخت به له خپلی وظیفی نه استعفا وکړم چی دپارلمـان د۹۹ غړیو څخه ٦٦ غړی ځما داستعفا دپاره رایی وکړی .

تراوسه پوری دلبنان دپارلمان ٦٣ غړیـو دفرانجیه داستعفا په طرفداری رایی ورکړی

دی .

**دکب ۲۴ــ۵٤**

جنرال عزیزالاحدب چه دلبنان پوځیان یی سیاسي ډگرته ورگډکړي اووی ویل چــــه دجمهور رئیس په توگه دسلیمان فرانجیــــه وظیفه باید پای ته ورسیږي دپاریس دلوموند له ورځپاڼې سره یی په یوه مرکه کی دغـــه آوازي دروغ بللي دي چه دیوه پوځي قیام لارښودنه کوي .

**دکب ۲۵ــ۵٤**

په لبنان کی عمومي حالات کــــږ کیچن اوشکمن دي ځکه لاتراوسه پوري سلیما ن فرانجیه دبیابیاگواښونو سره سره ددغه‌هیواد دجمهور رئیس په توگه له خپلې څوکــــۍ څخه ندی گوښه شوی .

**دکب ۲٦ــ۵٤**

دکیوبا، انگولا، گیني اوگیني بیساومشرانو دگیني په مرکزکوناکری کی خپلې هغه خبرې پیل کړیدي چه پخوانه وی اعــــلام شوی . دغه خبرې به نه یوازي دافریقا دوچی دپاره بلکه دټولو استثمار شویو خلکو دپاره مهمه اغیزه ولري . دکیوبا صدراعظم فیدل کاسترو دانگولا جمهور رئیس اگوستینهونیتو اودگیني بیساودولت رئیس لویس کابرال دمخکښــــی خبرنه پرته دگیني له جمهوررئیس احمدسکوتوري سره دخبرودپاره کوناکري ته رسیدلی دی .

* * *

دلبنان جمهوررئیس سلیمان فرانجیه پــــه پای کی دپوځي اوسیاسي سخت فشار پــــه مقابل کی غاړه ایښي اوداستعفا پیشنهاد یی ورکړیدی .

په بیروت کی سیاسي منابع زیاتوي چــه فرانجیه دلبنان دځپانده ډگرڅخه دگوښه‌کیدو له پاره دوه شرطونه ایښي دي اوهغه داچه دی ته چمتودی چه دخپلې وظیفې نه استعفا ورکړي پدی شرط چه په جنگ کښي شاملې ډلې بیاپه اردوکی سره یوشي اودمنصبدارانو او عسکرو له پاره عمومي بښنه اعلام شي .

**دکب ۲۷ــ۵٤**

دافریقاد یووالي موسسې بیاله خپلوغړیونه غوښتي دي چی دموزمبیق دجمهـــــور رئیس ساموراماشل دغوښتنې له‌مخې دغه هیوادتــه خپلې اقتصادي مرستې چټکې کړي .

**دکب ۳۱ــ۵٤**

دملگروملتو دموسسې سر منشي ډاکتــــر کورت والدهایم دنژادي توپیر دمنځه وړلــــو دبین المللي ورځې په مناسبت په وینا کی وویل چه دشارپ ویل کالیزه دهغو ملیونونو انسانانو دپاره دیو سمبول په توگه گڼــل شوي چه اوس هم دنژادي توپیرله ظلمونونه دآزادۍ دحاصلولو دپاره مبارزه کوي .

**دوری ۲ــ۱۳۵۵**

دلبنان دسوسیالیستانو مشر کمال جمبلاط وویل چی دی ددغه هیواد داوسنیو لانجودحل دپاره هرډول اضطراري اقداماتو سره مخالف ندی .

**دوری ۳ــ۵۵**

دملگروملتو په موسسه کی دامریکانماینده ویلیم سکرانون داردن دسیندپه لویدیځــــو

غاړوکی داستوګنی دسیمو د ودانولو د پاره داسرائیلو په فعالیتونو باندی انتقادکړیدی .

**دوری ٤ــ٥٥**

دانګولا دپوره آزادی لپاره ملی یووالــی اونیتاچه مشریی یوناس ساویمبی دی دانګولا په ولسی جمهوریت کی ددغه هیواد دمیګ الوتکو دیوالې یرغلونوله امله له مینځه تللی دی .

**دوری ٦ــ٥٥**

دلبنان دحالاتوپه باب درارسیدلو وروستیو رپوټونوله مخی په بیروت کی ددښمنو ډلـــو ترمینځ سختی جګړی پیل شوی او دغه جګړی دومره سختی وی چه ددغه ښار هـــیڅ واټ خوندی ندی .

په بیروت کی جګړی په داسی حال کـــی سختی شوی چه د دغه هیواد جمهور رئیس سلیمان فرانجیه دخپل استوګنځی نه تښتیدلی اواوس ددغه ښار په شمال کی په یوه کلی کی دی .

**دوری ٧ــ٥٥**

دنایجیریا حکومت دانګلستان له حکو مت څخه غوښتی دی چه د دغـــه هیواد پخوانی جمهوررئیس یاکوبوګاوان بیرته نایجیریا ته ولیږی چه لههغه څخه په هغوفعالیتونو کــی دهغه دلاس وهلو اونه و هلو پـــه نسبـت تحقیقات وشی چه په دی وروستیو وختوکی په نایجیریاکیدحکومتدبدلون دپاره شویدی. ګاوان چه تیرکال له خپلی وظیفی څخه ګوښه شوی اواوس په لندنکښی په تحصیل بوخت دی پخوایی په دغو فعا لیتونو کښی خپــل

هرډول لاس وهل ردکړی ؤ.

* * *

په سل ګونو سپین پوستی او تورپوستی کهوال چه په رواکانااودانګولا په نوروجنوبی سیموکی پراته وو له دغی سیمی څخه نامیبیا ته تښتیدلی دی .

کهوالو دغه اقدام ددی دپاره کړیدی چــه دجنوبی افریقا عسکر له دغو سیمو څخهوتلی اودتورپوستو او سپین پوستو کهوالو سره داویره پیداشوی چه دجنوبی افریقا دعسکرو دوتلو وروسته به د انګـــولا دآزادی دپاره دخلکو دنهضت افراد ددوی په خلاف کلك اقدامات وکړی .

**دوری ٨ــ٥٥**

دمصر عربی جمهوریت رئیس انورالسادات دهغه هیواد خلکو ته وویل چه مصر لهخلورو میلیاردو مصری پونډوله کسر سره مخا مخ شوی اوباید خلك پنځه کاله له ستونزوسره مبارزه وکړی .

**دوری ٩ــ٥٥**

دلبنان دوسله والو مسلمانانو اودفلسطین سرتیرو له خوا دهلتون داوولس پوړیزهوټل دنیولو وروسته اوس دبیروت په سواحلو کی ټولی لوړی ودانی دمسلمانانو او فلسطینیانو پهلاس کیدی .

**دوری ١٠ــ٥٥**

دامریکا متحده ایالاتو دنړی دروغتیاموسسی ته خبر ورکړی چه هغه هیواد به د دغـــی موسسی په هغه غوښته کی ګډون ونهکړی چهپه مانیلاکی ویتنام ته دمرستو دبرابرولو

په غرض کيږي څکه ددواړو ويتنامونو لپاره دمرستي برابرول دامريکا دسياست ســـره توپير لري .

**دوری ۱۱ـ۵۵**

په لبنان کي داوربند دټينګيدو دپاره پدغه هيوادکي سياسي خبري رواني دي .

دلبنان دسوسياليستانو مشر کمال جمبــلاط ويلي دي چه دغه اوربند يواځي هغه وخت ټينګيدی شي چه سليمان فرانجيه ددغه هيواد دجمهور رئيس په توګه له خپلي څوکۍ څخه استعفا وکړي .

**دوری ۱۲ـ۵۵**

دملګروملتو دموسسي دامنيت شورا يوه داسي فيصله تصويب کړه چه په هغې کي دانګولا په خلاف دجنوبي افريقا تيري غندل شوي دي .

**دوری ۱۳ـ۵۵**

دفلسطين په تيره بيـا دبيت المقــــدس دخپلواکۍ دپاره دفلسطين دخلکو دراولاړيدلو اومجادلوسره داسلامي جرګه دغړو هيوادونو مرستي اويووالي ورځ په ټول هيواد کـــي په جوماتونوکي دخطابو به ترڅ کي ونمانځل شوه .

**دوری ١٤ـ۵۵**

دانګلستان دباندنيو چارو دوزارت ددولت وزيرديويدداينالزوويل دموزمبيق جمهوررئيس ساموراشامل ده ته ډاډوړکړی چه نه غواړي دروديشياکشالي بين المللي بڼه غوره کړي .

**دوری ۱۵ـ۵۵**

دملګروملتو په موسسه کي دشوروی اتحاد دنمايندګی هيأت دهغو ډزوله امله چه پـــه نيويارك کي ددغه هيات په و دانۍ بانـــدی شوی دی په دغه موسسه‌کي دامريکا په‌هيأت باندی سخت احتجاج کړيدی .

* * *

دامريکا دباندنيو چارو وزير ډاکتر هنري کيسنجر وويل چه امريکا داسرائيلو دغښتلي کيدو دپاره خپلو مرستوته ددوام ورکوی .

دامريکا دباندنيو چارو وزير په واشنګتن کي وويل چه ددغه هيواد حکومت هيڅ کله داسرائيلو څخه لاس نه اخلي .

**دوری ١٦ـ۵۵**

دانګلستان دباندنيوچارو وزير جميزکالاهان دکارګر ګوند دغړيوترمنځ رايو اخيستلو کي مايکل فروت ته ماتي ورکړی اودهرالدويلسن په ځای دانګلستان دراتلونکی صدراعظم په توګه ټاکل شويدی .

* * *

دتاس خبررسوونکی آژانس رپوټ ورکړچه دکمبوديا د صدراعظم مرستيال او عمومـــی قوماندان کيوسامپان ددولت درياست وظيفي په غاړه اخيستي دی . دتاس نماينده دهانوی څخه په ليږل شوی رپوټ کي دپنوم پـــن دراډيو له خولي خبرور کوی چـــه نورودوم سهانوك چيرته لاړدی .

**دوری ۱۷ـ۵۵**

دايتاليا صدراعظم الدومورودمصر د عربي جمهوريت رئيس انورالسادات ته ويلي دی چه په منځني ختيځ کي سوله بايد دفلسطين دخلکو دحقوقو دتامين په اساس وشي.

دلبنان ويش به چه دنړدی يو کلنوکورنيو

جګړوله امله زیات شوی نه یوازی په خپله ددغه هیولد بلکه دمنځنی ختیزلپاره خطرناك وی .

**دوری ۱۸ــ۵۵**

په بیروت کی دفلسطین دآزادی دموسسی دلویی رتبی یوه ماموز ویلی دی چه دتیر اپریل دمیاشتی راهیسی چه دلبنان کورنی کشالی پیل شویدی تراوسه پوری پدغه هیوادکی شل زره تنه وژل شویدی .

**دوری ۱۹ــ۵۵**

دبرازیل دباندنیو چارو دوزارت یوه نطاق دغه خبر دروغ بللی چه دغه حکومت پههغه هیوادکی دفلسطین دآزادی دموسسی دیوه دفتر دجوړیدو اجازه ورکړیده .

**وری ۲۰ــ۵۵**

په لوکسمبورګ کی داروپا داقتصادی ټولنی داقتصادی همکاری دوزیرانوپه جرګه کی دپرمختیا یی هیوادو سره دمرستی لپاره کوښښ ناکام شویدی .

**دوری ۲۱ــ۵۵**

دلبنان پارلمان دهغه هیواد دجمهور رئیس سلیمان فرانجیه پرځای د یوه بل سړی دټاکلو دپاره دهغه هیواد داساسی قانون بدلون تصویب کړ .

**دوری ۲۲ــ۵۵**

کله چه دچین خلکو ددغه هیواد دپخوانی تقویم په اساس دارواح ورځ ونما نځلـه دپیکنګ په مرکزی پارك کی پیښنی وشوی .

په سل ګونو هغو خلکو چه پدغه پارك کی دچین دفقید صدراعظم چوئنلای په احترام دملی قهرمانانو دیادونی دپاره راټول شوی ؤ دتشدد نه په ډکو مظاهرو لاس پوری کړاوپه هغو نښتووکښی چه دپولیسو اوخلکو تر منځ وشوی یو شمیر ژوبل اودپولیسو څو نقلیه وسیلو ته اوروا چول شو .

**دوری ۲۳ــ۵۵**

دلاؤس حکومت دکلتوری انقلاب په ترڅ کی په سل ګونوتنه چی دبی لاری عناصرو دجرړودایستلو په مقصد طرح شوی بندیان کړیدی .

**دوری ۲٤ــ۵۵**

دناپییلو هیوادو ترمنځ داقتصادی مرستی دپروګرام دترتیب کوونکوهیوادو دنمایندګانو غونډه دهاوانا تر څنګ په سانتاماریاکی پیل شوه .

* * *

دملګروملتو دموسسی دامنیت شورا دختیځ تیمور په باب بیاخپلی خبری پیل کړی .

پدغه غونډه کی دپرتګال استازی دختیځ تیمور په باب داندونیزیا دحکومت دسیاست دغندلوپه وخت کی دټولو مربوطو ډلوپهګډون دیوی جرګی جوړیدل وغوښتل .

**دوری ۲۵ــ۵۵**

دملګروملتو دموسسی سر منشی ډاکتر کورت والدهایمورویل چهغیراتومی پنځهویشت هیوادو داتومی وسلی په پوره بندیز پوری په مربوطو خبروکی دبرخی اخیستوله پاره خپل چمتووالی څرګندکړی دی .

**دوری ۲٦ــ۵۵**

دافریقا دیووالی موسسی دملګرو ملتو د

موسسی شخه وغوښتل چه په نامیبیا کــې دانګولا دګټوالو سره دمرستی نه ډډه وکړی ځکه چه دغه موضوع به په هغه ځای کـې دجنوبی افریقا دتوپیر غوښتوونکی رژیـــم دديفکتوپيژندنی په توګه وبلل شی .

**دوری ۲۸ــ۵۵**

دسوریی اوفلسطین مشرانو په لبنان‌کـې دسولی له نوی ابتکار سره موافقه کــړی اوویلی دی چه دواړو خواوی به په‌ګډه سره دهرهغه اړخ په خلاف ودریږی چه جګړه پیل کړی .

* * *

دچین ولسی جمهوریت په‌رسمی ډول تائید کړه چه دغه هیواد له هند سره دسفیرانو په لیږلوموافقه‌کړی ده . دچین دولسی جمهوریت اوهند ترمنځ له څلوروکلونو وروسته داړیکو دبیاعادی کیدونه وروسته کیږی .

**دوری ۲۹ــ۵۵**

دیونان صدراعظم کنستانتین کارا مانلیس دترکیی له حکومت شخه غوښتی‌دی چی دیونان سره دتیری نه‌کولو په باب یوه تړون‌لاسلیك کړی .

* * *

دآلمان اتحادی جمهوریت، اتریش، بلغاریا اویوګوسلاویا دایران دهغو باروړونکو لاریو دتیریدو دحق په‌سلوکی دپنځه سوه زیاتوالی په باره کی دترکیی دوروستی فیصلی پسی چه دترکیی دلارو شخه استفاده کوی ترکیی ته اخطار ورکړیدی اوویلی یی دی که‌چیری دغه هیواد دتریدو ددغه حق دکموالی سـره موافقه ونکړی دغه هیوادونه به‌په‌خپلو خاورو کی دترکیی په لاریو باندی ترانزیتی مالیات ولګوی .

**دوری ۳۱ــ۵۵**

دامریکا دپوځ قوماندان وویل‌چه دترکیی داتلس دتړون په جنوب ختیځه برخه کی دامریکا دپوځ قوماندان وویل چه دترکیـی اویونان ترمنځ داختلافونو له پلوه دغه تړون ته زیات خطرونه متوجه دی .

**دغویی لومړی ۵۵**

له هغه چه دفلسطین دخپلواکـــی داردو افرادو دبیروت په بیلوبیلو سیموکی واچول شول ددغه ښارپه بیلابیلا ځایو کی جګړه تر ډیری اندازی پوری غلی شوه .

دفلسطین دخپلواکی دموسسی داردو یوډله افراد ددی له پاره چه دبیروت یوه سیمه کی دښمنو ډلو ترمنځ یوه غیر نظامی سیمه‌جوړه کړی سیمی ته ننوتل پدغه سیمه کی حالات بیخی کرار شوی اووروسته له هغه هلتـــه حتی دیوه ډزغږ هم ندی آوریدل شوی .

**دغویی ۲ــ۵۵**

په اوسیدونکو سیموباندی دتوپونودسختو ډزوله امله بیروت دښاریو ګن شمیر ولسی خلك وژل شوی دی .

**دغویی ۳ــ۵۵**

دالمغرب پوځونو دلویدیځی صحرا دمرکز العیون دختیځ په دوه سوه څلویښت کیلو متری‌کی داګوایلتازموړپه سیمه‌کی‌دپولیساریو دافرادو دله مینځه وړلودپاره یولړ عملیـات پیل کړیدی .

**دغويي ٤ــ٥٥**

دلبنان ټولو دښمنوډلو ددغه هيواد دجمهور رئيس سليمان فرانجيه له خوادلبنان داساسي قانون داړولود مربوطې لايحې دلاسليك ښه هرکلي کړيدی .

دلبنان فلانژيستانوويلي دي چې فرانجيه ددغې لايحې په لاسليك کولوسره نه يوازې دنوې جمهوررئيس دټاکلو دپاره لاره آواره کړې بلکه په لبنان کې يې اوربند غښتلی کړيدی .

* * *

په پرتگال کې پارلماني انتخابا ت پيل شول . په تيروپنځو سو کلونو کې دا پــه پرتگال کې لومړني آزاداوپه ديموگراسي ولاړ پارلماني انتخابات دي .

**دغويي ٦ــ٥٥**

دتانزانيا جمهور رئيس جوليوس نايريري دامريکا دمتحدوايالاتو دباندنيو چارو وزير ډاکتر هنري کيسنجر درودیشيا دمسئلې دحل دپاره دخبرو دلزوم په باره کښې موافقې ته رسيدلي دي .

**دغويي ٧ــ٥٥**

دجاپان دولسي جرگې د اتومي وسلــې دنه خپريدو مربوط تړون د رايو په پــوره اکثريت سره تصويب کړ .

دجاپان دپارلمان يوې يوازې محدودې ډلې ددغه تړون پهخلاف چه دهغه هيواد دحکومت له خوا په ۱۹۷۰ کال کې لاسليك شوی ده رايي ورکړې دي .

**دغويي ٨ــ٥٥**

انگلستان اواندونيزيا د يوبل په هيوادو کښې دپانگې اچولو دپراختيا اوساتنې پــه مقصد يوه موافقه په لندن کښې لاسليك کړه.

**دغويي ١٠ــ٥٥**

دسوداگرۍ اوپرمختيا په باب دملگروملتو د(انکتاد) جرگه به دغويي له پنځلسمې نــه دغبرگولې تر اتمې نيټې پورې رسما پــــه نايروبي کې وشي .

نوموړې جرگه په غيررسمي توگه دکينيا دسوداگرۍ او صنايعو دوزيرله خوا د دغــه هيواد په مرکز کې پرانستل شوه .

**دغويي ١١ــ٥٥**

دموزمبيق جمهوررئيس ساموراماشل وويل چې دده حکومت غواړي دملگروملتو موسسه په ډاکه اود محافظه کارې پرته په روديشيا اونامې بياکې دوسله والو مبارزو ملاتړوکړي.

**دغويي ١٢ــ٥٥**

په نيويارك کې دملگروملتو داقتصــــادی اواجتماعي شورا غونډې توپير غــوښتنه او اپارتايد وغانده .

دغونډې برخه والو دتوپير غوښتنې دغندنې له پاره ديوې جهاني جرگې دجوړيدو مفکوره تصويب کړيده .

* * *

دافاراوايساپه فرانسوي خاوره کې پد ی وروستيو وختونو کې ددغه ځای دامنيتي پوځ او آزادۍ غوښتونکو ترمينځ نښتې شويدي .

**دغويي ١٣ــ٥٥**

امريکايي سناتور گولو اتروويل چه پــه

روديشيا کې داکثريت دحکومت دجـــوړيدو دملاتړ په باره کښې دامريکا دمتحدو ايالاتو دباندنيو چارو وزير ډاکتر هنري کيسنجـر وزوستي وينا دامعنی لري‌که چيري کيوباپه روديشياکې لاس ووهي امريکابه کوم اقـدام ونکړي .

## دغويي ۱۵ـ۵۵

داتومي ستراتيژيکي وسلې دمحدود ولــو مربوطې خبرې چه‌په ژنيوکې دشوروي اتحاد وامريکا دمتحدوايالاتو تر منځ روانـــي و ي دشپږاوونيو دپاره ځنډول شوي دي .

## دغويي ۱۷ـ۵۵

ددريمې نړۍ هيوادونو چه د نيستمنو او شتمنو هيوادو ترمينځ دواټڼ لنډوالي غواړي په نايروبي کې دسوداګرۍ او پراختيا دپاره دملګروملتو دموسسې جرګې ته دنړۍ ديوه نوي اقتصادي نظم پـــــه بار ه کښې خپله غوښتنه وړاندې کړه .

## دغوايي ۱۸ـ۵۵

د يـــوګـــوســـلاويـــا جمهـو ر ر ئيـس مارشال تيتو د ترکيې اويونان له حکومتونو څخه غوښتې دي چې دروغي جـوړې د لارې دقبرس مسئله حل کاندي .

## دغويي ۱۹ـ۵۵

هغه وخت په لبنان کې دسولې داعاده‌کيدو کوښښ دستونزو سره مخامخ شوچې پــــه بيروت‌کې ددښمنو ډلوترمنځ نښتې زياتـــي شوې .

دښمنو ډلوپه دغونښتونکـــي لـــه غربين، توغنديو اونورو ډول ډول درندو وسلوڅخه ديوبل په خلاف کارواخيست .

پدې برخه کې دلبنان فلانژيستانوله خلکو څخه وغوښتل‌چې دمنتخب جمهـــور ر ئيس الياس سرکيس ملاتړ وکړي .

## دغويي ۲۰ـ۵۵

دسوداګرۍ اوپراختيا(انکتاد) لپاره دملګرو ملتو دموسسې دجرګې اوسنۍ غونډه ترداسې شرايطو لاندې جوړه شــــــوې چه د نړۍ سوداګرۍ اوپرمختياپه مربوطو سترو مسألو باندې دګټورو خبرو سبب شويده .

## دغويي ۲۱ـ۵۵

دامريکا متحدو ايالاتو حکومت دلبنان دنوي جمهوررئيس په حيث داالياس سرکيس ټاکل کيدل دهغه هيواد دلانجې دسياسي حل‌په‌لاره کې ديوه سترګام په نامه استقبال کړيدی .

ده دلبنان دملې حاکميت دخاورې دتماميت اوملې يووالي دساتنې په غرض دهغه هيواد دلانجو دپاره دحل ديوې لارې دپيداکولو پــه برخه‌کې دامريکا دمرستو پيشنهاد کړيدی .

* * *

دلبنان سوسياليستانو اويو شميرمسلمانانو ويلې دي چې دفلسطين دآزادۍ اردو دافرادو وتل په لبنان‌کې دنظم اوکرارۍ داعاده کيدو اودکورنيو خونړيو جګــړودپـــای ته رسيدو لومړی شرط دی .

## دغويي ۲۲ـ۵۵

کله چې داسرائيلو نماينده په نايروبـــي کې دسوداګرۍ اوپرمختيا دپاره دملګروملتو دموسسې په څلورمه جرګه‌کې دويناکولو لپاره

وکړه دټولو شلو عربي هیوادو نمایندګان دجرګي له غونډی څخه ووتل لکه چی معلومه شوی دیوګندا ، یوګوسلاویا او دکوریا ددیموکراتیك جمهوریت دنمایندګانو په ګډون دځینو نورو هیوادو نمایندګان هم داسرائیلو دنماینده دویناپه وخت‌کی دغونډی څخه وتلی ؤ .

**دغویی ۲۳ ـ۵۵**

دترکیی صدراعظم‌سلیمان دیمیریل‌داسلامی هیوادونو دباندنیو چارو وزیرانو اوومه جرګه پرانستله اوپه خپله ویناکی‌یی پرفلسطینیانو اودقبرس پرترکانوتیری اوظلم وغانده .

**دغویی ۲٤ـ۵۵**

دسوله‌ایزومقصدونو دپاره دشوروی اتحاد اودامریکا دمتحدو ایالاتو ترمینځ تر ځمکی لاندی ازمیښتی چاودنو دمحدودولو ته مربوط تړون دلاسلك پلانونه ځنډول شویدی .

**دغویی ۲۵ـ۵۵**

داسلامی هیوادو دباندنیو چارو وزیرانو اوومی جرګی داسی پریکړه تصویب کړه چه په هغی‌کی دملګروملتو له موسسی نه داسرائیلو غوښتل شویدی .

* * *

دنایجیریا حکومت وویل ډګرمن دیمکا چه دغه حکومت یی ددغه هیواد دتیری فبروری دمیاشتی کشالو پیداکونکی بولی اعدام شویدی .

پدغو کشالوکی دنایجیریا پخوانی جمهور رئیس جنرال مورتالامحمد وژل شوی ؤ .

ویل کیږی چه تراوسه پوری یو شمیر کسان په نایجیریاکی پدغو کشالوکی دلاس درلودوپه تور اعدام شویدی .

**دغویی ۲٦ـ۵۵**

دلویدیځی صحرادآزادی‌دجبهی (پولیساریو) پوځ چه الجزایریی پلوی دی ددوهم ځل دپاره دالمغرب له پوځ سره په یوه نښته‌کی دغه پوځ ته زیات زیان رسولی دی .

**دغویی ۲۷ـ۵۵**

دلیبیا دباندنیو چارو وزیر ویلی دی دغه هیواد دسوله ایزګډ ژوند په بنسټ دیوه فلسطینی دیموکراتیك دولت دجوړیدو پلوی کوی .

دی چه داسلامی هیوادو دباندنیو چارو وزیرانو په جرګه‌کی له برخی اخیستووروسته په استانبول کی دی ویی ویل دفلسطینیانو مبارزه دیهودی ولس اویهودی کولو په خلاف نده بلکه دهغوی مبارزه دلوړ تیا غو ښتنی په مقابل کی ده .

* * *

داردن دسیند دلویدیځی غاړی دنابلوس په ستر ښارکی عربی مشرانو دخلکو نه دعمومی اعتصاب غوښتنه وکړه .

ددغی غوښتنی علت داسرائیلی عسکرو له خوااددوی په ټولنه کی دیوی نجلی مرګ اوددوو ځوانانو ټپی کیدل ؤ .

**دغویی ۲۸ـ۵۵**

په لبنان کی نویو جګړوچه یوسلوپنځوس تنه یکی مړه اونږدی پنځه سوه تنه زوبل شوی دی دهغه هیواد دلانجو دسیاسی حل په مقصد دلاری دپیداکولو له پاره کوښښ خنډولی دی .

په بیروت کی دلبنان ددښمنو ډلوتر مینځ جنګونو له وظیفی نه داحتمالی استعفاء په باب دهغه هیواد دجمهوررئیس سلیمان فرانجیــه دریځ ته جدی ښه ورکړی ده . له بلی خوا سلیمان فرانجیه په هغه اعلامیه کی چه خپره شوی ویلی دی چه‌دی په‌خپلی استعفاء ندی ولاړ. ده وویل دلبنان دجمهوررئیس استعفاء بیخی یوه لبنانی موضوع ده اوپه دغه برخه کی هرډول تصمیم په خپله دلبنان په‌مربوطو مقاماتوپوری اړه لری .

**دغویی ۲۹ـ۵۵**

دالجزایر دبهرنیو چارو وزیر عبدالعزیــز بوتیفلیقه دملګروملتو دموسسی دسر منشی ډاکتر کورت والدهایم په نامه په یو پیغام کی دالمغرب اوموریتانیا له خوا دلویدیځــی صحرا دویش موضوع رده کړی او په دغـــو دووهیوادونو باندی یی په لویدیځه صحراکی دتیری کولو تورلګولی دی پدغه پیغام کی ده دملګروملتو دموسسی نه دلویدیځی صحرا د خلکودپاره دحق خودارادیت غوښتنه‌کړیده .

* * *

دلبنان سوسیالیستانو اوهغوی پلویانــو یوځل بیاپه لبنان کی دخارجی عسکرولــه شتهوالی سره خپل مخالفت ښرګند کړیدی .

**دغویی ۳۱ـ۵۵**

ترکیی دیونان له هغی غوښتنی سره‌موافقه کړی چه ددواړو هیوادو ترمینځ دنه تیری د تړون دمربوطوخبرو په پاره‌کی ده . دغه‌خبره‌په انقره‌کی اعلام شویده .

**دغبرګولی لومړی ۵۵**

دملګروملتوپه موسسه کی دامریکا نماینده داسرائیلو په باره‌کښی دنــړی دروغتیا د موسسی داسامبلی په‌وروستی فیصلی باندی انتقاد کړی اوویلی‌یی دی چه‌دغه ډول‌فعالیتونه به‌دملګروملتو دموسسی دتخریب سبب شی .

**دغبرګولی ۲ـ۵۵**

دهند په سمندر کی دټولو خارجی اډودله منځه تللو غوښتنه وشوه . شوروی اتحاد او موزمبیق په یوه‌ګډه اعلامیه‌کی دهند په‌سمندر کی دټولو خارجی اډودله منځه تللو غوښتنــه کړیده .

* * *

دلبنان صدراعظم رشید کرامی په لبنان کی دسولی دساتنی دپاره د فرانسوی عسکــرو داستولوپه باره‌کی دفرانسی دجمهور رئیس والری ژیسکار دستن له پیشنهاد سره‌مخالفت کړیدی .

**دغبر ګولی ۸ـ۵۵**

په نایروبی کی دسوداګری اوپرمختیاانکتاد دپاره دملګروملتو دموسسی دجرګی شخه لاس ته‌راغلی نتیجی دپرمختیایی هیوادودنماینده‌ګانو له خوابنی بلل شویدی .

* * *

دکار اوکارګر بین المللی موسسی‌دفلسطین

دآزادی دموسسی دغړیتوب موضوع ترمطالعی لاندی نیولی خویوازی دیوی مخالفی رایی په اکثریت دکار اوکارگرپه بین المللی موسسه کی دفلسطین‌دآزادۍ دموسسی‌غړیتوب ردشو .

**دغبرگولی ۹ـ۵۵**

داپارتاید بین المللی سیمینار چه دکیوباپه مرکزهاواناکی جوړ شوی ؤ دتوپیر غوښتنی اواستعمار په ضد په مبارزوکی دافریقادجنوب له خلکو سره دیووالی په باب دیوی اعلامیی په تصویب سره پای ته‌ورسید .

**دغبرگولی ۱۰ـ۵۵**

دسوداگرۍ اوپرمختیا له پاره دملگروملتو دموسسی څلورمه جرگه چی دکینیاپه مرکـــز نایروبی‌کښی‌جوړه‌شوی‌وه دروغی‌جوړی‌دپریکړو له تصویب څخه وروسته پای ته ورسیده .

**دغبرگولی ۱۱ـ۵۵**

دتایلند نوی کابینی دتایلند په شمال‌ختیځ کی دامریکا دمخابراتی اډی دټولو اودچنگابن دمیاشتی ترنیمه ویشتمی نیټی پوری دامریکایی تخنیکرانو دویستلو په بـاب دهـــغه هیواد د پخوانی حکـومت لاربښودنه یوځل بیا تائید کړه .

**دغبرگولی ۱۲ـ۵۵**

دکار دبین المللی موسسی دلویی جرگی یوشپیتمه غونډه په ژنیوکی پرانستله شوه . پدغه غونډه‌کی ددغی موسسی دغړوهیوادو دیوسلودیرشو کارگری اتحادیو دحکومتونـو استازوگډون کړیدی .

* * *

دکویټ حکومت داروپا داقتصادی ټولنـــی اواسرائیلو دگډی جرگه‌کی دغونډی له امله چه په تل ابیب کی پیل کیږی په رسمـــی توگه دغی ټولنی دنهو غړیودجملی څخـــه په اووهیوادو باندی احتجاج کړی دی .

**دغبرگولی ۱۵ـ۵۵**

دافریقا دیووالی د مـــــوسسی دآزادۍ دجرگه‌گۍ نطاق وویل چه دصومال او حبشی ترمنځ دافاراو ایسا دراتلونکی خپلواکـــــۍ اوددغی خاوری دتمامیت دساتلو په باب‌موافقه شویده .

**دغبرگولی ۱٦ـ۵۵**

دویتنام دیموکراتیک‌جمهوریت ته‌دملگروملتو دمخصوص هیات په سفر پوری مربوط رپوټ دملگروملتو دموسسی مربوطو مقاماتو تـــــه وسپارل شو .

**دغبوگولی ۱۷ـ۵۵**

دفلسطین غږرادیو دقاهری درادیـویـــی ستیشن څخه خپلی خپرونی دسره پیل کړی.

**دغبرگولی ۱۸ـ۵۵**

داتلس دتړون دغړیوهیوادو ددفاع وزیرانو په بروسل کی دمربوطو مسئلوپه باره‌کی د غوردپاره خپلی پنځه ورځنی غونډی پیل‌کړی .

* * *

په بیروت کی دکویټ سفیراودسفارت غړی دفلسطینی سرتیرو دالصاعقه نهضت له خواچه سوریه یی ننگه کوی پدغه سفارت کی بندی کړی شویدی .

**دغبرگولی ۱۹ـ۵۵**

شوروی اتحادله ټولو هیوادو څخه غوښتی دی چه له هرډول داسی اقدام څخه ډډه‌وکړی

چه دلبنان په آزادی دملی حاکمیت په حـــق اودځمکی په تمامیت باندی اغیزه وکړی .

**دغبرگولی ۲۲ـ۵۵**

داتلس دتړون دغړو هیوادو ددفاع وزیرانو ددغه تړون دپوځ دعصری کولو په باره کـــی شپږ کلنه تګ لاره تصویب کړی ده .

داتلس دتړون غړیو هیوادو ددفاع وزیرانو خپلی دوه ورځنی غونډی په بروسل کی پای ته ورسولی اوپه هغوکی په نورو مربوطـــو مسالو سربیره داورسا دتړون دپوځی قـــواو دورځ په ورځ زیاتوالی سره دمقابلی دپاره داتلس دتړون دپوځ دعصری کولو دپلانونو په باب موافقی ته ورسیدل .

**دغبرگولی ۲۹ـ۵۵**

دملګروملتو د موسسی امنیت شـــورا یوه فیصله تصویب کړه چه په هغی کی دجنـــوبی افریقا وروستی پیښی اوددغه هیواد دیوشمیر تورو پوستو وژل غندل شویدی .

**دغبرگولی ۳۰ـ۵۵**

دالمان داتحادی جمهوریت دعلمی څیړنـــو وزیروویل دډیروخت دپاره داوموموادود ډیر کمښت خطر نشته دی .

**دچنګاښ ۲ـ۵۵**

دزمبیا جمهور رئیس کینت کاوندا وویـــل چه دروډیشیا غیرقانونی حکومت دزمبیا پـــه خلاف دجګړی اعلان کړیدی .

**دچنګاښ ٤ـ۵۵**

دویتنام دګډی ملی اسامبلی له پاره نوی تاکل شوی څلور سوه دوه نوی استازیهانوی ته رسیدلی چه ددغی اسامبلی په غونډه کی چه په هانوی کنبنی پرانستل شوی برخـــه واخلی .

**دچنګاښ ۵ـ۵۵**

دناپییلو هیوادو دسمون اداری چی په کولمبو کی ددغو هیوادو دمشرانو له پاره دلومړنـــی جرګه ګی په توګه فعالیت کوی دسفیرانو پـــه سویه یی په ملګروملتو کی غونډه وکړه .

**دچنګاښ ۱۷ـ۵۵**

دهند صدراعظمی میرمن اندراګاندی دناپییلو هیوادونو دوزیرانو پنځه ورځنی جرګه پـــه نوی ډیلی کی پرانستله .

**دچنګاښ ۱۹ـ۵۵**

دانګولا دحکومت له خوا دڅلوروتنو خارجی اجیرو عسکرو په اعدام باندی انتقادشویدی دامریکا دمتحدو ایالاتو جمهور رئیـــس جرالد فورد ویلی دی چی دانګولادحکومت دغه کار ددواړو هیوادو تر منځ دعادی روابطـــو ټینګیدل له ستونزو سره مخامخ کړیدی .

# کرونولوژی اخبار داخلی

**۲۶سرطان ۱۳۵٤ :**

رهبر انقلاب ومؤسس دولت جمهوری مـسا ښاغلی محمدداؤد رسم گذشت عسکری‌را که بمناسبت دومین جشن شکوهمند جمـهور ی صورت گرفت مشاهده کردند.

* * *

ښاغلی محمدداؤد رئیس دولت و صدراعظم نندارتون تولیدات ملی وصناعتی کشور را که بافتخار دومین جشن فرخندهٔ جمهوریت تدویر شده‌است افتتاح کردند.

**۲۷سرطان ٥٤ :**

رهبر انقلاب ومؤسس جمهوریت ښاغلـی محمد داؤد صبح ۲۷ سرطان رسم گذ شت ورزشکـــاران معارف ونــمایش جمنا ستیك شاگردان مکاتب مرکز را درغازی ستدیـــوم معاینه فرمودند.

**۳۰ سرطان ٥٤ :**

مردم سراسر کشور ازبیانات رهبر انقلاب ومؤسس جمهوری ښاغلی محمدداؤد که شام ۲۵ سرطان ٥٤ به مناسبت دو مین جشن فرخندهٔ جمهوری ازرادیو افغانستان ایــراد کردند استقبال نموده آمادگی شانرا برای‌تحقق بخشیدن وتطبیـق پرو گرامـهــای دو لـت جمهوری ابراز نمودند.

* * *

به‌تاسی از تصویب شورای عالی قضا یك کمیتهٔ مختلط مرکب ازنمایندگان عالی ر تبـه ادارهٔ عالی قضا ،وزارت مالیه، ریاست تقنین ولوی خارنوالی وزارت عدلیه تعیین گر دیده است تابر لایحهٔ محصولات دعاوی تجا رتی وحقوقی وثایق وثبت اسنادغورنماید.

* * *

ښاغلی محمدداؤد رئیس دولت وصدر اعظم وخانم محترمهٔ شان میرمن زینب‌داؤد نمایشات هنری هنرمندان کشور های دوست رادرتالار کابل ننداری تما شانمودند.

**۳۱ سرطان ٥٤ :**

ښاغلی محمدنعیم جام فتبال جمهوریت را ساعت نه‌شب به‌تیم فتبال اتحادشوروی کـه مقام قهرمانی رادرنتیجهٔ انجام یك سلسلـه مسابقات درایام دومیـــن جشن فر خنــده جمهوریت در غازی ستد یوم احراز نمـوده تفویض کردند.

**۲ـ اسد ٥٤ :**

برای تطبیق ریفورم معارف که‌اهداف‌عمومی تعلیم و تربیه رادر کشور مطابق به‌مقتضیات نظام جمهوری تشخیص میدهد ودر روشنی‌آن مسیر جدید معارف پیریزی می گردد اقدامات موثر بعمل آمده است .

* * *

هیات زنان افـــغانی پس از اشتراك در سیمینار زنان آسیایی منعقدهٔ الماتای اتحـاد شوروی بکابل مراجعت کرد.

محترمه کبرارئیسه میرمنو تولنه ریـاست

هیات رابعهده داشت.

* * *

بیرق قهرمانی جمهوریت به تیم ولایت پکتیا که‌قهرمان مسابقات نیزه زنی دردومین جشن فرخندهٔ جمهوری کشور گردیده است روز ۲ـاسد توسط ښاغلی وحید اعتمادی‌رئیس المپیك اهداشد.

**٤ـاسد ٥٤ :**

باساس پیشنهاد وزارت تجارت تصویب مجلس عالی وزرا ومنظوری ښاغلی محمدداؤد رئیس دولت وصدر اعظم تاسیس مرکز انکشاف صنایع دستی منظور گردیده‌است.

**۸ـاسد ٥٤ :**

مراحل تادیه پنجاه ملیون افغانی قرضه به‌مقصد انکشاف مالداری طی گردیده واز آن جمله دو ملیون افغانی بدسترس مالداران ولایت هرات قرار گرفته متباقی در حال‌اجرا می‌باشد.

**۹ـ اسد ٥٤ :**

باتاسیس دیپارتمنت کنترول ادویه موسسه صحت عامه تاهشتاد فیصد ادویه جنریك از نظر توصیفی مقداری وخالصیت درآن تجزیه وتحلیل شده میتواند .

**۱۱ـ اسد ٥٤ :**

مدالهای یادگاری دومین جشن فرخندهٔ جمهوریت توسط ښاغلی فیض‌محمد وزیرداخله برای یکصدو پنجاه وهشت ورزشکار افغانی ومؤظفین فنی اهدا گردید .

**۱۲ـ اسد ٥٤ :**

درجلسهٔ ۱۲ـاسد٥٤ ورکشاپ ملی توسعه نصاب تعلیمی روی مسایل مربوط به تعلیم وتربیهٔ افغانی ومعرفی ریفورم معارف‌وتحولیکه درنظر است درطرز ادارهٔ مکاتب صورت‌بگیرد مباحثات صورت گرفت.

**۱۲ـ اسد ٥٤ :**

باساس مشی دولت انقلابی برای هـژده خانوار مستحق بی زمین ولسوالی های درواز وواخان ولایت بدخشان در پروژهٔ سنگ مهر، آن ولایت زمین توزیع گردید.

**۱۳ـ اسد ٥٤ :**

باستناد امور اکتشافی اجرا شدهٔ ذخایر مس معدن عینك لوگر یك ونیم تادو ملیون تن وذخایر مس معدن در بند تایك ملیون تن‌تخمین شده است .

* * *

ارزیابی ساحهٔ بیش از سه صد هزارجریب زمین وادی فراه رود ازنگاه منابع آب‌وخاك احداث بند ذخیره آب واصلاح سیستم‌آبیاری توسط انجنیران داخلی وخارجی ریاست‌آب وبرق آغاز گردید.

**۱٤ـ اسد ٥٤**

اساسنامهٔ دپوهنی مطبعه بعد ازتصویب مجلس عالی وزرا ومنظوری ښاغلی رئیس‌دولت وصدر اعظم درشمارهٔ هشتم جریدهٔ رسمی نشر ونافذ گردید.

۱۵- اسد ٥٤ :

کار پروژ ۀ دستگاه برق آبی اسعد آباد مرکز لوی ولسوالی کنر طی مراسمی آغاز گردید.

* * *

باکمال امور فنی معدن بیرایت سنگلا ن هرات معلوم گردیدکه ذخایر این معـدن در کتگوری های مختلف اضافه از یك و نیـم ملیون تن می باشد .

۱٦- اسد ٥٤ :

بااستفاده از آبهای زیر زمینی زمینۀ تهیه آب مشروب صحی برای بیش ازده هزار نفر در ولایت جوزجان میسر ساخته میشود .

* * *

یك عمارت جدید برای پو هنخی طـب پوهنتون کابل باصرف ۱٤۲ ملیون افغانی از بودجه انکشافی دولت تاسال ٥۷ به پایـۀ تکمیل رسیده ه و مـورد استفـاده قـر ار خواهدگرفت.

۱۸- اسد ٥٤ :

تعلیماتنامۀ تقاعد بعداز طی مرا حل قانونی مورد تطبیـق قرار گرفته و قرار داداستفـاده از کمپیوتر درزمینه سرعت کاربین ر یاست خزینۀ تقاعد وزارت مالیه وشرکت سها می کمپیوتر افغان بامضا رسیده است.

* * *

پوهاند عبدالقیوم وزیر معارف مو قع تهداب گـذاری عمارت جدید پوهنخی طب در حالیکه پوهاند دکتور نظر محمد سکندر وزیر صحیه نیز حاضر بود طی بیانه گفت : (جای افتخار است که به تاسی از پرو گرام های دو لت انقلابی درراه ارتقا وپیشرفت وطن تهداب یك مر کز علمی بزرگ وعمده گذاشته میشودکه درسا حۀ خدمات صحی نقش ارزنده دارد .

۱۹- اسد ٥٤ :

مرحلۀ اول پروژه آب آشامیدنی پوهنتون کابل که بامصرف اضافه ازیك ملیون افغانی تکمیــل شده است تــو سط بنا غلـــی غوث الدین فایق وزیر فوایدعامه افتتـا ح گردید.

۲۲- اسد ٥٤ :

پروژ ۀ توسعوی فابریکه نساجی بگرامی تاختم امسال تکمیل و تو لیدات فابریکه از ۱۵ ملیون متر پارچه به بیست ملیون متربالا خواهد رفت.

* * *

پروژه عصاره شیرین بویه به سرما یـۀ یکصدو هشتاد ملیون افغانی بصورت نها یی ونه پروژه سرمایه گـذاری خـصو صی در ساحات مختلف اقتصادی بسرمایه مجمو عـی پنجاه وچار ملیون افغانی در کمیته سر مایه گـذاری تصویب گردید.

* * *

هیاتی ازطرف وزارت های داخله ما لیـــه ښاروالی کابل وجمعیت افغانی سره میاشت بریـاست ښاغـلی محمـد اسماعیل محسور ولسوال پغمان موظف گردیده تاراپور خساره وارده نـاشی از سیلاب پغمان را تر تیـب نمـا ید .

۲۵- اسد ٥٤ :

پیام تسلیت وهمدردی ښاغلی محمد داؤد

رئیس دولت وصدر اعظم به بازماندگان سیلاب ولسوالی سرخرود توسط والی ننگر هارابلاغ گردید. درحادثهٔ سیلاب هفت نفر هـــلاك گردیده است .

**۲۵ـ اسد ٥٤**

مرحلهٔ دوم آب رسانی ولسوالی دو لتآباد ولایت بلخ به اکمال رسیده وکارآب رسا نـی ولسوالی های امام صاحب دشت ارچـــی و رستاق آغاز شده است .

همچنان کار شبکه آبرسانی شهر تالقان پنجاه فیصد پیشرفته است.

* * *

قانون اصــلا حات اراضی بعداز تصو یـب مجلس عالی وزرا ومنظوری بناغلـی ر ئیس رئیس دولت وصدر اعظم درشمارهٔ دهم مورخه ١٥ـاسد٥٤ جرید ه رسمی نشرشد.

* * *

قانون احصائیه افغانستان بعد ازتصو یب مجلس عالی وزرا ومنظوری بناغلی ر ئیس دولت وصدراعظم درشمارهٔ فوق العاده جر یده رسمی نشر ونافذ گردید.

**۲٦ـ اسد ٥٤ :**

بیش از یازده ملیون جریب زمین درولایات هرات بادغیس وغور بمنظور تفکیك انـو اع اراضی تاکنون سروی گردیده است.

**۲۷ـ اسد ٥٤ :**

درحدود یك ملیون ونه صدو هفده هزارنفر تحت پروگرام کنترول ملاریا در حوزهٔ ملاریای شمال شرق کشور قرار گرفته اند.

**۲۷ـ اسد ٥٤ :**

از آغاز سال تاکنون ۲٥ پروژه صنایـع مختلف بهسرمایهٔ مجمو عی ۳٤٠ملیون افغانی بصورت مقدماتی وسه پروژه صنایع دیگر به سرمایه مجمو عی ٢٢١ر٨٠٦ر٠٠٠ ـافغانـــی بصورت نهایی توسط کمیتهٔ سرمایه گذا ری وزارت پلان تصویب گردیده است .

**۲۹ـاسد ٥٤ :**

کورسهای ماستری درجراحی عمومـــی و تخصص دررشتهٔ انستیزی قبل از ظهر توسط پوهاند دکتور نظر محمد سندر وزیر صحیه درموسسه صحت طفل افتتاح گردید.

**اول سنبله ٥٤ :**

پس ازتلاوت قرآن کریم ونواختن سرودملی باقرائت پیام بناغلی رئیس دولت وصدراعظم نخستین سیمینار نهضت زن در کشورساعت پنــج بعداز ظهر در تالار زینب ننداری افتتاح گردید.

**۳ـ سنبله ٥٤ :**

حفریات دورهٔ سیزدهم ایخانم و لا یـت تخار توسط باستان شناسان افغانی وفرانسوی شروع گردید.

**٤ـسنبله٥٤ :**

هیات تجارتی افغانی بریاست رئیس تجارت خارجی وزارت تجارت برای ادامهٔ مـذ اکرات روی موافقتنامه جدید تجارتی بـین دو لـت جمهوری افغانستان وجمهوریت هند عـا ز م دهلی شد.

**٤سنبله ٥٤ :**

درسیمینار نهضت زن که ازساعت ۹ صبح الی پنـج عصر دراتاق کنفرانس دمیر منـــو تولنه دایر شد روی مو ضو عات ریفـــورم بنیادی معارف حقوق زن در دین اسلام سهم زنان درتنظیم فامیل رول زنان در خدمـــات شهری وحفظ الصحه محیطی ومشکلات ا مور مربوط به‌انکشاف نهضت زن‌بحث بعمل‌آمد.

**٥سنبله٥٤ :**

یکهزار ودوصد وپنجاه جریب زمین‌زراعتی دولت واقع قریه ارگیسل فیض آباد کــه‌از سالها به‌اینطرف تحت تصرف غیر قا نونـی یکعده اشخاص بود مسترد گردیده‌است.

*　*　*

بیش از شانزده هزار ونه‌صدتن مـــیو ۀ خشك زیتون پوست شیرین بویه و دیگراشیا درپنـج ماه اول امسال ازطریق بندر حیرتان بخارج صادر گردیده‌است .

**٨سنبلـه٥٤ :**

روز بین المللی طفل ضمن‌محافلی درمرکز وولایات کشور تجلیل گردید.

میرمن زینب داؤد خانم بناغلی ر ئیـس دولت وصدراعظم درمحفلی که باین مناسبت ازطرف میرمنو تولنه در تالار زینب ننداری برگزار شد اشتراك نموده و تحایفی به‌اطفال کودکستانها توزیع نمودند.

*　*　*

پروژۀ آب مشروب ولسوالی سنگ چا رك ولایت جوزجان که باصرف دو ملیـــون و یکصدو سی‌هزار افغانی باساس پرو گرا م حفظ الصحه محیطی وزارت صحیه تکمیل شده توسط بناغلی سلطان محمدمستوفی وو کیـل ولایت جوزجان افتتاح‌گردید.

**٩سنبله ٥٤ :**

پانزده هزار وهفتصد وهشتاد وپنج کیلـو خربوزه توسط طیاره آریانا افغان هوایـــی شرکت به‌کویت صادرشد.

*　*　*

روز ملی پشتونستان درکابل ومراکزولایات کشور بامراسم شانداری بر گزار گردید . مراسم روز پشتونستان در کابل با قرائت آیات چند ازکلام الله مجید بساعت هشت‌صبح در پشتونستان‌میدان آغاز گردید ه و متعاقبا دکـتـور غـلام سخی نورزاد کابل بناروال بیانیه اش راپیرامون این روز تاریخی برادران پشتونستانی مایراد نموده وبیـرق ملـــی پشتونستان بر افراشته شد .

**١١ سنبله ٥٤ :**

به‌اساس مشی دولت جمهوری برای‌پنجاه خانواده بی زمین درولایت بغلان زمین توزیع گردیـد.

**١٢ــ سنبـله ٥٤ :**

بمنظور خدمت به‌دهقانان ومولدین گنـد م ریاست ارزاق واحتیاجات عامه در دو ران‌سال جاری گندم رابه نر خ فی کیلو شش‌افغانی‌و پنجاه پول خریداری می‌نما ید.

**١٣ــ سنبله ٥٤ :**

به‌اساس مشی دولت جمهوری در سکتور زراعت وبه‌مقصد ازدیاد سطح تولیدات زراعتی محصولات حیوانی وتقویه بنیۀ مالی مولدین

